# كشف البارى

عما فى

# صحيح البخارى

النفقات، الأطعمة، العقيقة، الذبائح والصّيد، الأضاحى، الأشربة، المرضى، الطب

**تاليف** ← صدر وفاق المدارس مولانا سليم الله خان مدظله العالى
شيخ الحديث جامعه فاروقيه كراچى

**ترتيب وتحقيق** ← مولانا ابن الحسن عباسى استاذ جامعه فاروقيه كراچى

**ترجمه** ← مولانا شاه فيصل فاضل وفاق المدارس، امداد العلوم

## خصوصيات

**جلد ۱۳**

① داحاديثو تخريج
② د تعليقات بخارى تخريج كول
③ د اسماء الرجال مختصر تعارف
④ دگرانو لغاتو لغوى صرفى او نحوى حل
⑤ ماقبل باب سره د ربط په باره كښې پوره تحقيق
⑥ د شرحې د هرې خبرې په حاشيه كښې حواله وركول
⑦ د ترجمة الباب مقصد په بيانولو كښې پوره تحقيق
⑧ د مختلفو مذاهبو تحقيقى بيان او بيا د مذهب حنفى ترجيح
⑨ دحديث اطراف بيانول چه په بخارى كښې داحديث په كوم كوم ځائې كښې دې.

**خورونكى** فيصل كتب خانه محله جنگى پيښور
موبائل:- ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

# فهرست مضامین

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## ٧٢=کِتَابُ النَّفَقَاتِ



## ١=باب فَضْلِ النَّفَقَةِ عَلَى الأَهْلِ



## ٢=باب وُجُوبِ النَّفَقَةِ عَلَى الأَهْلِ وَالْعِيَالِ



## ٣=باب حَبْسِ نَفَقَةِ الرَّجُلِ قُوتَ سَنَةٍ عَلَى أَهْلِهِ، وَكَيْفَ نَفَقَاتُ الْعِيَالِ



## ٤=باب وَقَالَ اللَّهُ تَعَالَى: وَالْوَالِدَاتُ يُرْضِعْنَ أَوْلاَدَهُنَّ حَوْلَيْنِ.....الخ

| صفحه | مضمون | شميره |
|---|---|---|



## ۶= باب عَمَلِ الْمَرْأَةِ فِي بَيْتِ زَوْجِهَا



## ۱۰ = باب حِفْظِ الْمَرْأَةِ زَوْجَهَا فِي ذَاتِ يَدِهِ وَالنَّفَقَةِ



## ۱۴ = باب (وَعَلَى الْوَارِثِ مِثْلُ ذَلِكَ)



## ۷۳=كتاب الاطعمة

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## ۱۹- باب: قَطْعِ اللَّحْمِ بِالسِّكِّين



## ۲۲- بَابُ مَا كَانَ النَّبِي ﷺ وَأَصْحَابُهُ يَأْكُلُونَ



## ۲۵- بَابُ شَاةٍ مَسْمُوطَةٍ وَالْكَتِفِ وَالْجَنْبِ



## ۲۸ - بَابُ الأَكْلِ فِي إِنَاءٍ مُفَضَّضٍ



## ۳۱ - بَابُ الْحَلْوَاءِ وَالْعَسَلِ

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## ۴۲-باب أَكْلِ الْجُمَّارِ



## ۴۵-باب جَمْعِ اللَّوْنَيْنِ أَوِ الطَّعَامَيْنِ بِمَرَّةٍ



## ۵۲-باب لَعْقِ الأَصَابِعِ وَمَصِّهَا قَبْلَ أَنْ تُمْسَحَ بِالْمِنْدِيلِ



## ۵۲-باب مَا يَقُولُ إِذَا فَرَغَ مِنْ طَعَامِهِ

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



## ۱۳- بَابُ أَكْلِ الْجَرَادِ



## ۱۵ - بَابُ التَّسْمِيَةِ عَلَى الذَّبِيحَةِ، وَمَنْ تَرَكَ مُتَعَمِّدًا

| شميره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شميره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شميره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## ۳۸- باب أَكْلِ الْمُضْطَرِّ



## ۷۲- كتاب الاضاحى



## ۳- باب: الأُضْحِيَّةِ لِلْمُسَافِرِ وَالنِّسَاءِ



## ۴- باب مَا يُشْتَهَى مِنَ اللَّحْمِ يَوْمَ النَّحْرِ



## ۵- باب مَنْ قَالَ الأَضْحَى يَوْمَ النَّحْرِ



## ۷- باب فِي أُضْحِيَّةِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم بِكَبْشَيْنِ أَقْرَنَيْنِ وَيُذْكَرُ سَمِينَيْنِ

| شمیرہ | مضمون | صفحہ |
|---|---|---|

## ۸-باب قول النبی ﷺ لأبی بردة «ضحّ بالجذع من المعز ولن تجزی عن أحد بعدك»



## ۹ - بَابُ مَنْ ذَبَحَ الأَضَاحِيَ بِيَدِهِ



## ۱۲ - باب مَنْ ذَبَحَ قَبْلَ الصَّلاَةِ أَعَادَ



## ۱۳ - باب وَضْعِ الْقَدَمِ عَلَى صَفْحِ الذَّبِيحَةِ

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## ۱۲- باب ما یؤکل من لحوم الأضاحی وما یتزود منها



## ۷۷- کتاب الأشربة

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## ۱۲- باب استعذاب الماء



## ۱۳- باب شوب اللبن بالماء



## ۱۴- باب شراب الحلواء والعسل



## ۱۵- باب الشرب قائما

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## ۲۷= باب آنِيَةِ الْفِضَّةِ



## ۲۸ = باب الشُّرْبِ فِي الْأَقْدَاحِ



## ۲۹= باب الشُّرْبِ مِنْ قَدَحِ النَّبِي -صلی الله علیه وسلم- وَآنِيَتِهِ



## ۳۰ = باب شُرْبِ الْبَرَكَةِ وَالْمَاءِ الْمُبَارَكِ



## ۷۸-کتاب المرضی

| شمیره | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

....

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

# کِتَابُ النَّفَقَاتِ

(الاحادیث: ۵۰۳۴-۵۰۵۷)

کتاب النفقات په پنځه پنځوس مرفوع احادیثو باندې مشتمل دې. په دې کښې درې احادیث معلق دی. د کتاب النفقات اکثر احادیث په صحیح بخاری کښې وړاندې تیر شوی دی صرف درې احادیث په دې کښې امام بخاری رحمه الله په اول ځل ذکر کړی دی په دې کښې یو حدیث متفق علیه دې. په کتاب النفقات کښې د صحابو کرامو رضی الله عنهم اود تابعینو نه امام بخاری درې آثار ذکر کړی دی. د ذکرشوؤ احادیثو اوآثارودپاره امام بخاری په کتاب النفقات کښې ۱۱۴ بابونه قائم کړی دی.

....

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

# ۷۲=كِتَابُ النَّفَقَاتِ

**د نفقې اصطلاحي او شرعي معنى:** نفقه لغت کښې هغه څيز ته وائى کوم چه سړى په خپل اهل وعيال باندې خرچ کړى. (١) دا خو يا د «نفوق» نه مشتق دې، چه ددې معنى دهلاکت ده. وائى چه «نفقة الدابة... نفوقا» ځناور هلاك شو. په طور د نفقه خرچ کولو والا څيز هم چونکه ختميږى ددې وجې دى ته نفقه وائى. اويا دا د«نفاق» نه ماخوذ دې چه ددې معنى رائج کيدل ده. وائى چه ((نفقت لسلعة....نفاقا)) سامان روان شو، رائج شو، خرچ شو. (٢)

دهدايه په مشهوره شرح «عناية» کښې دى چه «نفقه» اسم دې او «انفاق» «خرچ کولو والا» معنى کښې راځى. د نفقه نه مراد د يو څيز دپاره داسې اسباب مهيا کول چه دهغې په ذريعه هغه څيز قائميدل ممکن پاتې شى. (٣) او خرچ کولو سره دا اسباب مهيا کړې شى.

«وفى الاصطلاح عبارة عما وجب لزوجة أوقريب : اومملوك من الطعام واللباس والسكنى» (٤)

دشريعت په اصطلاح کښې دنفقه اطلاق د ښځې اواهل وعيال دپاره دانسان په ذمه لازم طعام، لباس او استوګنه باندې کيږى او «عرفا» ددې اطلاق صرف په طعام باندې کښې. (٥)

**اسباب نفقه** :د نفقه اسباب درې دى. ① زوجيت ② قرابت ③ ملك ملك.

داشان که يوسړى ديو بل سړى د منفعت په وجه محبوس دې نو د هغه نفقه هم په باندې به وى. (٦)

## ١=باب فَضْلِ النَّفَقَةِ عَلَى الأَهْلِ

**وقول الله تعالى: [وَيَسْـَٔلُونَكَ مَاذَا يُنفِقُونَ، قُلِ الْعَفْوَ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ الْاٰيٰتِ لَعَلَّكُمْ تَتَفَكَّرُونَ فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ]** (البقره : ٢١٩)

**قوله: وَقَالَ الْحَسَنُ الْعَفْوُ الْفَضْلُ:** حضرت امام بخارى رحمه الله دخپل عادت مطابق په ترجمة الباب کښې آيت کريمه ذکر کړې دې.[[وَيَسْـَٔلُونَكَ مَاذَا يُنفِقُونَ قُلِ الْعَفْوَ]] يعنى خلق ستاسو نه تپوس کوى چه هغوى څه خرچ کړى؟ تاسو ورته اووائې «عفو». په دې ايت کريمه

---

١) الدر المختار: ج:٢ ص:٦٩٩)-

٢) الدر المختار ج/٢، ص/٦٩٩، وفتح القدير: ٤/١٩٣، و ارشاد السارى :: ج:١٢ ص:١٢١.)

٣) العناية هامش فتح القدير:٤/١٩٢.)

٤) تنوير الابصار : ٢/٦٩٩، ارشاد السارى : ١٢/١٢١).

٥) الدرالمختار:٢/٦٩٩.

٦) فتح.التقدير: ٤/١٩٣)

کښې د «عفو» دوه معنې بیان کړې شوي دی.

① آیت کریمه کښې عفو نه صدقه مفروضه مراد ده.د صدقه مفروضه مراد اخستلو په صورت کښې بیاد مفسرینو درې اقوال دی:

**رومبې قول**: رومبې قول دادې چه ددې نه مراد زکوة دې، دلته اجمالاً ذکر دې. او احادیث کښې بیا ددې تفصیلات ذکر کړې شوی دی، ددې قول مطابق آیت منسوخ شوې نه دې.[1]

**دویم قول**: دویم قول دادې چه ددې نه مراد صدقه ده چه د زکوة د وجوب دنازلیدو نه وړاندې مسلما نانو باندې واجب وه. د امام کلبی رحمت الله علیه په روایت کښې دی.

چه ددې آیت کریمه ناز لیدونه پس سره زر، سپین زر او مال څناور لرلووالا خلقو به د ټول کال خرچه په اندازه ایښوده او باقې مال به ئې صدقه کولو، تردې پورې چه د زکوة آیت نازل شو نودې سره مذکوره آیت منسوخ شو.[2]

**دریم قول**: دادې چه د زکوة نه علاوه هم د سړی په مال کښې څه حق واجب دی. هغه مراد دې. دجمهورو عالمانو په نیز اګرچه أزکوة نه مس سری مه مال کښې شه زیات حق واجب نه دی لیکن دبعضر حضرا توبه نیز أزکوة ند محلاوه هم مه مال کښې حق واجب دې چه د هغې مقدار متعین نه دې بلکه دسړی رائې باندې منحصر دې. نو علامه بنوری رحمه الله په معارف السنن کښې لیکی چه: ((وبعض السلف یری أن فی المال حقا سوی الزکوة ولکنه غیر منضبط مفوض الی رأی المبتلی به وهو المختار)).[3]

دا حضرات سنن ترمذی کښې دحضرت فاطمه بنت قیس رضي الله عنها روا یت نه استدلال کوی چه حضور نبی کریم ﷺ فرمائی چې «ان فی المال حقا سوی الزکوة»

لیکن جمهور علماء فرمائی چه دا حد یث مضطرب المتن دې، نو ابن ماجه هم دا روا یت دې الفاظو سره نقل کړې دې. «لیس فی المال حق سوی الزکوة» امام ترمذی هم ددې حد یث تضعیف کړې دې.[4]

② آ یت کریمه کښې «عفو» په بله معنی کښې دصدقه نافله دپاره استعمال شوې دې. یعنی آ یت کښې «عفو» نه نفلی صدقه مراد ده، په دې صورت کښې د «عفو» مختلف تعبیرات کړې شوی دی.

---

[1]) تفسیر کبیر للامام الرازی: ۵۲/۶)

[2]) الجامع احکام القران للقرطبی: ۳/۶۱، ۳/۶۲.

[3]) معارف السنن کتاب الزکوة: ۵/۶۱، ۶۲)

[4]) اوګورئی سنن الترمذی کتاب الزکوة باب ماجاء أن فی المال حقا سوی الزکوة رقم الحدیث: ۶۶۰، وسنن ابن ماجه کتاب الزکوة باب ماأدی زکوته لیس بکنز رقم الحدیث: ۱۷۸۹ نومحدثین دمضطرب المتن مثال کښې دا حدیث پیش کوی، اوګورئی. لقط الدور بشرح متن نخبة الفکر: ۹۴، وتیسیر مصطلح الحدیث: ۱۱۲).

بعضو وئيلي دى چه د (عفو) نه هغه مال مراد دې چه دبنيادى اخراجاتو او ضرورتونو نه بچ شي. [۱]
بعضو وئيلي دى چه ددې نه هغه مال مراد دې چه دهغې خرچ كولو سره سړې تنگ نه وى او نه دې سره ورته پريشانى راشى اونه در په در شى. [۲]

ليكن مقصد ددې ټولو تعبيرا تو نه هم يو دې يعنى (مافضل من العيال) هغه مال چه دسړى او دده د كور د اخراجا تو نه زيات وى. داشان مال ته نفلى صدقه وئيلې شى. آيت كريمه كښې ددې وضاحت كړې شوې دې.
ابن ابى حاتم ددې آيت شان نزول كښې يو مرسل روايت نقل كړې دې چې حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه او حضرت ثعلبه رضي الله عنه نه روا يت دې چه دوى دواړو دنبى كريم ﷺ نه تپوس اوكړو چې زمونږ بچې او مال غلامان شته دې، مونږ څه خرچ كړو؟ نو په دې سوال باندې دا آيت مبارك نازل شو. [۳] چې ددې حاصل دادې چې د بال بچ او اهل وعيال نه څه بچ شى هغه په طور د نفلى صدقې خرچ كوئى، شارح بخارى ابن بطال رحمه الله ليكى چې:

((فروى عن اكثر السلف ان المراد بذلك صدقة التطوع)) [۴]

دصدقه نه مراد ثواب دې يعنى ددې نفقې به ده ته ثواب ملاو يږى، مجازى طور په ثواب باندې د صدقه اطلاق كړې شوې دې. حقيقى طور صدقه مراد نه ده ځكه چه زوجه هاشميه نفقه هم په خاوند باندې واجب ده. او دهاشميه دپاره صدقه اخستل جائز نه دى. ددې وجې د صدقه نه مجازى ثواب مراد دې [۵] نفقه واجب ده، په دې باندې د صدقه اطلاق اوكړو او دې طرفته اشاره اوشوه چې د واجب كيدو دامطلب نه دې چې په دې به ثواب نه ملاو يږى.
مهلب وائى چې:

(النفقة على الأهل واجبة بالأجماع وإنما سماها الشارع صدقة خشية أن يظنوا أن قيامهم بالواجب لا أجرلهم فيه وقدعرفوا مافى الصدقة من الأجر فعرفهم أنها لهم صدقة حتى لايخرجوها إلى غير الأهل إلا بعد أن يكفوهم المؤونة ترغيبالهم فى تقديم.) الصدقة الواجبة قبل صدقة التطوع) [۶]

[۵۰۳۶] حَدَّثَنَا آدَمُ بْنُ أَبِي إِيَاسٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ يَزِيدَ الْأَنْصَارِيَّ عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ فَقُلْتُ عَنِ النَّبِيِّ فَقَالَ عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم قَالَ «إِذَا أَنْفَقَ الْمُسْلِمُ نَفَقَةً عَلَى أَهْلِهِ وَهُوَ يَحْتَسِبُهَا، كَانَتْ لَهُ صَدَقَةً». [ر: ۵۵]

---

[۱] تفسير القران العظيم لابن كثير: ۲۵۶/۱)
[۲] روح المعانى: ۱۱۵/۲)
[۳] فتح البارى: ۶۲۲/۹ عمدة القارى: ۱۲/۲۱ ارشاد السارى: ۱۲۲/۱۲)
[۴] شرح ابن بطال: ۵۲۸/۷)
[۵] فتح البارى: ۶۲۳/۹ وارشادالسارى: ۱۲۲/۱۲)
[۶] ارشاد السارى: ۱۲۲/۱۲ و فتتح البارى: ۶۲۳/۹)

[٥٠٣٧] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ أَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ « قَالَ اللَّهُ أَنْفِقْ يَا ابْنَ آدَمَ أُنْفِقْ عَلَيْكَ ». [ر: ٤٤٠٧]

[٥٠٣٨] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ قَزَعَةَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ ثَوْرِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ أَبِي الْغَيْثِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - « السَّاعِي عَلَى الْأَرْمَلَةِ وَالْمِسْكِينِ كَالْمُجَاهِدِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، أَوِ الْقَائِمِ اللَّيْلَ الصَّائِمِ النَّهَارَ ». [٥٦٦٠، ٥٦٦١]

په سند كښې د ابوالليث نه سالم مراد دې چې دعبدالله بن مطيع آزاد شوې غلام وو. دا حديث دلته بخاری كښې په رومبی ځل راغلې دې. مخكښې كتاب الادب كښې هم حضرت امام بخاری رحمه الله دا ذكر كړې دې.[1]

نبی كريم ﷺ لا فرمائيلی دی چې كونډې او مسكين دپاره محنت كوؤنكې دا الله تعالیٰ په لار كښې جهاد كولو، يا دشپې عبادت كوؤنكی او د ورځې روژه نيوؤنكی په شان دې.

(أرملة) هغه ښځې ته وائی چه دهغې خاوند مړ شوې وی، كونډه.[2] (ساعي) نه مراد هغه سړې دې چې د كونډې اومسكين د فائدې دپاره كوششونه كوی، حضرت حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې: (ومعنى الساعى الذى يسعى فى تحصيل ماينفع الارملة والمسكين)[3]

**دحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** دې حديث كښې د مسكين او د كونډې د خدمت كولو فضيلت اګر چې عام بيان شوې دې ليكن ظاهر دی چې د سړی اقاربو كښې هم كه څوك په دې دواړو صفتونوسره متصف كيد يشی، څوك كونډه كيد يشی، مسكين كيديشی. نوكله چې په دې حديث پاك كښې د اجنبی او پردی دپاره دا فضيلت بيان كړې شوې دې نو د نزدې رشته دار دپاره مذكوره فضيلت په طريق اولی به ثابت وی، نو علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی چې:

(ومطابقة الحديث للترجمة من جهة إمكان اتصاف الأهل أى الأقارب بالصفتين المذكورتين، وإذا ثبت هذا الفضل لمن ينفق على من ليس له بقريب ممن اتصف بالوصفين فالمنفق على المتصف بهما أولى)[4]

---

[1] (٥٠٣٨) الحديث أخرجه البخاري في كتاب النفقات، باب فضل النفقة على الأهل رقم الحديث: ٥٠٣٨، وأيضا أخرجه البخاري في كتاب الأدب باب الساعي على الأرملة رقم الحديث: ٥٦٦٠ وأيضا باب الساعي على المسكين رقم الحديث: ٥٦٦١، وأخرجه مسلم في كتاب الزهد والرقاق، باب الإحسان إلى الأرملة والمسكين واليتيم رقم الحديث: ٢٩٨٢، وأخرجه النسائي في كتاب الزكوة: ٢٧٧/١، وأخرجه الترمذي في أبواب البر والصلة: ٢٧/٢ أخرجه ابن ماجه في التجارة: ١٥٥/١).

[2] مجمع بحار الانوار ٣٨١/٢، والنهايه لابن الاثير: ٢٦٦/٢).

[3] فتح الباري: ٦٢٤/٩)

[4] ارشاد الساري: ١٢١/١٢، فتح الباري: ٦٢٤/٩).

حضرت امام بخاری رحمه الله د «فَضْلِ النَّفَقَةِ عَلَى الأَهْلِ» ترجمة الباب قائمولو نه پس دا آیت ذکر کړې دې او ددې بلې معنې طرفته ئې اشاره کړې ده چې اول د اهل وعیال نفقه د سړي په ذمه ضروری ده، بیا ددې نه زیات که بچ کیږي نوهغه د نفل صدقه په طور خرچ کولې شي.

**قوله**: وَقَالَ الْحَسَنُ الْعَفْوُ الْفَضْلُ: دا د حسن بصری رحمه الله تعلیق دې، فرمائی چې په آیت کښې د «عفو» نه هغه مال مراد دې چې دضروریاتو او نفقې نه زیات وی. عبد بن حمید دا تعلیق موصولاً نقل کړې دې.[1]

**قوله**: حدثنا ادم عن ابی مسعود الانصاری فقلت عن النبی صلی الله علیه وسلم فقال عن النبی صلی الله علیه وسلم: په دې کښې «قلت» قائل شعبه دې یعنی شعبه عدی بن ثابت نه تپوس اوکړو چې دا روایت د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه مرفوعًا منقول دې؟ نو هغوی جواب ورکړو اوددوئ تصدیق ئې اوکړو. نود اسماعیل په روایت کښې ددې تصریح شته دې.[2]

دا روایت په کتاب الایمان کښې تیر شوې دې. هغه ځائې کښې په دې باندې بحث شوې دې.[3]

حاصل دادې چې مسلمان کله په خپل اهل وعیال باندې د ثواب او اجر په نیت خرچ کوی نودا خرچ دده دپاره صدقد ده

[۵۰۳۹] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ سَعْدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ سَعْدٍ -رضی الله عنه- قَالَ كَانَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- يَعُودُنِي وَأَنَا مَرِيضٌ بِمَكَّةَ، فَقُلْتُ لِي مَالٌ أُوصِي بِمَالِي كُلِّهِ قَالَ «لاَ». قُلْتُ فَالشَّطْرُ قَالَ «لاَ». قُلْتُ فَالثُّلُثُ قَالَ «الثُّلُثُ، وَالثُّلُثُ كَثِيرٌ، أَنْ تَدَعَ وَرَثَتَكَ أَغْنِيَاءَ خَيْرٌ مِنْ أَنْ تَدَعَهُمْ عَالَةً، يَتَكَفَّفُونَ النَّاسَ فِي أَيْدِيهِمْ، وَمَهْمَا أَنْفَقْتَ فَهُوَ لَكَ صَدَقَةٌ حَتَّى اللُّقْمَةَ تَرْفَعُهَا فِي فِي امْرَأَتِكَ، وَلَعَلَّ اللَّهَ يَرْفَعُكَ، يَنْتَفِعُ بِكَ نَاسٌ وَيُضَرُّ بِكَ آخَرُونَ». [ر: ۵۶]

حضرت سعدبن ابی وقاص رضی الله عنه فرمائی چې مکه مکرمه کښې ځه بیمار اووم. نبی کریم صلی الله علیه وسلم ځما عیادت دپاره راغلې وو، ما عرض اوکړو چې ماسره مال دې، آیا ځه دخپل ټول مال وصیت اوکړم. نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چې نه، ما تپوس اوکړو چې دنیم مال، حضور نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چې نه، ما عرض اوکړو چې دثلث، حضور نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چې کولې شې. اګر چې دا هم زیات دې، بیا ئې اوفرمائیل چې خپل رشته دار مالدار پریښودل تالره ددې نه زیات بهتر دی چې ته هغوی داسې حالت کښې پریږدې چې هغوئ خلقو ته لاس نیسی، ته چې په دوئ باندې ځه هم خرچ کوې هغه ستا دپاره صدقه ده. تر دې

---

[1] فتح الباری :۶۲۲/۹، تعلیق التعلیق: ۴۸۰/۴، عمدة القاری :۲۱/۲۱، وارشاد الساری :۱۲/ ۱۲۱، ۱۲۲).

[2] وارشاد الساری :۱۲۳/۱۲، فتح الباری :۶۲۲/۹).

[3] کشف الباری :۷۴۴/۲، باب ماجاء ان الاعمال باالنیة والحسبة).

پورې چې نمړئی هم چې ته دخپلې ښځې په خله کښې ورکوې.

**قوله:** العالة: الفقراء يتكففون: يمدون أكفهم يسألون الناس: دا حديث پاك كتاب الوصايا كښې تير شوې دې، هلته دې باندې تفصيلى بحث شوې دې.

## ۲=بَابُ وُجُوبِ النَّفَقَةِ عَلَى الْأَهْلِ وَالْعِيَالِ.

امام بخاری رحمه الله په اول باب کښې د نفقه فضیلت او په دې باب کښې د وجوب ذکر فرمائیلې دې، داهل وعیال نفقه بالاجماع واجب ده (۱)

**نفقه کښې به دچا دحالت اعتبار وی:** البته په دې کښې اختلاف دې چې نفقه واجب کیدو نه پس به دچا د حالت اعتبار وی، دخاوند د حالت یا دښځې دحالت؟

① د حضرت امام شافعی رحمه الله مسلك دادې چې په دې کښې دخاوند د حالت اعتبار به وی، خاوند که مالدار وی نو نفقه د اغنیاء به واجب وی. که غریب وی نو نفقه د فقراء به واجب وی. (۲) صاحب هدایه په احنافو کښې د امام کرخی رحمه الله هم دا مسلك نقل کړې دې. (۳) اوعلامه ظفر احمد عثمانی رحمه الله په اعلاء السنن کښې هم دې قول دحنفیه ته ظاهر الروایت وئیلې دې. (۴)

ددې مسلك دلیل یو خو دا یو آیت دې چې [لِيُنْفِقْ ذُو سَعَةٍ مِّن سَعَتِهِ ۖ وَمَن قُدِرَ عَلَيْهِ رِزْقُهُ فَلْيُنفِقْ مِمَّا آتَاهُ اللَّهُ ۚ] (۵) آیت کریمه کښې دسړی د حالت اعتبار کړې شوې دې چې هغه دخپل وسعت او خپل استطاعت مطابق خرچ کړی.

دویم دلیل د حضرت معاویه قشیری رحمه الله هغه حدیث دې چې کوم امام ابو داود رحمه الله، امام نسائی رحمه الله، ابن ماجه رحمه الله، حاکم رحمه الله او ابن حبان رحمه الله نقل کړې دې. هغه فرمائی چې «اتيت رسول الله ﷺ فقلت ما تقول فى نسائنا: قال: فَأَطْعِمُوهُمْ مِمَّا تَأْكُلُونَ واكسوهن مماتكتسون ولا تضربوهن ولا تقبحوهن» په دې حدیث کښې به د سړی د حالت اعتبار شوې دې.

② دویم مسلك د امام مالك رحمه الله دې، د دوی په نیزد اول مسلك بالکل برعکس نفقه کښې ښځې د حالت اعتبار به وی. ښځه که ما لداره وی نو نفقة د اغنیاء اوکه غریبه وی نو نفقة فقراء به واجب وی. ابن قدامه په المغنی کښې امام ابوحنیفه رحمه الله همدا قول نقل کړې دې. (۶)

ددې مسلك دلیل دا آیت کریمه دې [وَعَلَى الْمَوْلُودِ لَهُ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ ۚ] په دې آیت مبارك کښې «مَعْرُوفِ» نه مراد کفایت دی یعنی د ښځې حالت اعتبار نه هغه نفقه دده دپاره کفایت

---

(۱) شرح البخاری لابن بطال:۷/۵۳۰، فتح الباری : ۹/۶۲۵، عمدة القاری:۲۱/۱۳).

(۲) المغنی ابن قدامة کتاب النفقات:۸/۱۵۷).

(۳) الهدأية باب النفقة:۲/۴۳۷)

(۴) اعلا.السنن ابواب الفقر باب تعتبر حال الزوج فی الفقر: ۱۱/۲۸۹).

(۵) سورة الطلاق الا:۷)

(۶) اعلادالسنن:۱۱/۲۸۹)

او کړي.([1])

دويم دليل د هنده رضي الله عنها حديث دې چې حضور نبی کريم ﷺ هغې ته فرمائيلي وو چې «خذي ما يكفيك وولدك بالمعروف» په دې کښې دخاوند دحالت اعتبار په ځائې دحضرت هنده رضي الله عنها دپاره کفايت کولو پيش نظر ايښودې شوې دې.([2]).

③ حضرات حنابله مسلك دې چې د ښځې خاوند د واړو د حالت اعتبار به کولې شی([3])د رمختار کښې دی چې هم دا د حضرات حنفيه مفتی به قول دې.([4]) يعنی که دواړه مالدار دی نو نفقه اغنياء، دواړه تنګدست دی نو نفقه فقراء، او که ښځه تنګدسته ده نو ددې نفقه داغنياء د نفقه نه کمه او د فقراء د نفقه نه به زياده وی.

ددې مسلك دليل دادې چې [لِيُنْفِقْ ذُوسَعَةٍ مِنْ سَعَتِهِ] کښې به دخاوند د حالت اعتبار وی. او د وَعَلَى الْمَوْلُودِ لَهُ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ کښې به د ښځې د حالت اعتبار وی، نو د ښځې خاوند دواړو دحالت اعتبار به وی او په دواړو آيتونو به عمل ممکن وی. نو ابن قدامه رحمه الله فرمائی په :«ولنا فيما ذكرناه جمعا بين الدليلين وعملا بكلا النصين و رعاية لكلا الجانبين فيكون أولى»

[۵۰۴۰] حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ حَدَّثَنَا أَبُو صَالِحٍ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو هُرَيْرَةَ-رضي الله عنه-قَالَ قَالَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم-«أَفْضَلُ الصَّدَقَةِ مَا تَرَكَ غِنًى، وَالْيَدُ الْعُلْيَا خَيْرٌ مِنَ الْيَدِ السُّفْلَى، وَابْدَأْ بِمَنْ تَعُولُ». تَقُولُ الْمَرْأَةُ إِمَّا أَنْ تُطْعِمَنِي وَإِمَّا أَنْ تُطَلِّقَنِي. وَيَقُولُ الْعَبْدُ أَطْعِمْنِي وَاسْتَعْمِلْنِي. وَيَقُولُ الاِبْنُ أَطْعِمْنِي، إِلَى مَنْ تَدَعُنِي فَقَالُوا يَا أَبَا هُرَيْرَةَ سَمِعْتَ هَذَا مِنْ رَسُولِ اللَّهِ-صلى الله عليه وسلم-. قَالَ لاَ هَذَا مِنْ كِيسِ أَبِي هُرَيْرَةَ.

[۵۰۴۱] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ خَالِدِ بْنِ مُسَافِرٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ-صلى الله عليه وسلم-قَالَ«خَيْرُ الصَّدَقَةِ مَا كَانَ عَنْ ظَهْرِ غِنًى، وَابْدَأْ بِمَنْ تَعُولُ».[ر: ۱۳۶۰]

**قوله**: افضل الصدقة ما ترك غنى: افضل صدقه هغه ده چې څه نه څه مالداری پريږدی، يعنی ددې په وجه سړې بالکل مفلس پاتې نشی، بلکه څه مالداری قائمه پاتې شی. داد صدقه بهترين قسم دې. سړې د ټول مال دومره صدقه اوکړی چې ده سره څه نه څه پاتې شی. دا د ړومبی صورت په نسبت غير افضل دې. ځکه په دې کښې ويره ده چې هسې نه دا سړې مفلس شی او بل ته لاس اونيسی. دا شان په دې صورت کښې بعضې واجب

[1]) المغنى لابن قدامة: ۱۵۶/۸)

[2]) المغنى لابن قدامة : ۱۵۶/۸)

[3]) المغنى لابن قدامة : ۱۵۶/۸).

[4]) الدر المختار : باب النفقة:۷۰۱/۲).

حقوق ادا کول هم متاثره کیدیشی. مخکښې فرمائی چې «اَلْیَدُ الْعُلْیَا خَیْرٌ مِنَ الْیَدِ السُّفْلَی» په دې «یَدُ الْعُلْیَا» نه ورکولو والا لاس او «یَدِ السُّفْلَی» نه غوښتوونکې لاس مراد دې او ظاهر دی چې ورکول د اخستلو نه بهتر دی.

**قوله**: وَابْدَأْ بِمَنْ تَعُولُ :خرچ کولو کښې ابتداء د اهل وعیال نه پکار دی. په دې جمله کښې هم ددې حکم دې. ځکه چې په دوئ باندې خرچ کول واجب دی. او د واجب ادا کول په نفلو باندې مقدم دی. «مَنْ تَعُولُ» کښې ښځه او نابالغ اولاد خوبالاتفاق داخل دی، البته بالغ کیدو نه پس د اولاد په نفقه وجوب کیدو کښې اختلاف دې. دبعضې علماء کرامو په نز د د اولاد نفقه مطلقا دپلار په ذمه واجب ده. که بالغ وی اوکه نابالغ. لیکن د جمهورو په نیز د هلك دبالغیدو اود جینئ د واده کیدو نه پس د پلار ذمې نه نفقه واجب ختمه شی

**قوله**: تَقُولُ الْمَرْأَةُ إِمَّا أَنْ تُطْعِمَنِي وَإِمَّا أَنْ تُطَلِّقَنِي :دا جمله او ددې نه مخکښې جملې دحدیث مرفوع حصه نه ده. بلکه د ابو هریره رضی الله عنه کلام دې. چې په هغې کښې ابوهریره رضی الله عنه د «من تقول» تشریح کړې ده.نو امام نسائی رحمه الله فرمائی چې روایت مبارك کښې ددې تشریح شته دې، په هغې کښې دی چې «فسئل ابوهریرة من تعول یا أبا هریرة» [1]

یعنی ددوی نه تپوس اوکړې شو چې د «من تعول» مصداق څوك دی ؟. نو هغوی اوفرمائیل چې ښځه وائی چې ماباندې اوخوروه، کنی ماته طلاق راکړه، یعنی اهل وعیال کښې خو یو ښځه ده.

**خاوند نادارہ کیدو په صورت کښې ښځه نکاح فسخ کولی شی؟** : دې جمله نه د جمهورو علماء کرامو یومختلف فیه مسئله کښې د خپل مسلك دپاره استدلال کړې دې. مسئله داده که خاوند تنګدست اونادار شی.داشان چې هغه د نفقه په ورکولو قادر نه وی نوداسې صورت کښې به ښځې ته دفسخ نکاح اختیار حاصل وی که نه.

① د أئمه ثلاثه په نیز داسې صور ت کښې به ښځې ته دفسخ نکاح اختیار حاصل وی. که ښځه دخاوند د معسر او تنګدسته کیدو نه پس دده نه جدائی اوفراق غواړی نو د دواړو په مینځ کښې به تفریق راوستلې شی.

② دحضرات حنفیه په نیز په دې صورت کښې ښځې ته د فسخ نکاح اختیار نه دې حاصل بلکه هغه به صبر نه کار اخلی. ددې نفقه به ددې د خاوند په ذمه وی.د حضرت امام شافعی رحمه الله یو قول هم ددې مطابق دې[2]

أئمه ثلاثه یو خوحدیث باب نه استدلال کوی.

---

[1]) فتح الباری:۹/۶۲۶)

[2]) دمذاهبودپاره اوګورئی : نیل الأو طار :۶/۲۶۴ إعلاء السنن :۱۱/۲۹۰، ابواب النفقة وعمدة القاری: ۲۱/۱۵).

او دويم د دارقطنى د روايت نه استدلال كوى. په هغې كښې دى چې «ان النبى ﷺ قال فى الرجل لايجد ماينفق على امرأته قال يفرق بينهما»
دحضرات حنفيه طرف نه د رومبى استدلال خو دا جواب وركړې شوې دې چې اول دا جمله د مرفوع حديث نه ده. بلكه دحضرت ابو هريره رضي الله عنه د قول تشريح ده. دويم په دې كښې صرف د فراق مطالبه ده او مطالبه د فراق د فسخ د نكاح لره مستلزم نه ده.[1]
تركومې چې تعلق دى د امام دارقطنى د روايت نو ابوحاتم دې لره معلول گرز ولې دې. لهذا هغه قابل استدلال نه دې.[2]
حضرات حنفيه ددې نصوصو نه استدلال كوى چې په هغې كښې د فقر نه باوجود د نكاح ترغيب وركړې شوې دې. هغه فرمائى كه د فقرو تنگدستئ په وجه فرقت كيدلې نو بيا بهٔ په حالت د فقركښې د نكاح ترغيب نه وركړې كيدو. نوامام محمد رحمه الله فرمائى «كتاب الحجج» كښې په خپل بلاغات كښې دا روايت نقل كړې دې. «بلغنا عن النبى ﷺ ان رجلا اتاه يشكو اليه الحاجة فقال اذهب فتزوج».[3] اوامام محمد رحمه الله بلاغات د حضرات حنفيه په نيز حجت دې.[4]
داشان امام ثعلبى رحمه الله په خپل تفسير كښې او ديلمى رحمه الله د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه مرفوع روايت نقل كړې دې چې د هغې الفاظ دى چې «التمسوا الرزق بالنكاح».[5]
امام حاكم په مستدرك كښې روايت نقل كړې دې چې «تزوجوا النساء فانهن يأتين بالمال» حاكم فرمائى چې دا حديث على شرط الشيخين دې.[6] اوعلامه ذهبى رحمه الله په تلخيص كښې ددې تائيد كړې دې.[7]
په مجمع الزوائد كښې ددې روايت د صحت باره كښې دې چې «ورجاله رجال الصحيح علا مسلم بن جنادة وهو ثقة».[8]
د دې ټولو نصونو نه خبره معلومه شوه چې دسړى غريب كيدل اولاس خالى كيدل د فسخ نكاح سبب نه دى جوړيدل پكار والله اعلم.

**قوله**: وَيَقُولُ الِابْنُ أَطْعِمْنِي، إِلَى مَنْ تَدَعُنِي: خوئې پلار ته وائى چه ماته خوراك

---

[1] اعلاء السنن: ۱۱/۲۹۱).
[2] نيل الاوطار: ۶/۲۶۳، والتلخيص الحبير: ۲/۳۲۳).
[3] إعلاء السنن: ۱۱/۲۹۱).
[4] إعلاء السنن: ۱۱/۲۹۱).
[5] الفردوس بما ثور الخطاب للديلمى: ۱/۸۸، رقم الحديث: ۲۸۲).
[6] المستدرک للامام الحاكم: ۲/۱۶۱كتاب النكاح).
[7] تلخيص الامام الذهبى: ۲/۱۶۱ كتاب النكاح)
[8] مجمع الزوائد ۴/۲۵۵، باب تزوجوا النساء ياتيكم بالاموال).

راكوه ته ماته حواله كوې چاته مې پريږدې. ددې جملې نه بعضې حضراتو استدلال كړې دې او وائي كه په اولاد كښې د چا سره مال وى يا د هغه كاروبار وى نو د هغه نفقه به په پلار باندې واجب نه وى ځكه چې ﴿إِلَى مَنْ تَدَعُنِي﴾ خو هغه انسان وائي چې دچا په پلار باندې د نفقه نه سوا بل څه ځيز دپاره رجوع ممكن نه وى صاحب مال او كاروبارى كس دا جمله نشي وئيلې.(١)

خوئې پلارته وائي چې ماباندې اوخوروه، ته ما چاته حواله كوې. چاته مې پريږدې. ددې جملې نه ا ستدلال كوى او بعضې حضرات وائي كه په اولاد كښې چاسره مال وى يا دده كاروبار وى نو د هغه نفقه په پلار باندې واجب نه ده. ځكه چې ﴿إِلَى مَنْ تَدَعُنِي﴾ خو به هغه انسان وائي چې دهغه دپاره دپلار د نفقې نه علاوه بل يو ځيز طرفته رجوع ممكن نه وى، صاحب مال او كاروبارى سړې دا جمله نشي وئيلې.(٢)

**قوله**: هَذَا مِنْ كِيسِ أَبِي هُرَيْرَةَ: (كيس) (د كاف كسره سره) تهيلئ ته وائي. يعنى دا تشريح ما د نبى كريم ﷺ نه نه ده آوريدلې بلكه دا خما كلام دې بعضو روايتونو كښې (كيس) (دكاف فتحه سره) دې. په معنى د عقل و دانش يعنى دا تشريح ما دخپل عقل ودانش نه كړې ده.(٣) حديث مرفوع نه دې. لكه څنګه چې مخكښې او وئيلې شو چې د امام نسائى رحمه الله روايت كښې هم ددې تصريح ده چې حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه د (من تعول) متعلق تپوس اوكړې شو. نو هغوى ددې په تشريح كښې دا جمله اووئيله:

**قوله**: خَيْرُ الصَّدَقَةِ مَا كَانَ عَنْ ظَهْرِ غِنًى: بهترينه صدقه هغه ده چې ما لدارئ سره وى، يعنى صدقه كولونه پس انسان بالكل مفلس پاتې نشى او د نورو محتاج نه وى، علامه عينى رحمه الله د ألفظ (ظهر) متعلق فرمائى چې:

(والظهر قد يزاد في مثل هذا دتساعا للكلام وتمكينا كأنه صدقة مستندة إلى ظهر قوى من المال).(٤)

## ٣ = باب حَبْسِ نَفَقَةِ الرَّجُلِ قُوتَ سَنَةٍ عَلَى أَهْلِهِ، وَكَيْفَ نَفَقَاتُ الْعِيَالِ

[٥٠٤٢] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ سَلاَمٍ أَخْبَرَنَا وَكِيعٌ عَنِ ابْنِ عُيَيْنَةَ قَالَ قَالَ لِي مَعْمَرٌ قَالَ لِي الثَّوْرِيُّ هَلْ سَمِعْتَ فِي الرَّجُلِ يَجْمَعُ لأَهْلِهِ قُوتَ سَنَتِهِمْ أَوْ بَعْضِ السَّنَةِ قَالَ مَعْمَرٌ فَلَمْ يَحْضُرْنِي، ثُمَّ ذَكَرْتُ حَدِيثًا حَدَّثَنَاهُ ابْنُ شِهَابٍ الزُّهْرِيُّ عَنْ مَالِكِ بْنِ أَوْسٍ عَنْ عُمَرَ رضى الله عنه أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - كَانَ يَبِيعُ نَخْلَ بَنِي النَّضِيرِ، وَيَحْبِسُ

---

(١) فتح البارى :٩/٦٢٦، و ارشاد السارى:١٢/١٢٦).

(٢) فتح البارى :٩/٦٢٦، و ارشاد السارى:١٢/١٢٦).

(٣) عمدة القارى :٢١/١٤، وارشاد السارى :١٢/١٢٧، فتح البارى:٩/٦٢٦).

(٤) عمدة القارى: ٢١/١٥)؟

لأهله قوت سنتهم.

[٥٠٤٣] حدثنا سعيد بن عفير قال حدثني الليث قال حدثني عقيل عن ابن شهاب قال أخبرني مالك بن أوس بن الحدثان وكان محمد بن جبير بن مطعم ذكر لي ذكرا من حديثه، فانطلقت حتى دخلت على مالك بن أوس فسألته فقال مالك انطلقت حتى أدخل على عمر، إذ أتاه حاجبه يرفا فقال هل لك في عثمان وعبد الرحمن والزبير وسعد يستأذنون قال نعم. فأذن لهم- قال فدخلوا وسلموا فجلسوا، ثم لبث يرفا قليلا فقال لعمر هل لك في علي وعباس قال نعم. فأذن لهما، فلما دخلا سلما وجلسا، فقال عباس يا أمير المؤمنين اقض بيني وبين هذا. فقال الرهط عثمان وأصحابه يا أمير المؤمنين اقض بينهما، وأرح أحدهما من الآخر. فقال عمر اتئدوا أنشدكم بالله الذي به تقوم السماء والأرض، هل تعلمون أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال «لا نورث ما تركنا صدقة». يريد رسول الله صلى الله عليه وسلم نفسه. قال الرهط قد قال ذلك. فأقبل عمر على علي وعباس فقال أنشدكما بالله هل تعلمان أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال ذلك قالا قد قال ذلك. قال عمر فإني أحدثكم عن هذا الأمر، إن الله كان خص رسوله صلى الله عليه وسلم في هذا المال بشيء لم يعطه أحدا غيره، قال الله (ما أفاء الله على رسوله منهم فما أوجفتم عليه من خيل) إلى قوله (قدير). فكانت هذه خالصة لرسول الله صلى الله عليه وسلم والله ما احتازها دونكم ولا استأثر بها عليكم، لقد أعطاكموها وبثها فيكم، حتى بقي منها هذا المال، فكان رسول الله صلى الله عليه وسلم ينفق على أهله نفقة سنتهم من هذا المال، ثم يأخذ ما بقي، فيجعله مجعل مال الله، فعمل بذلك رسول الله صلى الله عليه وسلم حياته، أنشدكم بالله، هل تعلمون ذلك قالوا نعم. قال لعلي وعباس أنشدكما بالله هل تعلمان ذلك قالا نعم. ثم توفى الله نبيه صلى الله عليه وسلم فقال أبو بكر أنا ولي رسول الله صلى الله عليه وسلم فقبضها أبو بكر يعمل فيها بما عمل به فيها رسول الله صلى الله عليه وسلم وأنتما حينئذ وأقبل على علي وعباس تزعمان أن أبا بكر كذا وكذا، والله يعلم أنه فيها صادق بار راشد تابع للحق، ثم توفى الله أبا بكر فقلت أنا ولي رسول الله صلى الله عليه وسلم وأبي بكر، فقبضتها سنتين أعمل فيها بما عمل رسول الله صلى الله عليه وسلم وأبو بكر، ثم جئتماني وكلمتكما واحدة وأمركما جميع، جئتني تسألني نصيبك من ابن أخيك، وأتى هذا يسألني نصيب امرأته من أبيها، فقلت إن شئتما دفعته إليكما على أن عليكما عهد الله وميثاقه لتعملان فيها بما عمل به رسول الله صلى الله عليه وسلم- وبما عمل به فيها أبو

بَكْرٍ، وَبِمَا عَمِلْتُ بِهِ فِيهَا، مُنْذُ وَلِيتُهَا، وَإِلاَّ فَلاَ تُكَلِّمَانِي فِيهَا فَقُلْتُمَا ادْفَعْهَا إِلَيْنَا بِذَلِكَ. فَدَفَعْتُهَا إِلَيْكُمَا بِذَلِكَ، أَنْشُدُكُمْ بِاللَّهِ هَلْ دَفَعْتُهَا إِلَيْهِمَا بِذَلِكَ فَقَالَ الرَّهْطُ نَعَمْ. قَالَ فَأَقْبَلَ عَلَى عَلِيٍّ وَعَبَّاسٍ فَقَالَ أَنْشُدُكُمَا بِاللَّهِ هَلْ دَفَعْتُهَا إِلَيْكُمَا بِذَلِكَ قَالاَ نَعَمْ. قَالَ أَفَتَلْتَمِسَانِ مِنِّي قَضَاءً غَيْرَ ذَلِكَ، فَوَالَّذِي بِإِذْنِهِ تَقُومُ السَّمَاءُ وَالأَرْضُ لاَ أَقْضِي فِيهَا قَضَاءً غَيْرَ ذَلِكَ، حَتَّى تَقُومَ السَّاعَةُ، فَإِنْ عَجَزْتُمَا عَنْهَا فَادْفَعَاهَا فَأَنَا أَكْفِيكُمَاهَا. [ر: ٢٧٤٨]

حضرت امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې وئيل غواړي چې سړي دخپل اهل وعيال دپاره که دټول کال غله محفوظ کوی نو دا جائزدی. اوپه دې کښې هيڅ باك نشته دې. ځکه نبی کريم ﷺ دخپل اهل وعيال دپاره د يو کال غله محفوظ کړې ساتله

**يو اشکال او د هغې جواب:** په دې باندې يو اشکال دا کيدې شي چې امام ترمذی رحمه الله په شمائل ترمذی کښې يو حديث نقل کوی چې «**کان النبی لايدخر شيئا لغد**» [1] چې نبی کريم ﷺ به سبا دپاره هم څه څيز نه پريښودو او دلته د ټول کال ذکر دې

ددې جواب دادې چې د شمائل ترمذی روايت د نبی کريم ﷺ ذات سره مخصوص دې او دلته د اهل و عيال دپاره دغلې د فراهمئ ذکر دې، ددې وجې تعارض نشته دی. [2]

**د غلې ذخيره کولو موده څومره پکار ده ؟:** بعضې صوفياء کرامو د روايت باب نه استدلال کړې دې او وئيلې ئې دی چې يو کال نه زياته غله فراهم کول به د سنت نه خلاف وی. [3]

ليکن ابن جرير رحمه الله ددې روايت نه استدلال کړې دې چې مطلقا دغلې فراهمی درست ده، که يو کال دپاره وی او که ددې نه زياته ولې نه وی. [4]

په دې استدلال باندې اشکال کيږی چې روايت کښې خو ديو کال تصريح ده، مطلقا د غلې د فراهمئ جواز ددې نه څنګه اخذ کولې شی ؟

ددې جواب دادې چې دا ورکولې شی چې دراصل د نبی کريم ﷺ په خدمت کښې چې کومه غله او دخوراك څيز به راتلو، هغه عام طور وو او يا کهجورې به راتلې او عام طور سره دا څيزونه کال په کال به نوی نوی راتلل، ځکه نبی کريم ﷺ ټول کال نه د زياتو اهتمام نه کولو.

بهر حال د حديث الفاظ که اوکتلې شی نو ددې نه معلوميږی چې يو کال دپاره نبی کريم ﷺ د غلې د فراهمئ اهتمام کړې وو، ليکن که په دې معنی باندې غور اوکړې شی نو بيا دابن جرير طبری رحمه الله استدلال قوی معلوميږی. [5]

څينې صوفياء کرام وائی چې سبا دپاره د غلې د فراهمئ انتظام کول خلاف توکل دی، ليکن

---

[1] شمائل الرترمذی باب ماجاء فی خلق رسول الله ﷺ:٢٩٣، رقم الحديث:٣٥٥).

[2] فتح البارى :٦٢٩/٩، ارشادالسارى ١٢٧/١٢).

[3] فتح البارى :٦٢٩/٩).

[4] فتح البارى:٦٢٩/٩).

[5] فتح البارى :٦٢٩/٩).

صحیح دادی چې د خلقو احوال مختلف وی، د ځینې حضراتو حالات داسې وی چې د دوئ دپاره دصبا دپاره انتظام کول هم منافی توکل په نظر رازی، او د ځینو حالات داسې وی چې د هغوئ دپاره دصبا څه چې ددې نه زیات اهتمام کول ضروری وی.
دې باب کښې چې کوم طویل حدیث ذکرکړې شوې دې، دا په کتاب المغازی کښې تفصیل سره تیر شو یدې. (۱)د ترجمة الباب د رومبئ حصې مناسبت خو د حدیث پاك نه ظاهر دې د دوئمې حصې «وکیف نفقات العیال» مناسبت بیانوی. او حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې:
«رأیت أنه یمکن منه أن یوخذ منه دلیل التقدیر لان مقدار السنة اذا عرف، عرف منه توزیعها علی ایام السنة فیعرف حصة کل یوم من ذالك فکأنه قال: لکل واحدة فی کل یوم قدر معین من المغل المذکور والاصل فی الاطلاق التسویة» [فتح الباری :۹/۶۲۸، (مغل) غله ورکوئنکئ پټې]
یعنی ددې حد یث نه د نفقه مقدار دلیل اخذ کولې شی، ځکه چې کله د ټول کال نفقه معلوم شی نو د کال په ورځو باندې دا تقسیمول هم معلومیږی چې هرې ورځې په حصه کښې د نفقه څومره مقدار راغلو.

## ۴= باب وَقَالَ اللَّهُ تَعَالَى (وَالْوَالِدَاتُ يُرْضِعْنَ أَوْلَادَهُنَّ حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ لِمَنْ أَرَادَ أَنْ يُتِمَّ الرَّضَاعَةَ

إِلَى قَوْلِهِ (بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ) وَقَالَ (وَحَمْلُهُ وَفِصَالُهُ ثَلَاثُونَ شَهْرًا) وَقَالَ (وَإِنْ تَعَاسَرْتُمْ فَسَتُرْضِعُ لَهُ أُخْرَى * لِيُنْفِقْ ذُو سَعَةٍ مِنْ سَعَتِهِ وَمَنْ قُدِرَ عَلَيْهِ رِزْقُهُ) إِلَى قَوْلِهِ (بَعْدَ عُسْرٍ يُسْرًا). وَقَالَ يُونُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ نَهَى اللَّهُ أَنْ تُضَارَّ وَالِدَةٌ بِوَلَدِهَا وَذَلِكَ أَنْ تَقُولَ الْوَالِدَةُ لَسْتُ مُرْضِعَتَهُ. وَهِيَ أَمْثَلُ لَهُ غِذَاءً، وَأَشْفَقُ عَلَيْهِ، وَأَرْفَقُ بِهِ مِنْ غَيْرِهَا، فَلَيْسَ لَهَا أَنْ تَأْبَى بَعْدَ أَنْ يُعْطِيَهَا مِنْ نَفْسِهِ مَا جَعَلَ اللَّهُ عَلَيْهِ، وَلَيْسَ لِلْمَوْلُودِ لَهُ أَنْ يُضَارَّ بِوَلَدِهِ وَالِدَتَهُ، فَيَمْنَعَهَا أَنْ تُرْضِعَهُ ضِرَارًا لَهَا إِلَى غَيْرِهَا فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا أَنْ يَسْتَرْضِعَا عَنْ طِيبِ نَفْسِ الْوَالِدِ وَالْوَالِدَةِ، فَإِنْ أَرَادَا فِصَالًا عَنْ تَرَاضٍ مِنْهُمَا وَتَشَاوُرٍ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا، بَعْدَ أَنْ يَكُونَ ذَلِكَ عَنْ تَرَاضٍ مِنْهُمَا وَتَشَاوُرٍ، (فِصَالُهُ) فِطَامُهُ.

ترجمة الباب کښې امام بخاری رحمه الله درې آیتونه ذکر کړی دی، رومبی آیت مبارك د پئ ورکوئنکې ښځې دپاره دنفقې په وجوب باندې دلالت کوی، دویم آیت «وَحَمْلُهُ وَفِصَالُهُ....» د رضاعت د مودې مقدار ښائی، اود دریم آیت مبارك کښې دا خبره بیان شویده چې په اتفاق کښې خرچ کولو والا د حالت په اعتبار سره بهٔ وی (۲)
**قوله**: وَقَالَ يُونُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ: فرمائی چې الله جل جلاله دا خبره منع فرمائیلې ده چې

---
(۱) کشف الباری، کتاب المغازی باب حدیث بنی النضیر:۱۸۶، ۱۹۱).
(۲) فتح الباری :۹/۶۳۰).

مور د بچي په وجه پلار ته نقصان اورسوی. ددې صورت دادې چې پلار ته دې دا اووائی چې څه به دې بچي ته پئ نه ورکوؤم. حالانکه ددې پئ د غذا په اعتبار سره د بچي دپاره زيات مناسب دی او د بلې ښځې په مقابله کښې هغه دبچي دپاره زياته مشفقه او همدرده (نو دانکار په صورت کښې دبچي پلار ته به تکليف وی) ددې و جې دده دپاره دا حق ادا کول چې کوم الله جل جلاله فرض کړی دی.

او داشان پلار لره هم دا اختيار نشته دې چې هغه د بچي په وجه دده مور ته تکليف اورسوی. داشان چې هغه د پئ ورکولو نه منع کړی. او يو بلې ښځې ته ددې اجازت ورکړی. (ظاهر دی چې کله مور خپل بچي ته په پئ ورکولو باندې راضی وی نو ددې باوجود پلار دې ته د پئ ورکولو اجازت نه ورکوی. بلکه بچي يو بلې ښځې ته حواله کړی نو دا خبره مور دپاره يقينی د تکليف باعث ده، داشان د بچي مور ته تکليف ورکول جائز نه دی).

**قوله: فَيَمْنَعَهَا أَنْ تُرْضِعَهُ ضِرَارًا لَهَا إِلَى غَيْرِهَا:** په دې کښې (إلى غيرها) د (يمنع) متعلق دې، (اى منعها ينتهى الى رضاع غيرها) د يونس د تعليق لره ابن وهب موصولا نقل کړې دې [1]

**قوله: (فِصَالُهُ) فِطَامُهُ:** آيت کريمه کښې د (فصال) لفظ راغلې دې، ددې تفسير (فطام) سره کړې دې، چې ددې معنی بچي د پئيو نه منع کول، دا د ابن عباس رضي الله عنهما تفسير دې، چې امام ابن طبری رحمه الله نقل کړې دې. [2]

## ٥= باب نَفَقَةِ الْمَرْأَةِ إِذَا غَابَ عَنْهَا زَوْجُهَا وَنَفَقَةِ الْوَلَدِ.

امام بخاری رحمه الله دې باب کښې دامسئله بيان کړې ده چې که خاوند غائب شی نو ددهٔ د ښځې او اولاد نفقه به ددهٔ د مال نه ورکولې شی.

د حنابله او حضرات حنيفه هم دا مسلك دې [3]

زمونږ فقهاء کرامو ليکلی دی چې که د خاوند مال دښځې په حق کښې جنس نه وی يا د ثمنين (دينارو درهم) وغيره نه ده په مال کښې موجود وی نو پدې دواړو صورتونو کښې به ښځه خپل حق ددهٔ د مال نه د نفقې دپاره وصولولې شی.

ليکن ددې دوؤ نه علاوه دمال که نور اقسام وی نو په دې صورت کښې به دقاضی د فيصلې او اجازت سره ښځې اخستې شی، ددې نه بغير نه. [4]

[٥٠٤٤]. حَدَّثَنَا ابْنُ مُقَاتِلٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا يُونُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ أَنَّ عَائِشَةَ - رضى الله عنها - قَالَتْ جَاءَتْ هِنْدُ بِنْتُ عُتْبَةَ فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ أَبَا سُفْيَانَ

---

[1]) تغليق التعليق: ٤/٤٨١، فتح البارى: ٩/٦٣٠، ٦٣١).

[2]) عمدة القارى: ٢١/١٩، ارشاد السارى: ١٢/١٣٢، فتح البارى: ٩/٦٣١).

[3]) فتح البارى: ٤/٢٠٩).

[4]) فتح القدير: ٤/٢١٠).

رَجُلٌ مِسِّيكٌ، فَهَلْ عَلَى حَرَجٌ أَنْ أُطْعِمَ مِنَ الَّذِى لَهُ عِيَالَنَا قَالَ « لاَ إِلاَّ بِالْمَعْرُوفِ».[ر:٢٠٩٧]

**قوله: رَجُلٌ مِسِّيكٌ:** (مِسِّيكٌ) يا خو د فعيل په وزن د ميم په فتحه سره او د سين په كسره سره دي او يا (مِسِّيكٌ) د ميم په كسره او د سين په مكسور مشدد سره د مبالغه صيغه ده په معنى دبخيل.(١)

[٥٠٤٥] حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ هَمَّامٍ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - عَنِ النَّبِىِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «إِذَا أَنْفَقَتِ الْمَرْأَةُ مِنْ كَسْبِ زَوْجِهَا عَنْ غَيْرِ أَمْرِهِ فَلَهُ نِصْفُ أَجْرِهِ».[ر:١٩٦٠]

دلته د يحيى نه كوم يحيى مراد دې؟ علامه كرمانى رحمه الله فرمائى چې ددې نه يحيى بن موسى (بلخى) او يحيى بن جعفر (بيكندى) دواړه مراد اخستې شى.(٢)

علامه عينى رحمه الله فرمائى چې يحيى بن جعفر مراد دې او په دې كښې د تردد ضرورت ځكه نشته دې چې په كتاب البيوع كښې دغه بعينه هم دې سند سره دا روايت تير شوې دې، او هلته د يحيى بن جعفر تصريح موجوده ده.(٣)

علامه عينى رحمه الله نه مخكښې علامه مزى رحمه الله په تحفة الاشراف كښې ددې تصريح كړې ده او وئيلى ئې دى چې دا يحيى بن جعفر دې.(٤) دا حديث پاك په يو سند او متن مكرر دې.

## ٦= باب عَمَلِ الْمَرْأَةِ فِى بَيْتِ زَوْجِهَا

[٥٠٤٦]. حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ شُعْبَةَ قَالَ حَدَّثَنِى الْحَكَمُ عَنِ ابْنِ أَبِى لَيْلَى حَدَّثَنَا عَلِىٌّ أَنَّ فَاطِمَةَ - عَلَيْهِمَا السَّلاَمُ - أَتَتِ النَّبِىَّ - صلى الله عليه وسلم - تَشْكُو إِلَيْهِ مَا تَلْقَى فِى يَدِهَا مِنَ الرَّحَى، وَبَلَغَهَا أَنَّهُ جَاءَهُ رَقِيقٌ فَلَمْ تُصَادِفْهُ، فَذَكَرَتْ ذَلِكَ لِعَائِشَةَ، فَلَمَّا جَاءَ أَخْبَرَتْهُ عَائِشَةُ - قَالَ - فَجَاءَنَا وَقَدْ أَخَذْنَا مَضَاجِعَنَا، فَذَهَبْنَا نَقُومُ فَقَالَ « عَلَى مَكَانِكُمَا ». فَجَاءَ فَقَعَدَ بَيْنِى وَبَيْنَهَا حَتَّى وَجَدْتُ بَرْدَ قَدَمَيْهِ عَلَى بَطْنِى فَقَالَ « أَلاَ أَدُلُّكُمَا عَلَى خَيْرٍ مِمَّا سَأَلْتُمَا، إِذَا أَخَذْتُمَا مَضَاجِعَكُمَا - أَوْ أَوَيْتُمَا إِلَى فِرَاشِكُمَا - فَسَبِّحَا ثَلاَثًا وَثَلاَثِينَ، وَاحْمَدَا ثَلاَثًا وَثَلاَثِينَ، وَكَبِّرَا أَرْبَعًا وَثَلاَثِينَ، فَهُوَ خَيْرٌ لَكُمَا مِنْ خَادِمٍ [ر:٢٩٤٥]

**د ښځې په ذمه د كار مسئله:** امام بخارى رحمه الله دا باب قائم كړې دې او يو مشهورې اختلافى

---

(١) عمدة القارى:٢١/ ١٩ ارشاد السارى:١٢/ ١٣٤)

(٢) شرح الكرمانى:٢٠/ ١٠، رقم الحديث: ٥٠١٦، عمدة القارى:٢١/ ١٩، ارشاد السارى:١٢/ ١٣٣).

(٣) عمدة القارى:٢١/ ١٩)

(٤) قال المزى فى تحفة الاشراف بمعرفة الاطراف : وفى النفقات (٥:٢) عن يحيى بن جعفر ولم ينسبه فى النفقات: ١٠/ ٣٩٧،رقم الحديث :١٤٦٩٥).

مسئله طرفته ئې اشاره کړې ده، مسئله داده چې د ښځې په ذمه د کور کار ضروری دې که نه. دې کښې اختلاف دې د حضرات فقهاء کرامو.

① د امام شافعی رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله مسلك دادې چې د ښځې په ذمه د کور کار ضروری او واجب نه دې. (لان عقد النکاح یتناول الاستمتاع لا الخدمة) (١)

حدیث پاك په ظاهره د دوئ د مسلك خلاف دې ځکه چې په دې کښې دی چې فاطمه رضي الله عنها به د علی رضي الله عنه په کور کښې د کور کار کولو.

د دې باب په جواب کښې دا حضرات وائی چې فاطمه رضي الله عنها به د خپلو اوچتو اخلاقو او اوچتو عادتونو په وجه داسې کول، د دې وجه دا نه وه چې د کور کار د هغې په ذمه ضروری وو. (٢)

② مالکیه حضرات فرمائی چې که خاوند صاحب وسعت وی او ښځه هم صاحب حیثیت وی نو داسې صورت کښې د ښځې په ذمه د کور کار واجب نه دې بلکه د خاوند په ذمه لازم دې چې هغه د ښځې د پاره خادم مقرر کړی، بیا هم که ښځه د غریبی کورنۍ نه د کار کوؤنکی یو ښځه وی یا ښځه خو صاحب حیثیت وی لیکن د خاوند کمزورې دې نو په دې دواړو صورتونو کښې د ښځې په ذمه د کور کار ضرروی او واجب دې. (٣)

③ د حضرات حنیفه مسلك هم د مالکیه ته نزدې دې، هغوئ فرمائی چې خاوند مالدار وی نو د کور خدمت د ښځې په ذمه نه ده بلکه د خاوند په ذمه وې لره خادم ساتل واجب دی، او که خاوند غریب او مالی لحاظ سره کمزورې وی نو په دې صورت کښې د ښځې په ذمه د کور کار دیانتا واجب دې.

شمس العلماء سرخسی رحمه الله فرمائی که ښځه په دې صورت کښې د کور کار نه انکار اوکړی نو په هغې باندې جبر نشته دې، البته داسې حالت کښې د خاوند په ذمه د روټۍ پخکړې وغیره فراهمی ضروری نه ده.

**قوله** : أَلَا أَدُلُّكُمَا عَلَى خَيْرٍ مِمَّا سَأَلْتُمَا: د دې جملې نه یو مطلب خو دا اخذ کولې شی چې تسبیح فاطمی سره سړی ته داسې قوت او طاقت ملاویږي چې د خادم د قوت نه به زیات وی او د مختلفو امورو انجام ته رسول د انسان د پاره آسان او سهل شی.

لیکن دویم مطلب دادې چې د کوم زیات ظاهر دې چې د د تسبیح او ذکر فائده آخرت سره خاص ده او د خادم فائده د دنیا سره مختص ده او آخرت د دنیا په مقابله کښې زیات بهتر او دائمی دې. (٤)

---

(١) المغنی لابن قدامة کتاب عشرة النساء: ٧/٢٢٥، ولا مع الدراری: ٩/٣٧٧).

(٢) لا مع لدراری: ٩/٣٨٩).

(٣) لا مع لدراری: ٩/٣٨٩).

(٤) لا مع لدراری: ٩/٣٨٩).

## ٧=باب خادم المرأة

[۵۰۴۷] حدثنا الحميدي حدثنا سفيان حدثنا عبيد الله بن أبي يزيد سمع مجاهدا سمعت عبد الرحمن بن أبي ليلى يحدث عن علي بن أبي طالب أن فاطمة -عليها السلام- أتت النبي -صلى الله عليه وسلم- تسأله خادما فقال «ألا أخبرك ما هو خير لك منه، تسبحين الله عند منامك ثلاثا وثلاثين، وتحمدين الله ثلاثا وثلاثين، وتكبرين الله أربعا وثلاثين». -ثم قال سفيان إحداهن أربع وثلاثون- فما تركتها بعد، قيل ولا ليلة صفين قال ولا ليلة صفين. [ر:۲۹۴۵]

امام بخاری ﷫ ددې باب لاندې د علی ﷜ او فاطمه ﷝ د کورنۍ ژوند متعلق د نبی کریم ﷺ ارشاد مبارك نقل کوی او دې خبرې طرفته اشاره کوی که ښځه د کور د کار کولو استطاعت لری نو په خاوند باندې لازم نه دی چې ددې دپاره خادم اونیسی.

خوکه ښځه دکور دکار او دخوراك وغيره پخولو طاقت نه لری لکه بیماره وی نو داسې صورت کښې د خاوند په ذمه خوراك تیارول او انتظام کول او دخادم مهیا کول ضروری دی، د ښځې د خادم نفقه هم دخاوند په ذمه واجب ده. ([1])

## ۸=باب خدمة الرجل في أهله

[۵۰۴۸]. حدثنا محمد بن عرعرة حدثنا شعبة عن الحكم بن عتيبة عن إبراهيم عن الأسود بن يزيد سألت عائشة -رضى الله عنها- ما كان النبي -صلى الله عليه وسلم- يصنع في البيت قالت كان في مهنة أهله، فإذا سمع الأذان خرج. [ر:۶۴۴]

امام بخاری ﷫ په دې ترجمة الباب کښې وئیل غواړی چې سړی لره پکار دی چې کله هغه په کور کښې وی نو د کور په کارونو کښې دې مدد کوی او دکوروالو سره دې مدد کوی، نبی کریم ﷺ بۀ هم په کور کښې مختلفو کارونو کښې مصروف وو او دکور ضروریات پوره کولو دپاره ئې مددد کولو، شارح بخاری ابن بطال د مهلب حوالې سره فرمائی چې:

«فمن السنة يمتهن الانسان نفسه في بيته يحتاج اليه من امر دنياه وما يعينه على دينه وليس الترفه في هذا بمحمود ولا من سبيل الصالحين وانما ذالك من سير الاعاجم» ([2])

شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا ﷫ فرمائی چې حدیث باب نه په کور کښې د کو ر کار د کولو استحباب معلومیږی. ([3])

**قوله: كان في مهنة أهله:** «مهنة» د میم په کسر سره او فتحه دواړو سره وئیلې کیږی،

---

[1]) هداية: ۴۳۹/۲، الانصاف: ۳۵۷/۹، در مختار: ۷۱۱/۲).

[2]) شرح ابن ابطال :۵۴۲/۷).

[3]) الابواب والترجم:۸۶/۲، عمدة القارى:۲۱/ ۲۱).

دهاء په سکون دې، کار ته اوپه خدمت کښې مهارت ته وائی د احدیث پاك په کتاب الصلاة کښې تیر شوې دې. [1]

## ٩=باب إِذَا لَمْ يُنْفِقِ الرَّجُلُ فَلِلْمَرْأَةِ أَنْ تَأْخُذَ بِغَيْرِ عِلْمِهِ مَا يَكْفِيهَا وَوَلَدَهَا بِالْمَعْرُوفِ

[٥٠٤٦]. حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ هِشَامٍ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبِي عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ هِنْدَ بِنْتَ عُتْبَةَ قَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ أَبَا سُفْيَانَ رَجُلٌ شَحِيحٌ، وَلَيْسَ يُعْطِينِي مَا يَكْفِينِي وَوَلَدِي، إِلاَّ مَا أَخَذْتُ مِنْهُ وَهُوَ لاَ يَعْلَمُ فَقَالَ «خُذِي مَا يَكْفِيكِ وَوَلَدَكِ بِالْمَعْرُوفِ». [ر: ٢٠٩٧]

پدې باب کښې امام بخاری رحمه الله وئیل غواړی که خاوند ښځې ته نفقه نه ورکوی او خرچه هم نه ورکوی نو د ښځې دپاره جائز دی چې هغه دخاوند د اجازت نه بغیر ددهٔ په مال کښې عرفا چې څومره دې او ددهٔ د اولاد د پاره کافی کیږی واخلی. ددې نه وړاندې یو باب تیر شوې دې که خاوند غائب وی نو ښځهٔ دخاوند د مال نه اخستې شی او په دې باب کښې د خاوند د حاضریدو په صورت کښې نفقه نه ورکولو متعلق اووئیلې شو چې ښځه په قدر د ضرورت اوکفایت اخستې شی، نو دواړو ترجمو کښې تکرار نشه دې. [2]

## ١٠=باب حِفْظِ الْمَرْأَةِ زَوْجَهَا فِي ذَاتِ يَدِهِ وَالنَّفَقَةِ

حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا ابْنُ طَاوُسٍ عَنْ أَبِيهِ وَأَبُو الزِّنَادِ عَنِ الأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم قَالَ «خَيْرُ نِسَاءٍ رَكِبْنَ الإِبِلَ نِسَاءُ قُرَيْشٍ وَقَالَ الآخَرُ صَالِحُ نِسَاءِ قُرَيْشٍ - أَحْنَاهُ عَلَى وَلَدٍ فِي صِغَرِهِ، وَأَرْعَاهُ عَلَى زَوْجٍ فِي ذَاتِ يَدِهِ». وَيُذْكَرُ عَنْ مُعَاوِيَةَ وَابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم-. [ر: ٣٢٥١]

ړومبی باب کښې خو دا وئیلې شوی وو چې د خاوند په مال کښې دومره مال اخستې شی چې ددې او ددې د اولاد دپاره کافی وی، داجائز دی، په دې باب کښې دا وئیل غواړی چې دخپل ځان او اولاد د ضرورت نه زیات د خاوند مال نه دښځې دپاره دخاوندد د اجازت نه بغیر څه اخستل جائز نه دی.

ترجمة الباب کښې «ذَاتِ يَدِهِ» نه مراد مال دې، او «والنفقة» په دې باندې «عطف الخاص على العام» قبیل نه دې.

ځینو نسخو کښې د «النفقة» نه پس «علیه» اضافه ده. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې دا بلاضرورت دی. [3]

---

[1] عمدة القاری:٢١/ ٢١، ارشاد الساری:١٣٦/١٢، فتح الباری :٦٣٣/٩).
[2] الابواب والترجم :٨٦/٢).
[3] فتح الباری :٦٣٩/٩).

حديث باب په كتاب النكاح كښې تير شو ېدې اوهلته ددې تفصل هم تير شو ېدې.[1]

**قوله**: وَيُذْكَرُ عَنْ مُعَاوِيَةَ وَابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم:

دطاوس د حديث باب په شان روايت معاويه بن ابى سفيان رضي الله عنه او ابن عباس رضي الله عنهما هم نقل كړې دې كوم لره چې دا امام احمد بن حنبل رحمه الله او امام طبرانى موصولا نقل كړې دې، او د ابن عباس رضي الله عنهما روايت هم د امام احمد بن حنبل رحمه الله هم نقل كړې.[2]

## ۱۱=باب كِسْوَةِ الْمَرْأَةِ بِالْمَعْرُوفِ

[۵۰۵۱] حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ أَخْبَرَنِي عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ مَيْسَرَةَ قَالَ سَمِعْتُ زَيْدَ بْنَ وَهْبٍ عَنْ عَلِيٍّ - رضى الله عنه - قَالَ آتَى إِلَيَّ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - حُلَّةً سِيَرَاءَ فَلَبِسْتُهَا، فَرَأَيْتُ الْغَضَبَ فِي وَجْهِهِ فَشَقَقْتُهَا بَيْنَ نِسَائِي. [ر: ۲۴۷۲]

د امام بخارى رحمه الله مقصد ددې باب نه دادې چې څنګه د خاوند په ذمه د ښځې نفقه واجب ده، داشان جامه او لباس هم واجب دى، اوپه دې كښې بهٔ دخپلې خپلې علاقې اعتبار وى.[3]

امام بخارى رحمه الله چې په ترجمة الباب كښې كوم الفاظ ذكر كړى دى دا په دې حديث پاك كښې وارد دى، چې ددې تخريج امام مسلم رحمه الله كړې دې. هغه يو طويل حديث دې، چې په هغې كښې د حجة الوداع هم ذكر دې، په هغه خطبه كښې يو ځائې كښې د نبى كريم صلى الله عليه وسلم ارشاد دې چې «اتقوا الله فى النساء..... ولهن عليكم رزقهن وكسوتهن بالمعروف»[4] داحديث پاك چونكه د امام بخارى رحمه الله په شرط باندې په ترجمة الباب كښې ذكر كوى او دې طرفته اشاره كوى او ترجمة الباب لره ئې د على رضي الله عنه د حديث نه ثابت كړې دې.[5]

على رضي الله عنه فرمائى چې د نبى كريم صلى الله عليه وسلم په خدمت كښې د جامو يو ريښمى جوړا راؤړې شوه (نبى كريم صلى الله عليه وسلم هغه ماته راكړه) نو ما هغه واغوستله، ما د نبى كريم صلى الله عليه وسلم په مخ مبارك باندې غصه او خفګان اوليدو. (ځكه چې هغه ريښمو وو چې دهغې استعمالول د سړى دپاره جائز نه وو) نو ما هغه اوشلوله اوپخپلو رشته دارو ښځو مې تقسيم كړه.

حديث پاك كښې (نسائى) جمع دې، د على رضي الله عنه په هغه وخت كښې صرف يو ښځه فاطمه رضي الله عنها وه، او نورو رشته دارو ښځو ته ئې هم په دې كښې حصه وركړه، نو ددې و جې ئې د جمعې لفظ راؤړو.[6]

د حديث مناسبت د باب ظاهر دى، علامه قسطلانى رحمه الله ليكى چې:

---

[1] كشف البارى: كتاب النكاح: ۱۵۷).
[2] فتح البارى :۶۳۹/۹، عمدة القارى:۲۱/ ۲۳، ارشاد السارى:۱۳۸).
[3] شرح ابن بطال :۵۴۴/۷).
[4] صحيح مسلم كتاب الحج، باب حجة النبى صلى الله عليه وسلم : ۸۹۰/۲، رقم الحديث : ۱۴۷).
[5] فتح البارى :۶۴۰/۹).
[6] فتح البارى :۶۴۱/۹ عمدة القارى:۲۱/ ۲۳، ارشاد السارى:۱۳۹/۱۲).

«والمطابقة بين الترجمة والحديث من جهة ان الذى حصل لفاطمة رضي الله عنها من الحلة قطعة فرضيت بها اقتصادا بحسب الحال لا اسرافا» (١)

## ۱۲- باب عَوْنِ الْمَرْأَةِ زَوْجَهَا فِي وَلَدِهِ.

حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ عَمْرٍو عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ - رضى الله عنهما - قَالَ هَلَكَ أَبِي وَتَرَكَ سَبْعَ بَنَاتٍ أَوْ تِسْعَ بَنَاتٍ فَتَزَوَّجْتُ امْرَأَةً ثَيِّبًا فَقَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «تَزَوَّجْتَ يَا جَابِرُ». فَقُلْتُ نَعَمْ. فَقَالَ «بِكْرًا أَمْ ثَيِّبًا». قُلْتُ بَلْ ثَيِّبًا. قَالَ «فَهَلاَّ جَارِيَةً تُلاَعِبُهَا وَتُلاَعِبُكَ، وَتُضَاحِكُهَا وَتُضَاحِكُكَ». قَالَ فَقُلْتُ لَهُ إِنَّ عَبْدَ اللَّهِ هَلَكَ وَتَرَكَ بَنَاتٍ، وَإِنِّي كَرِهْتُ أَنْ أَجِيئَهُنَّ بِمِثْلِهِنَّ، فَتَزَوَّجْتُ امْرَأَةً تَقُومُ عَلَيْهِنَّ وَتُصْلِحُهُنَّ. فَقَالَ «بَارَكَ اللَّهُ لَكَ». أَوْ قَالَ خَيْرًا. [ر: ۴۳۲]

ددې باب مقصد دادې چې د بچی نفقه خو د خاوند په ذمه واجب وی، لیکن ښځې ته هم پکار دی چې هغوئ دې حسب استطاعت د بچو د تربیت او خسمانې کښې دخاوند مدد او هغه سره تعاون دې اوکړي.

ابن بطال رحمه الله فرمائی چې د بچو د خسمانې په سلسله کښې دخاوند سره تعاون اګر چې دښځې په ذمه واجب او فرض نه دی، بیا هم د نیك او صالحو ښځو طریقه ده چې هغوئ داشان معاملو کښې د خاوند سره تعاون کوی. (٢)

دحدیث مناسبت دباب سره ظاهر دې.

## ۱۳- باب نَفَقَةِ الْمُعْسِرِ عَلَى أَهْلِهِ.

[۵۰۵۳] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - قَالَ أَتَى النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - رَجُلٌ فَقَالَ هَلَكْتُ. قَالَ «وَلِمَ». قَالَ وَقَعْتُ عَلَى أَهْلِي فِي رَمَضَانَ. قَالَ «فَأَعْتِقْ رَقَبَةً». قَالَ لَيْسَ عِنْدِي. قَالَ «فَصُمْ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ». قَالَ لاَ أَسْتَطِيعُ. قَالَ «فَأَطْعِمْ سِتِّينَ مِسْكِينًا». قَالَ لاَ أَجِدُ. فَأُتِيَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - بِعَرَقٍ فِيهِ تَمْرٌ فَقَالَ «أَيْنَ السَّائِلُ». قَالَ هَا أَنَا ذَا. قَالَ «تَصَدَّقْ بِهَذَا». قَالَ عَلَى أَحْوَجَ مِنَّا يَا رَسُولَ اللَّهِ فَوَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ مَا بَيْنَ لاَبَتَيْهَا أَهْلُ بَيْتٍ أَحْوَجُ مِنَّا فَضَحِكَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - حَتَّى بَدَتْ أَنْيَابُهُ قَالَ «فَأَنْتُمْ إِذًا». [ر: ۱۸۳۴]

دې باب کښې د معسر او تنګدست خپل اهل وعیال باندې خرچ کولو بیان دې،

---

(١) فتح البارى :٩/ ۶۴١ عمدة القارى:٢١/ ٢٣، ارشاد السارى:١٢/ ١٣٩).

(٢) شرح ابن بطال :٧/ ۵۴۵، عمدة القارى:٢١/ ٢۴ فتح البارى :٩/ ۶۴١).

شيخ الحديث مولانا زكريا رحمه الله فرمائي چې د ترجمة الباب مقصد دادې چې اعسار او تنګدسئ په وجه د خاوند په ذمه واجب نفقه به ساقط نه وي. (۱)

**حديث نه د ترجمة الباب ثبوت:** د حديث نه ترجمة الباب داشان ثابت كړې شوې دې چې صحابى رضي الله عنه ته نبى كريم ﷺ كله چې كهجورى وركړې او د هغې د صدقه كولو دپاره ئې ورته اووئيل نو هغه اووئيل يې څه د اخپل ځان نه زيات محتاج باندې صدقه كړم ؟ حالانكه څما نه زيات محتاج څوك نشته دې، نو ددې نه د اهل وعيال دصدقې اهتمام معلوم شو، ځكه كه دا اهتمام نه وې نو صدقه كړې به وو، معلوم شو چې د تنګدست او معسر په ذمه د اهل وعيال خرچ واجب دې او ددې اهتمام كول پكار دى. (۲)

حديث باب كښې د (عرق) لفظ راغلې دې چې ددې معنى د تهيلئ.

**دغريب مورپلار او د اولاد د نفقه مسئلې:** دويمه مسئله دلته دااوګڼرئ چې مور پلار تنګدست او فقيران وى او دوئ سره څه آمدنى نه وى او نه ورسره مال وى نو داسې صورت كښې ددوئ نفقه د اولاد په مال كښې واجب ده، ابن منذر په دې باندې اجماع نقل كړې ده. (۳)

د عائشه صديقه رضي الله عنها نه روايت دې چې (انت من اطيب مااكل الرجل من كسبه وولده من كسبه) (۴)

امام ابوداؤد رحمه الله د عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده په طريق سره يو روايت نقل كړې دې چې د نبى كريم ﷺ په خدمت كښې يو سړې راغلو او عرض ئې اوكړو چې ما سره مال دې او څما بچى هم دى. او څما پلار څما د مال محتاج دې، نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چې (ان ومالك لوالدك ان اولادكم من اطيب كسبكم فكلوا من كسب اولادكم) (۵)

داشان په دې خبره باندې هم اجماع ده چې دسړى دنابالغو بچو نفقه هم ددۀ په ذمه واجب ده. كه پلار مړ شي او مور صاحب استطاعت وى نو د بچو نفقه د مور په ذمه واجب ده. د حضرات احنافو او حنابله او شوافعو هم دا مسلك دې.

امام مالك رحمه الله فرمائي چې نه دمور نفقه په چا واجب ده او نه په دې باندې د چا نفقه واجب ده. (لانفقه لها ولاعليها) (۶)

علامه موفق الدين ابن قدامه د جمهورو طرفنه د قرآن عظيم الشان آيت [[وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا]] دليل پيش كوى.

د امام ابو داؤد رحمه الله يو حديث لره هم هغوئ په استدلال كښې ذكر كړې دې چې يو صحابى راغلو او نبى كريم ﷺ نه ئې تپوس اوكړو چې (من ابر) څه چا سره احسان اوكړم ؟ نو نبى

---

(۱) الابواب والتراجم: ۸۶/۲).
(۲) الابواب والتراجم: ۸۶/۲، عمدة القارى:۶۴/۲۱).
(۳) المغنى لابن قدامة، كتاب النفقة: ۱۶۹/۸).
(۴) سنن ابى داؤد كتاب البيوع باب فى الرجل ياكل من مال ولده (رقم الحديث ۳۵۲۸).
(۵) سنن ابى داؤد كتاب البيوع باب فى الرجل ياكل من مال ولده (رقم الحديث ۳۵۲۸).
(۶) المغنى لابن قدامة :۱۲۹/۸).

كريم ﷺ اوفرمائيل چې (امك، ثم امك ثم امك ثم اباك ثم الاقرب فالاقرب) [1]
نو په دې کښې دمور د ذکر ډېر اهميت راغلې دې، ددې و جې که هغه محتاجه وی نو د هغې نفقه د اولاد په ذمه واجب ده. [2]

## ۱۴=باب (وَعَلَى الْوَارِثِ مِثْلُ ذَلِكَ) [البقرة:۲۳۳]

## وَهَلْ عَلَى الْمَرْأَةِ مِنْهُ شَيْءٌ (وَضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا رَجُلَيْنِ أَحَدُهُمَا أَبْكَمُ) [3] إِلَى قَوْلِهِ (صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ) [النحل]

**په ايت مبارک کښې د وارث نه مراد څوک دی؟** دې آيت مبارك کښې د وارث په تفسير کښې اختلاف دې.

① يو قول دادې چې وارث نه پخپله بچې مراد دې اومطلب دادې چې د پلار د مرګ په صورت کښې د بچی مال کښې ددهٔ پيئو خرچه به واجب وی. دا په هغه صورت کښې دی چې کله د بچی مال وی، دا د قبيصه بن ذوئب او امام ضحاك رحمه الله قول دې. [4]

② د وارث نه دبچی دپلار وارثان مراد دی، که هغه سړې وی اوکه ښځه وی، مطلب دادې چې که پلار مړ شی نو بچی ته د پئيو څکولو خرچه به دده دپلار د وراثانو په ذمه وی په قدر د ميراث. داقول د امام احمد بن حنبل رحمه الله او حسن بصری رحمه الله نه مروی دې. [5] د امام شافعی رحمه الله هم دا قول دې: [6]

③ دريم قول دادې چې د وارث نه دبچی وارثان مراد دی. يعنی د بچی د مړ کيدو په صورت کښې به چې کوم خلق ددهٔ وارثان جوړيږی، هغه مراد دی، چې دپلار د مرګ په صورت کښې په دې وارثانو باندې د ميراث په حصه کښې په قدر دخرچې واجب وی. [7]

④ د وارث نه د بچی ذی رحم محرم مراد دی دحضرات حنفيه داقول دې. ځکه چې د عبد الله

---

[1] سنن ابی داؤد كتاب الادب فی بر الوالدين : رقم الحديث :۵۱۳۹).
[2] المغنی لابن قدامة :۸/ ابواب النفقة، المغنی لابن قدامة :۱۶۹/۸).
[3] (ابكم) هوالذی ولد اخرس لا يتكلم ولا يفهم ولا يفهم (الى قول) و تتمتها ((لَا يَقْدِرُ عَلَى شَيْءٍ وَهُوَ كَلٌّ عَلَى مَوْلَاهُ أَيْنَمَا يُوَجِّهْهُ لَا يَأْتِ بِخَيْرٍ هَلْ يَسْتَوِي هُوَ وَمَنْ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ وَهُوَ عَلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ)) (كل) ثقل، (مولاه) من يتولى امره وشؤونه، (اينما) حيثما يرسله لا يقوم بما ينفع (من يامر...) سليم الحواس نفاع ذوهداية وارشاد (صراط مستقيم) سيرة صالحة دين قويم وهذا مثل شربه الله تعالى لنفسه وكيف انه يفيض على عباده من ا نعامه ولما يشملخهم به من آثار رحمته والطافه وللاصنام التی هی جماد لا تضرد ولا تنفع ولاتنطق ولا تسمع ولا تدری ولاتعقل وهی ثقل على عابديها تكلفهم الحمل والنقل والخدمة دون ان تسموبهم فی فكراوترقی بهم حضارة.
[4] الجامع لاحكام القرآن للقرطبی :۱۷۰/۳).
[5] شرح ابن بطال :۵۴۷/۷، فتح الباری :۶۴۲/۹، عمدة القاری:۲۴/۲۱).
[6] روح المعانی : ۱۴۷/۳).
[7] روح المعانی : ۱۴۷/۳، ارشاد الساری:۱۴۱/۱۲).

بن مسعود رضي الله عنه په قول قرآد كښې (على الوارث ذى رحم المحرم مثل ذالك) راغلې دې. [1]
لكه ذى رحم محرم دوه رونړه يا خويندې وى نو دواړو نه نصف نصف اخستې شى، او كه چرې يو رور خور ده نو د رور نه به د وه ثلث او دخور نه به يو ثلث شى، او په وارثانو باندې خرچه به په دې صورت كښې وى كه پخپله بچى سره مال نه وى كه چرې اخستې بچى سره مال وى نو بيا تول خرچ به هم ده په مال كښې وركړې كيږى. [2]
ياكه د تيم بچى مور او نيكه ژوندې وى نو دوئ دواړه دې بچى محرم هم دى. او وارث هم، ځكه چې ددۀ نفقه په دې دواړو باندې په قدر د حصه ميراث به عائد وى. يعنى يو تهائى خرچه د مور په ذمه او دو تهائى دنيكه په ذمه. ددې نه معلوم شو چې د يتيم نمسى حق په نيكه باندې د خپلو بالغو ځامنو نه هم زيات دې ځكه چې د بالغ اولاد نفقه دده په ذمه نه ده او د يتيم نمسى نفقه دده په ذمه ده. [3]

⑤ د وارث نه والدينو كښې ديو انتقال نه پس چې كوم باقى پاتې شى هغه مراد دې، دپلار دمرگ په صورت كښې مور او د مور د مرگ په صورت كښې به پلار مراد وى، او وارث باقى معنى كښې استعماليږى. [4]
په دې صورت كښې مور هم په دې وراثانو كښې داخله شوه چې په كوم باندې د پئيو خرچه واجب وى، دا قول د زيد بن ثابت نه مروى دې، او هغه فرمائى چې د پلار د مرگ نه پس كه د بچى ترۀ او مور دواړه پاتې ئې نو خرچه به په دواړو باندې په قدر د ميراث ضرورى وى. [5]
شارح بخارى ابن بطال رحمه الله فرمائى چې زيد بن ثابت رضي الله عنه د هغه قول رد كولو دپاره امام بخارى رحمه الله ترجمة الباب كښې (وهل على المراة منه شئ) اضافه كړې ده، مطلب دادې چې د ښځې په ذمه څه واجب نه دى. [6]
دليل كښې د قرآن پاك دا آيت مبارك پيش كوى [[ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا رَّجُلَيْنِ اَحَدُهُمَآ اَبْكَمُ لَا يَقْدِرُ]] امام بخارى رحمه الله ښځې لره په [[اَبْكَمُ]] سره تشبيه وركړه چې په وينا قادر نه وى او پخپل آقا باندې بوج جوړ شوې وى، داشان ښځه هم قادره نه ده، ددې وجې ددې په ذمه هيڅ لازم نه دى. [7] ابن منير رحمه الله فرمائى چې:

---

[1] احكام القرآن (للتهانوى) :١/٢، عمدة القارى:٢١/ ٢٤). او يو قرات د دويم قرات تفسير دې. يعنى وارث نه هغه ذى رحم محرم مراد دى كه بچې مړ شى نو دې د هغه وارث جوړ شى، په قدر د ميراث به په تولو باندې خرچه لازم وى.
[2] معارف القران (ازمولانا محمد ادريس كاندهلوى):١/٣٤٩).
[3] معارف (ازمولانا محمد شفيع رحمه الله: ١/١٤١).
[4] روائع البيان : ١١ \ ٣٥١ . وعمدة القارى: ٢١ \ ٢٤- و ارشاد السارى : ١٢ \ ١٤١-
[5] شرح ابن ابطال: ٧/٥٤٧).
[6] وفى اللامع:٩/٣٩٠، قوله وهل على المراة....يعنى هل يجب على المراة من مالها لرضاع صبيها جوابه محذوف اى لايجب لان المراة كل والكل لاوجوب عليه بل الوجوب له كما نطق به النص).
[7] شرح ابن بطال :٧/٥٥٧، عمدة القارى:٢١/ ٢٤).

(انما قصد البخاري الرد على من زعم ان الام يجب عليها نفقة ولدها وارضاعة بعد ابيه له خولها في الوارث فبين ان الام كانت كلا على الاب واجبة النفقة عليه ومن هو كل بالاصالة لايقدر على شئ غالبا كيف يتوجه عليه ان ينفق على غيره) [1]

[٥٠٥٤] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ أَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنْ أَبِيهِ عَنْ زَيْنَبَ ابْنَةِ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ هَلْ لِي مِنْ أَجْرٍ فِي بَنِي أَبِي سَلَمَةَ أَنْ أُنْفِقَ عَلَيْهِمْ، وَلَسْتُ بِتَارِكَتِهِمْ هَكَذَا وَهَكَذَا، إِنَّمَا هُمْ بَنِيَّ. قَالَ «نَعَمْ لَكِ أَجْرُ مَا أَنْفَقْتِ عَلَيْهِمْ». [ر: ١٣٩٨]

[٥٠٥٥] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ - رضى الله عنها - قَالَتْ هِنْدُ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ أَبَا سُفْيَانَ رَجُلٌ شَحِيحٌ فَهَلْ عَلَيَّ جُنَاحٌ أَنْ آخُذَ مِنْ مَالِهِ مَا يَكْفِينِي وَبَنِيَّ قَالَ «خُذِي بِالْمَعْرُوفِ». [ر: ٢٠٩٧]

د ام سلمه رضي الله عنها نه روايت دي چې ما عرض اوکړو چې يارسول الله ﷺ! آيا د ابو سلمه بچو ته خرچ ورکولو سره بۀ ماته ثواب ملاويږي، څه خو هغوئ لره په داسې حالت او غريبئ کښې نه شم پريښودې، هغه هم څما بچې دي. نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې آو تاته بۀ ثواب ملاويږي، چې کوم ته د هغوئ په ذات باندې خرچ کړې.

ام سلمه رضي الله عنها دې حديث نه خبره صراحت سره معلومه شوه چې ددوئ پخپل اولاد باندې خرچ کولو په طور د نفل واستحباب وو چې ددې خبرې دليل دې چې دا په دې واجب نه وو. د حديث پاك ترجمة الباب سره مناسبت ذکر کوی او علامه عينی رحمه الله ليکی چې:

(مطابقة للترجمة من حيث ان ام الصبي كل على ابيه فلا يجب عليها نفقة بينها ولهذا لم يامر النبي ﷺ ام سلمة بالانفاق على بنيها وانما قال لك اجرما انفقت عليهم) [2]

دويم حديث د هنده رضي الله عنها دې، په هغې کښې دا خبره ظاهر ده چې دپلار موجودگئ کښې دمور په ذمه هيڅ نشته دې. بلکه خرچ د پلار مال نه دې، دپلار د وفات نه پس هم دا اصل به برقرار وی.

ليکن په دې باندې يو اشکال کيدې شی چې دپلار په ژوند کښې د مور هيڅ ذمه نشته دې، دادې خبرې لره مستلزم نه دې چې د پلار د وفات نه پس هم دمور په ذمه څه نه وی، ځکه چې ددې نه دبچی دپرورش متعلق ډير مصلحتونو ته نقصان رسی، ددې وجی حافظ ابن حجر رحمه الله ليکی چې:

(فيحتمل ان يكون مرادالبخاري من الحديث الاول وهوحديث ام سلمة في انفاقها على اولادها كا الجزء الاول من الترجمة وهو ان وارث الاب كالام يلزم نفقة المولود بعد موت الاب، ومن الحديث الثاني الجزء الثاني وهو

[1] فتح الباری :۹/۶۴۳).
[2] عمدة القاری:۲۱/ ۲۵).

انه ليس على المراة شئ عند وجود الاب وليس فيه تعرض لما بعد الاب، [1]

د حافظ ابن حجر رحمه الله ددې کلام حاصل دادې چې د باب د رومبی حدیث نه د امام بخاری رحمه الله د ترجمة الباب د جزء اول تائید کول دی، چې د بچی د پلار د وفات نه پس د نورو وارثانو باندې دبچی د مور پشان نفقه لازم ده او دویم حدیث نه د ترجمة الباب دویم جزء ثابت کړې دې چې د پلار موجودګئ کښې د ښځې په ذمه هیڅ هم واجب نه دی.

البته په دې باندې شبه کیدې شی چې د ترجمة الباب اول جزء کښې د قرآن عظیم الشان آیت چې کومه حصه [[وَعَلَى الْوَارِثِ مِثْلُ ذٰلِكَ]] ذکر کړې دې دا خو په وجوب باندې دلالت کوی او دباب حدیث اول وجوب په ځائې استحباب باندې دلالت کوی نو دال علی الاستحباب دال علی الوجوب تائید کښې ولې پیش کړو.

ددې وجې ابن منیر رحمه الله چې کومه خبره فرمائیلې ده هغه زیاته زړه ته نزدې ده چې دامام بخاری رحمه الله مقصد دواړو حدیثونو سره دترجمة الباب جزء ثانی «وهل على المرأة منه شئ» ثابتول دی، چې ددې تفصیل تیر شوې دې.

## ۱۵=باب قول النبى صلى الله عليه وسلم «مَنْ تَرَكَ كَلًّا أَوْ ضَيَاعًا فَإِلَيَّ»

[۵۰۵۶] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - كَانَ يُؤْتَى بِالرَّجُلِ الْمُتَوَفَّى عَلَيْهِ الدَّيْنُ، فَيَسْأَلُ «هَلْ تَرَكَ لِدَيْنِهِ فَضْلاً». فَإِنْ حُدِّثَ أَنَّهُ تَرَكَ وَفَاءً صَلَّى، وَإِلاَّ قَالَ لِلْمُسْلِمِينَ «صَلُّوا عَلَى صَاحِبِكُمْ». فَلَمَّا فَتَحَ اللَّهُ عَلَيْهِ الْفُتُوحَ قَالَ «أَنَا أَوْلَى بِالْمُؤْمِنِينَ مِنْ أَنْفُسِهِمْ، فَمَنْ تُوُفِّيَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ فَتَرَكَ دَيْنًا فَعَلَيَّ قَضَاؤُهُ، وَمَنْ تَرَكَ مَالاً فَلِوَرَثَتِهِ». [ر: ۲۱۷۶]

ددې ترجمة الباب مقصد دادې که یو سړې مړ شی، اودهٔ نه څهٔ مال نه وی پاتې شوې او ددهٔ اهل وعیال ددهٔ د نفقې اوخرچ محتاج وی نو دمسلمانانو بیت المال به ددهٔ کفالت کوی.

«كل» په معنی د بوج ده، مراد قرض او دین دې.او«ضياع» د ضاد په فتحه سره په معنی د هلاکیدې،مراد داسې بچی چې دهغوئ سره مدداونه کړې شو نو ددهٔ دهلاکیدو خطره وی. [2]

## ۱۶=باب الْمَرَاضِعِ مِنَ الْمَوَالِيَاتِ وَغَيْرِهِنَّ

[۵۰۵۷] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ

---

[1]) فتح البارى :۹/۶۴۳).

[2]) قوله فالى بتشديد الياء ومعناه فينتهى ذالك الى وانا اتدارک اتدارکه وهو بمعنى على اى فعلى قضاءه والقيام بمصالحة : عمدة القارى:۲۱/۲۵، و ارشاد السارى: ۱۴/۱۴۳).

أَنَّ زَيْنَبَ ابْنَةَ أَبِي سَلَمَةَ أَخْبَرَتْهُ أَنَّ أُمَّ حَبِيبَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ انْكِحْ أُخْتِي ابْنَةَ أَبِي سُفْيَانَ. قَالَ «وَتُحِبِّينَ ذَلِكِ». قُلْتُ نَعَمْ لَسْتُ لَكَ بِمُخْلِيَةٍ، وَأَحَبُّ مَنْ شَارَكَنِي فِي الْخَيْرِ أُخْتِي. فَقَالَ «إِنَّ ذَلِكِ لاَ يَحِلُّ لِي». فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ فَوَاللَّهِ إِنَّا نَتَحَدَّثُ أَنَّكَ تُرِيدُ أَنْ تَنْكِحَ دُرَّةَ ابْنَةَ أَبِي سَلَمَةَ. فَقَالَ «ابْنَةَ أُمِّ سَلَمَةَ». فَقُلْتُ نَعَمْ. قَالَ فَوَاللَّهِ لَوْ لَمْ تَكُنْ رَبِيبَتِي فِي حَجْرِي مَا حَلَّتْ لِي، إِنَّهَا ابْنَةُ أَخِي مِنَ الرَّضَاعَةِ، أَرْضَعَتْنِي وَأَبَا سَلَمَةَ ثُوَيْبَةُ، فَلاَ تَعْرِضْنَ عَلَيَّ بَنَاتِكُنَّ وَلاَ أَخَوَاتِكُنَّ». وَقَالَ شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ عُرْوَةُ ثُوَيْبَةُ أَعْتَقَهَا أَبُو لَهَبٍ. [ر: ٤٨١٣]

(مراضع) د (مرضعة) جمع ده، يئ وركوونكې او (مواليات) د ميم په فتحه سره د موالى نه ده، شارح بخارى ابن بطال رحمه الله فرمائى چې مناسب الفاظ (موليات) وو چې د (مولاة) جمع دې، چې ددې معنى ده وينځه. او دلته هم دا مراد دى، تر كومې چې تعلق د (مواليات) دې نو د ا د (مولى) جمع ده، د (مولى) جمع (موالى) او د (موالى) مؤنث سالم (موليات) رازى.

دلته د (مواليات) نه غير عربى عجمى وينځه مراد ده، امام بخارى رحمه الله وئيل غواړى چې مرضعه (يئ وركوونكې) دپاره ضرورى نه دى چې هغه عربى او آزاده وى، غير عربى او عجمى وينځې سره هم أرضاع نه كار اخستې شى، دځينو خلقو خيال وو چې عجمى وينځو سره يئ ځكول درست نه دى ځكه چې دې سره دبچى په نجابت باندې اثر پريوزى. امام بخارى رحمه الله ددې ترديد كړې دې او فرمائى چې نبى كريم ﷺ د ابو لهب وينځې ثوبيه يئ وركړى وو او هغه غير عربى وه. او د ابو لهب آزاده شوې وه. ([1]).
حديث باب په كتاب النكاح كښې تير شوې دې، او د شعيب تعليق هم هلته موصولا تير شوې دې. ([2])

**كتاب سره د باب مناسبت:** البته داسوال پاتې كيږى چې ددې باب كتاب النفقات سره څه تعلق دې، ددې جواب دادې چې امام بخارى رحمه الله دلته داباب ذكر كوى او دې مسئلې طرفته يو لطيف اشاره كړې ده چې مور باندې واجب نه دى بچى لره يئ وركول بلكه هغه ته دور كول اونه وركولو اختيار دې. دپئيو وركولو په صورت كښې به د بچى پلار يا ولى به ديو بلې په اجرت انتظام كوى، او د مرضعه اجرت هم چونكه نفقه كښې داخل دى، ددې وجې دې باب لره په نفقات كښې ذكر كړې دې. ([3])

....

[1]) شرح ابن بطال :٥٥١/٧، عمدة القارى:٢١/ ٢٦، فتح البارى :٦٤٤/٩، ٦٤٥)
[2]) كشف البارى كتاب النكاح:١٨٩، ١٩٠).
[3]) فتح البارى :٦٤٥/٩ ارشاد السارى:١٢/ ١٨٩، ١٩٠).

# کتاب الاطعمة

الاحاديث : ۵۰۵۸ - ۵۱۴۹

کتاب الاطعمة کښې امام بخاری رحمه الله ۵۹ بابونه قائم کړی دی زمونږ په دې نسخه کښې ۵۷ بابونه دی ځکه چې په دې کښې «باب بلاترجمة» نه دی شامل کړې شوی او په دې کښې ئې ۱۱۲ احادیث ذکر کړی دی په دې کښې څوارلس احادیث معلق دی اوبیا موصول دی، ۹۰ احادیث په کښې مکرر دی او ۲۲ احادیث داسې دی چې هغه امام بخاری رحمه الله په اول ځل دلته ذکر کړې دی په دې کښې ۲۲ احادیث متفق دی یعنی امام مسلم هم دهغې تخریج کړې دې په کتاب الاطعمة کښې د صحابه کرامو رضی الله عنهم او تابعینوشپږ آثار هم امام ذکر کړی دی.

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

## ۷۳=کتاب الاطعمة

## باب وَقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى (كُلُوا مِنْ طَيِّبَاتِ مَا رَزَقْنَاكُمْ).

وَقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى (كُلُوا مِنْ طَيِّبَاتِ مَا رَزَقْنَاكُمْ). (۱) وَقَوْلِهِ (أَنْفِقُوا مِنْ طَيِّبَاتِ مَا كَسَبْتُمْ) وَقَوْلِهِ (كُلُوا مِنَ الطَّيِّبَاتِ وَاعْمَلُوا صَالِحًا إِنِّي بِمَا تَعْمَلُونَ عَلِيمٌ) المؤمنون: ۵۱

امام بخاری رحمه الله کتاب النفقات نه پس کتاب الاطعمة شروع کوی، د د واړو په مینځ کښې مناسبت ظاهر دې چې نفقاتو زيات تر تعلق د اطعمة سره دې. [1]

«اطعمة» د «افعلة» په وزن باندې دطعام جمع ده، قاعده داده چې کلمه د رباعی وی او ددې دريم حرف مده وی او ددې جمع عموما «افعله» په وزن رازی لکه «اطعام، اطعمة رحى، ارحيه، رغيف، ارغفة». [2]

ابن فارس رحمه الله فرمائی چې د طعام لفظ هر هغه څيز دپاره استعماليږی چې کوم خوړلې کيږی، تر دې چې د اوبو څکلو دپاره هم استعماليږی. [3]

ترجمة الباب کښې امام بخاری رحمه الله د سورة طه، سورة بقره، سورة مؤمنون يو يو آيت مبارك ذکر کړې دې. ددې آيتونو د ذکر کولو مقصد په دې خبره باندې تنبيه ورکول دی چې انسان

[1] الابواب والتراجم :۸۶/۲).
[2] جامع الدروس العربية :۳۱/۱، جموع القلة).
[3] ارشاد الساری:۱۲/۰، وفي معجم مقابيس اللغة لابن فارس :۴۱۱/۳، و الاطعام يقع فی کل ما يطعم حتی الماء قال الله تعالى (ومن لم يطعمه فانه منی) وقال عليه اسلام فی زمزم انها طعام طعم شفاء سقم).

ته پكار دى چې ځان دپاره د حلال او طيب خوراك اهتمام اوكړى.

[۵۰۵۹]. حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ -رضي الله عنه- عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «أَطْعِمُوا الْجَائِعَ، وَعُودُوا الْمَرِيضَ، وَفُكُّوا الْعَانِيَ». قَالَ سُفْيَانُ وَالْعَانِي الْأَسِيرُ. [ر: ۲۸۸۱]

[۵۰۵۹]. حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ عِيسَى حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي حَازِمٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ مَا شَبِعَ آلُ مُحَمَّدٍ -صلى الله عليه وسلم- مِنْ طَعَامٍ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ حَتَّى قُبِضَ.

سند كښې د «ابيه» مصداق فضيل بن عياض بن غزوان بن جرير كوفى دې او د ابو حازم نوم سلمان اشجعى دې. (۱)

ابوهريره رضي الله عنه فرمائى چې د نبى كريم ﷺ كور والو تر دريو ورځو پورې هم په مړهٔ خيټه روټئ نه ده خوړلې، تر دې پورې چې نبى كريم ﷺ وفات شو.

دمسلم شريف په روايت كښې الفاظ دى چې «ماشبع نبى الله واهله ثلاثة ايام تباعا من خبز حنطة حتى فارق الدنيا» (۲) «اى متوالية» يعنى درې ورځې مسلسل نبى خوراك نه وو كړى.

او ددې وجه دا هم كيديشى چې څه ورسره نه وو، دا هم كيدې شى چې د خوراك ورسره څه وو ليكن ايثار ئې كولو او فقراء ته ئې وركولو او دا هم كيدې شى چې مسلسل په مړهٔ خيټهٔ خوراك مذموم دې. (۳) حذيفه رضي الله عنه نه روايت دې چې «من قل طعمه صح بطنه وصفا قلبه ومن كثر طعمه سقم بطنه وقسا قلبه» (۴)

[۵۰۶۰]. وَعَنْ أَبِي حَازِمٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَصَابَنِي جَهْدٌ شَدِيدٌ فَلَقِيتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ، فَاسْتَقْرَأْتُهُ آيَةً مِنْ كِتَابِ اللَّهِ، فَدَخَلَ دَارَهُ وَفَتَحَهَا عَلَيَّ، فَمَشَيْتُ غَيْرَ بَعِيدٍ، فَخَرَرْتُ لِوَجْهِي مِنَ الْجَهْدِ وَالْجُوعِ فَإِذَا رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَائِمٌ عَلَى رَأْسِي فَقَالَ «يَا أَبَا هُرَيْرَةَ». فَقُلْتُ لَبَّيْكَ رَسُولَ اللَّهِ وَسَعْدَيْكَ. فَأَخَذَ بِيَدِي فَأَقَامَنِي، وَعَرَفَ الَّذِي بِي، فَانْطَلَقَ بِي إِلَى رَحْلِهِ، فَأَمَرَ لِي بِعُسٍّ مِنْ لَبَنٍ فَشَرِبْتُ مِنْهُ، ثُمَّ قَالَ «عُدْ يَا أَبَا هِرٍّ». فَعُدْتُ فَشَرِبْتُ، ثُمَّ قَالَ «عُدْ». فَعُدْتُ فَشَرِبْتُ حَتَّى اسْتَوَى بَطْنِي فَصَارَ كَالْقِدْحِ -قَالَ- فَلَقِيتُ عُمَرَ وَذَكَرْتُ لَهُ الَّذِي كَانَ مِنْ أَمْرِي وَقُلْتُ لَهُ تَوَلَّى اللَّهُ ذَلِكَ مَنْ كَانَ أَحَقَّ بِهِ مِنْكَ يَا عُمَرُ، وَاللَّهِ لَقَدِ اسْتَقْرَأْتُكَ الْآيَةَ وَلَأَنَا أَقْرَأُ لَهَا مِنْكَ. قَالَ عُمَرُ وَاللَّهِ لَأَنْ أَكُونَ أَدْخَلْتُكَ أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ يَكُونَ لِي مِثْلُ حُمْرِ النَّعَمِ.

---

(۱) عمدة القارى: ۲۱/ ۲۷، ارشاد السارى: ۱۲/ ۱۴۶).

(۲) فتح البارى: ۹/۶۴۸ و صحيح مسلم كتاب الزهد والرقائق رقم الحديث: ۲۹۷۶)

(۳) عمدة القارى: ۲۱/ ۲۷، ارشاد السارى: ۱۲/ ۱۴۶ فتح البارى: ۹/ ۶۴۸).

(۴) عمدة القارى: ۲۱/ ۱۴۶، ارشاد السارى: ۱۲/۲۷).

دا تعلیق نهدې بلکه ما قبل سند سره متصل دې او دا حدیث پاك په رومبی ځل راغلې دې.

**قوله**: أَصَابَنِي جَهْدٌ شَدِيدٌ: ابوهریره رضی الله عنه فرمائی چې ډیر سخت اوږې شوې اوم، (جهد) د جیم په فتحه سره مشقت ته وائی، دلته ترې اولږه مراده.

**قوله**: فَاسْتَقْرَأْتُهُ آيَةً مِنْ كِتَابِ اللَّهِ: ما هغه ته د قرآن پاك د یو آیت مبارك (د استفادې په غرض) خواست اوکړو.

**قوله**: فَدَخَلَ دَارَهُ وَفَتَحَهَا عَلَيَّ: عمر فاروق رضی الله عنه خپل کور ته داخل شو او هغه آیت مبارك ئې اولوستلو. (فَتَحَهَا عَلَيَّ) معنی ده (قرأها وا فهمنی ایاها) یعنی ددې معنی ماته معلوم شوه، ابو نعیم په حلیة الاولیاء کښې ددې قصې ذکر کړې دې، په هغې کښې دی چې مذکوره آیت مبارك د سورة آل عمران وو، په هغه روایت کښې دی چې (فقلت له : اقرئنی وما ارید القراءة وانما ارید الاطعام) [1]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې کله (وکانه سهل الهمزة فلم یفطن عمر)، ابو هریره رضی الله عنه د (اقرئنی) همزه لره تسهیل سره (اقرئنی) وئیلې دې، چې ددې معنی ده زما میلمستیا اوکړه. بیا هم فاروق اعظم رضی الله عنه د هغوئ اصل مقصد باندې پوهه نشو.[2] ځکه چې (اقرئنی) همزه سره او (اقرینی) بغیرد همزه سره د دواړو تلفظ د یو بل سره مشابه دې، یو لره ادا کوی او د دویم وهم کیدیشی. بهر حال دا د حافظ ابن حجر رحمه الله بیان شوې یو نکته ده، ضرور نه ده چې حقیقت او واقعه کښې هم داشان وی.

**قوله**: فَخَرَرْتُ لِوَجْهِي مِنَ الْجَهْدِ: د اولږې په وجه ځه التهٔ پریوتم. دحلیة الاولیاء په روایت کښې دی چې په هغه ورځ د ابوهریره رضی الله عنه روژه وه، او د روژه ماتلو دپاره هغه سره څه نه وو. [3] دپریوتلونه پس ما اوکتل چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم زما سر سره ولاړ دی، نبی کریم صلی الله علیه وسلم اصل حقیقت نه خبر شو هغه ئې کور ته بوتلو او د پئیو یو غټې پیاله راوړو حکم ئې اوکړو. فرمائی چې ما هغه اوڅکله، او نبی کریم صلی الله علیه وسلم دوباره اوپه دریم ځل ئې اوفرمائیل چې ځکه تر دې پورې چې زما خیټه د زیات څکلو په وجه نیغه شوه، بیا ځه عمر فاروق رضی الله عنه سره ملاؤ شوم او هغوئ ته مې اصل حقیقت بیان کړو، او هغوئ ته مې اووئیل چې زما د مړولو کار هغه سړی اوکړو چې ستاسو نه زیات د هغه حقدار وو (مراد ترې نبی کریم صلی الله علیه وسلم دې)

---

[1] فتح الباری :۹/، وحلیة الاولیا لابی نعیم :۳۷۸/۱، و لفظه فقلت اقرینی ومال ارید الا الاطعام رقم الحدیث والترجمه:۸۵، عمدة القاری:۲۱/ ۲۸، ارشاد الساری:۱۲/ ۱۴۷).

[2] فتح الباری :۹/ ۶۴۹ارشاد الساری:۱۲/ ۱۷).

[3] حلیة الاولیاء : ۳۷۸/۱، رقم الترجمة: ۸۵).

**قوله**: وَاللهِ لَقَدِ اسْتَقْرَأْتُكَ الآيَةَ وَلأَنَا أَقْرَأُ لَهَا مِنْكَ: په الله، تاته د يو آيت مبارك وئيلو درخواست کړې وو، حالانکه ستاسو نه زيات ځه ددې آيت مبارك وئيلو والا اوم.
ډير ممکن دی چې ابوهريره رضی الله عنه هغه آيت مبارك نبی کريم صلی الله علیه وسلم نه نيغ په نيغه وئيلې وی، او عمر فاروق رضی الله عنه باالواسطه، ددې وجې ابوهريره رضی الله عنه ددوئ مقابله کښې خپل ځان ته «اقرا» اووئيل. (١)
فاروق اعظم رضی الله عنه جواب کښې اوفرمائيل چې «ځه ستاسو په مقصد پوهه شوې نه اوم» ته به مې خپل کور ته داخل کړې وې. او ميلمه جوړول ماته ددې نه زيات محبوب دی چې ماسره سور اوښ وی.
سور اوښ په عربو کښې د نورو اوښانو په مقابله کښې زيات محبوب وو.
شارح بخاری ابن بطال رحمه الله فرمائی چې په هغه زمانه کښې د حضرات صحابه کرامو رضی الله عنهم طريقه هم دا وه چې کله به يوسړی د قرآن پاك د يو آيت مبارك متعلق سوال اوکړو نو هغه دده شکر گزار وو او دې به ئې خپل کور ته بوتلو. او دده ميلمستيا به ئې کوله، ددې وجې ابوهريره رضی الله عنه آيت کريمه متعلق دا سوال اوکړو. عمر فاروق رضی الله عنه د ځه مصروفيت په وجه يا دځه مانع په وجه دده ميلمستيا اونه کړه. (٢)
**ايات او احاديثو کښې مناسبت**: آخر کښې دا خبره پاتې کيږی چې ترجمة الباب کښې ذکر شوې آيتونه سره د هغه احاديثو ځه تعلق دې ؟
ددې يو جواب دادې چې شکم سيری، او اولږې او اطعمه او خوراکونو نه احوال پيدا کيدو والا کيفيات دی، داشان حلال او حرام کيدل د اطعمه صفاتو نه دی او دخوراك ورکولو او نه ورکولو تعلق هم ددې صفاتو سره دې نو آيت مبارك کښې صرف د اطعمه انواع مراد نه دی بلکه انواع سره سره احوال او اوصاف هم مراد دی، او احاديث کښې هم دا احوال اواوصاف راغلی دی، ددې وجې د دواړو په مينځ کښې يو نه يو مناسبت دې جهت سره موندې شی. (٣)

## ١- بَابُ التَّسْمِيَةِ عَلَى الطَّعَامِ وَالأَكْلِ بِالْيَمِينِ

امام بخاری رحمه الله پدې باب کښې دوه مسئلې ذکر کړی دی. ړومبئ مسئله د خوراك کولو په وخت کښې د بسم الله وئيلو ده.
**دخوراک په شروع کښې د بسم الله وئيلو حکم**: د ظاهريه په نيز د خوراك په شروع کښې بسم الله وئيل واجب دی، او د امام احمد بن حنبل رحمه الله يوروايت هم ددې مطابق دې. (٤)
دا حضرات حديث باب کښې دبسم الله نه استدلال کوی، فرمائی چې امر وجوب دپاره دې.

---

١) فتح الباری :٩/ ٦٥٠).
٢) فتح الباری :٩/ ٦٥٠).
٣) فتح الباری :٦٤٩/٩ والابواب والتراجم: ٨٦/٢، ٨٧).
٤) المحلی بالاثار لابن حزم : ١٠٣/٦، رقم المسالة:١٠٢٣).

د جمهورو په نيز دخوراك وخت كښې بسم الله وئيل مستحب دى. د جمهورو په نيز امر استحباب دپاره دې. (۱)دبسم الله وئيلو په سلسله كښې د امام ابو داؤد رحمه الله او دامام ترمذى رحمه الله دهغه روايت تصريح كړې ده چې كوم هغوئ د عائشه صديقه رضي الله عنها نه مرفوعا نقل كړې دې. په هغې كښې دى چې : «اذا اكل احدكم طعاما فليقل بسم الله فان نسي في اوله فليقل بسم الله اوله واخره» (۲)

دې حديث پاك كښې صرف د بسم الله الفاظ نه دى بلكه صراحت سره ذكر كړې شوى دى چې په شروع كښې بسم الله دې اووئيلې شى او په شروع كښې كه هيره شى نو د «بسم الله اوله واخره» الفاظ دې په مينځ كښې اووائى يا په آخر كښې كه روته ياد ششى نو اودې وائى.

صرف د «بسم الله» الفاظ وئيل كافى دى ليكن كه پوره «بسم الله» اووائى نو دا زيات بهتر دى، داشان په اوچت آواز سره وئيل مستحب دى چې نورو ته هم ياد شى. (۳)

امام حاكم په مستدرك كښې د«بسم الله وبركة الله» الفاظ نقل كړى دى. (۴)

د«بسم الله وعلى بركة الله» الفاظ چې مشهور دى هغه دحديثو په مشهورو كتابونو كښې نشته دې، دې ته نزدې الفاظ حاكم نقل كړى دى.

تسميه وئيل اوخوراك كولو سره شيطان په خوراك كښې نه شامليږى، بسم الله وئيلو نه بغير خوراك شروع كولو سره شيطان هم ده سره شريك وى لكه څنګه چې څينو روايتونو كښې دى. (۵)

د جمهور علماء په نيز يوه مسئله دا هم ده چې ډير سړى يو د سترخوان ته كينى نو ټول خلق دې بسم الله اووائى. او د څينو علماء كرامو په نيز چې په هغوئ كښې امام شافعى رحمه الله هم شامل دې صرف ديو سړى بسم الله وئيل ټولو دپاره كافى ګڼړى. (۶)

**په ښى لاس د خوراك كولو حكم** : دويمه مسئله ښى لاس سره د خوراك كولو ده او دا امام بخارى رحمه الله بيان كړې ده، امام شافعى رحمه الله په «كتاب الام» كښې او «الرسالة» كښې تصريح كړې ده چې «اكل باليمين» واجب دى. (۷)علامه تقى الدين سبكى رحمه الله او دده څوئې علامه تاج الدين سبكى د وجوب دې قول ته ترجيع وركوى. (۸)

---

(۱) عمدة القاري:۲۸/۲۱، فتح الباري :۶۵۲/۹).
(۲) الحديث اخرجه ابوداؤد فى كتاب الاطعمة باب التسمية على الطعام :۳۴۷/۳).
(۳) عمدة القاري:۲۱/ ۲۸، ارشاد الساري:۱۴۸/۱۲ فتح الباري :۶۵۱/۹).
(۴) مستدرک للامام الحاكم كتاب الاطعمة: ۱۰۷/۴).
(۵) مستدرک للامام الحاكم كتاب الاطعمة: ۱۰۸/۴).
(۶) عمدة القاري:۲۸/۲۱، ارشاد الساري:۱۴۸/۱۲).
(۷) عمدة القاري:۲۸/۲۱، ارشاد الساري:۱۴۸/۱۲).
(۸) فتح الباري :۲۵۲/۹).

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې د «اکل بالیمین» په وجوب باندې حدیث هم د لالت کی، چې په هغې کښې «اکل بالشمال» باندې وعید بیان کړې دې، دا د حضرت سلمه بن اکوع رضي الله عنه حدیث چې امام مسلم رحمه الله په صحیح مسلم کښې نقل کړې دې. «ان النبی ﷺ رای رجلا یاکل بشماله فقال: کل بیمینك قال: لااستطیع قال: لااستطعت فما رفعها الی فیه بعد» [1]

داشان د عائشه صدیقه رضي الله عنها یو بل حدیث پاك امام مسلم او امام احمد رحمه الله نقل کړې دې په هغې کښې دی چې «من اکل بشماله اکل معه الشیطان» [2]

لیکن د جمهور علماء کرامو په نیز ښی لاس سره خوراك کول مستحب دی. واجب نه دی، د حضرات شافعیه مشهور مسلك هم دادې.

امام غزالی رحمه الله او امام نووی رحمه الله هم دا اختیار کړې دې. [3] د وعید مذکوره روایتونو لره جمهورو په زجر او تنبیه دپاره او مصالح شریعت باندې محمول کوی.

دا کل بالیمن استحباب په هغه وخت کښې دې چې کله څه عذر نه وی، لیکن که ښی لاس سره په خوراك کولو کښې څه عذر وی لکه ښی لاس کښې زخم وی نو داسې صورت کښې گس لاس سره خوراك کولې شی. او داکل بالمین استحباب رعایت به لحاظ ساتلې شی. [4]

علامه قرطبی په دې سلسه کښې تحریر فرمائی چې:

«هذا الامر علی جهة الندب لانه من باب تشریف الیمین علی الشمال لانها اقوی فی الغالب واسبق للاعمال واسکن فی الاشغال و هی مشتقة من الیمین وقد شرف الله اصحاب الجنة اذا نسبهم الی الیمین وعکسه فی اصحاب الشمال، واذا تقرر ذالك فمن الاداب المناسبة لمکارم الاخلاق والسیرة الحسنة عند الفضلا اختصاص الیمین بالاعمال الشریفة والاحوال النظیفة کل هذه الاوامر من المحاسن المکلمة والمکارم المستحسنة والاصل فیما کان من هذا الترغیب والندب» [5]

اوس لږ حدیث باب طرفته راشئ کوم چې امام بخاری رحمه الله په رومبی ځل ذکر کړې دې. [6]

---

[1] فتح الباری :۹/ ۲۵۲، و صحیح ا البخاری مسلم، کتاب الاشربة، باب ادب الطعام والشرب و احکامها، ۱۵۹۹/۳: ما وجدنا بهذا للفظ فیه والذی وجدناه لفظه تا تاکلوا بالشمال فان الشیطان یاکل بالشمال رقم الحدیث :۲۰۱۹، باب آداب الطعام والشراب واحکامهما وعمدة القاری: ۲۹/۲۱).

[2] فتح الباری :۹/ ۶۵۲، و صحیح ا البخاری مسلم، کتاب الاشربة، باب ادب الطعام والشرب و احکامها، ۱۵۹۸/۳، رقم الحدیث :۲۰۱۹، و فیه بعد لا استطعت مامنعه الا الکبر قال..... عمدة القاری:۲۹/۲۱).

[3] عمدة القاری:۲۱/ ۲۸).

[4] فتح الباری :۹/ ۶۵۳).

[5] فتح الباری :۹/ ۶۵۳).

[6] (۵۰۶۱) الحدیث اخرجه البخاری فی کتاب الاطعمة باب الاکل مما یلیه (رقم الحدیث :۵۰۶۲و ۵۰۶۳) واخرجه مسلم فی کتاب الاشربة باب اداب الطعام والشراب واحکامهما رقم الحدیث :۲۰۲۲).

[۵۰۶۱] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ قَالَ الْوَلِيدُ بْنُ كَثِيرٍ أَخْبَرَنِي أَنَّهُ سَمِعَ وَهْبَ بْنَ كَيْسَانَ أَنَّهُ سَمِعَ عُمَرَ بْنَ أَبِي سَلَمَةَ يَقُولُ كُنْتُ غُلاَمًا فِي حَجْرِ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَكَانَتْ يَدِي تَطِيشُ فِي الصَّحْفَةِ فَقَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - « يَا غُلاَمُ سَمِّ اللَّهَ، وَكُلْ بِيَمِينِكَ وَكُلْ مِمَّا يَلِيكَ ». فَمَا زَالَتْ تِلْكَ طِعْمَتِي بَعْدُ.[۵۰۶۲، ۵۰۶۳]

ولید بن کثیر د سفیان بن عیینه شیخ دې، دلته سیاق سند د عام اسلوب نه یو طرفته دې. دسند عام اسلوب داسې پکار دې (اخبرنا سفیان اخبرنی الولید بن کثیر) ځکه چې عام اسلوب کښې صیغهٔ تحمل حدیث لره راوی نوم سره مخکښې ذکر کیږي. او دلته (الولید بن کثیر اخبرنی) دې (اخبرنی) د راوی دنوم نه پس راوړې شوې دې. صیغه تحمل د حدیث راوی نوم نه پس راوړل اګر چې جائز. دی لیکن دمحدثینو عام اسلوب دې لره د راوی د نوم نه مخکښې راوړنکئ دې، دحمیدی به طریق کښې عام اسلوب دې (عن سفیان قال: حدثنا ابن کثیر....)(۱)

**قوله: عُمَرُ بْنُ أَبِي سَلَمَةَ:** دابو سلمه نوم عبدالله دې، عمر ددهٔ ځوئې دې، دده دمور نوم ام المؤمنین ام سلمه ﷺ ده، ابن عبدالبر فرمائي چې د عمر ولادت د هجرت د دویم کال نه پس شوې دې. (۲) دې د نبی کریم ﷺ په پرورش کښې وو.

**قوله: كُنْتُ غُلاَمًا:** دغلام اطلاق د ولادت نه واخله تر بلوغت پورې مینځنی عمروالا بچی ته وائی. (فی حجر رسول الله ﷺ ای تربیته وتحت نظهر) (۳)

**قوله: وَكَانَتْ يَدِي تَطِيشُ فِي الصَّحْفَةِ:** زما لاس دننه پیالئ کښې (ځلورو واړو) طرفونو ته تلو، د(تطیش) معنی حرکت کولو والا او ګرزیدلو والا دې. (صحفه) پیالئ ته وائی، داد (قصعه) نه لویه وی.

**قوله: فَمَا زَالَتْ تِلْكَ طِعْمَتِي بَعْدُ:** یعنی دې نه پس زما د خوراك هم هغه طریقه وه چې د کومې نبی کریم ﷺ زما رهنمائی کړې وه، یعنی بسم الله وئیل. ښی لاس سره او دخپلې مخې نه خوړل. (طعمة) د طاء په کسر سره د خوراك طریقه او انداز.

حافظ ابن حجر ﷺ دې حدیث او دې سلسله کښې ذکر کړې نورو حدیث نه څه آداب مستنبط کوی او لیکی چې:

---

۱) فتح الباری :۶۵۱/۹،عمدة القاری:۲۱/ ۲۹، ارشاد الساری:۱۴۸/۱۲).
۲) الاستیعاب لابن عبدالبر علی هامش الاصابة :۴۷۴/۲، عمدة القاری:۲۹/۲۱).
۳) فتح الباری :۹/ ۶۵۱ عمدة القاری:۲۱/ ۲۹، ارشاد الساری:۱۴۸/۱۲).

«وفي الحديث انه ينبغي اجتناب الاعمال التي تشبه اعمال الشيطان والكفار وان للشيطان يدين وانه يأكل ويشرب ويأخذ ويعطي وفيه جواز الدعاء على من خالف الحكم الشرعي وفيه الامر بالمعروف والنهي عن المنكر حتى في حال الاكل وفيه استحباب تعليم ادب الاكل والشرب» (1)

## ٣- باب الأَكْلِ مِمَّا يَلِيهِ

وَقَالَ أَنَسٌ قَالَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- «اذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ وَلْيَأْكُلْ كُلُّ رَجُلٍ مِمَّا يَلِيهِ». [ر: ٤٨٦٨]

[٥٠٦٢] حَدَّثَنِي عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَلْحَلَةَ الدِّيلِيِّ عَنْ وَهْبِ بْنِ كَيْسَانَ أَبِي نُعَيْمٍ عَنْ عُمَرَ بْنِ أَبِي سَلَمَةَ -وَهُوَ ابْنُ أُمِّ سَلَمَةَ- زَوْجِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ أَكَلْتُ يَوْمًا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- طَعَامًا فَجَعَلْتُ آكُلُ مِنْ نَوَاحِي الصَّحْفَةِ فَقَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- «كُلْ مِمَّا يَلِيكَ».

[٥٠٦٣] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ وَهْبِ بْنِ كَيْسَانَ أَبِي نُعَيْمٍ قَالَ أُتِيَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- بِطَعَامٍ وَمَعَهُ رَبِيبُهُ عُمَرُ بْنُ أَبِي سَلَمَةَ فَقَالَ «سَمِّ اللَّهَ، وَكُلْ مِمَّا يَلِيكَ». [ر: ٥٠٦١]

**دخپلې مخې نه د خوراک کولو حکم**: دخپلې مخې نه خوراك كول د جمهورو علماء كرامو په نيز مستحب دی. (2)

علامه تقی الدين رحمه الله او ددوئ ځوئې علامه تاج الدين سبکی رحمه الله د وجوب قول لره راجح ګرزولې دې. (3)

ليکن دا په هغه صورت کښې دی چې کله خوراك د يو قسم وی او که مختلف النوع طعام وی نو په دې صورت کښې د خپلې خوښې مطابق نوع طعام لره اوچتولو دپاره بغير د څه قسمه کراهت نه لاس يو خوا بل خوا اوړدولې شی، او په دې کښې هيڅ مضائقه نشته دې. (4)

ليکن ترمذی رحمه الله په کتاب الاطعمه کښې روايت نقل کړې دی چې نبی کريم ﷺ عکراش رضي الله عنه ته اوفرمائيل چې د خپلې مخې نه خوراك کوه، هغه يو خوا بل خوا لاس اوړدولو. دې نه پس يو طبق راوړې شو چې په هغې کښې پخې او کچه کهجورې وې، نو نبی کريم ﷺ

(1) فتح الباری :۹/۶۵۳).
(2) فتح الباری :۹/۶۵۲).
(3) فتح الباری :۹/۶۵۲).
(4) فتح الباری :۹/۶۵۲).

عكراش رضي الله عنه ته اوفرمائيل چې دې نه دکوم ځائې نه خوراك كوې كولې شى، ځكه چې دا مختلف الالوان دى.(١)

باب كښې ذكر شوى د انس رضي الله عنه دا تعليق امام مسلم رحمه الله او ابو نعيم رحمه الله موصولا نقل كړې دى (٢) آخر روايت دلته مرسل دې، خالد بن مخلد او يحيى بن صالح داروايت موصولا نقل كړې دې.(٣)

## ٤- بَاب مَنْ تَتَبَّعَ حَوَالَيِ الْقَصْعَةِ مَعَ صَاحِبِهِ، إِذَا لَمْ يَعْرِفْ مِنْهُ كَرَاهِيَةً

[٥٠٦٤] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ عَنْ مَالِكٍ عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ أَنَّهُ سَمِعَ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَقُولُ إِنَّ خَيَّاطًا دَعَا رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - لِطَعَامٍ صَنَعَهُ - قَالَ أَنَسٌ - فَذَهَبْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَرَأَيْتُهُ يَتَتَبَّعُ الدُّبَّاءَ مِنْ حَوَالَيِ الْقَصْعَةِ - قَالَ - فَلَمْ أَزَلْ أُحِبُّ الدُّبَّاءَ مِنْ يَوْمِئِذٍ. [ر: ١٩٨٦]

امام بخارى رحمه الله په دې ترجمة الباب كښې جمع بين الروايتين كړې ده، د «كل مما يليك» والا روايت تقاضا داده چې سړې ته پكار دى چې د خپلې مخې نه خوراك اوكړى. او روايت باب كښې انس رضي الله عنه فرمائى چې «فرايته يتتبع الدباء من حوالى القصعة» چې هغوئ پياله كښې كدو ګير چاپيره تلاش كولو او اوچتولو ئې، چې ددې نه معلوم شو چې سړې پياله كښې يو خوا بل خوا لاس ګرځولې شى.

امام بخارى رحمه الله په دواړه قسمه روايتونو كښې تطبيق كوى او فرمائى چې كه په يو ځائې خوراك كولو كښې خلقوته يو خوا بل خوا لاس ګرزول نا خوښه نه وى نو په دې صورت كښې هيڅ باك نشته ،ليكن كه دوئ ته خوښ نه وى نو بيا دخپلې مخې نه خوراك كول پكاردى.

نبى كريم صلى الله عليه وسلم به په پيالئ كښې لاس مبارك يو خوا بل خوا ګرزولو، ظاهر دى چې يو ځائې خوراك كونكو ته دا حالت خوښ وو، بلكه هغوئ دا خپل ځان دپاره د بركت سبب ګڼړلو، ددې وجې نبى كريم صلى الله عليه وسلم دا عمل اختيار كړو.

ځينې شراح دواړه قسمه روايتونو كښې يو بل شان تطبيق وركړې دې او هغه دا چې پياله كښې د لاس وهلو ممانعت په هغه وخت كښې دې چې كله د يو قسم خوراك وى ليكن كه خوراك مختلف النوع وى نو په دې صورت كښې ممانعت نشته دې، حديث باب هم دويم صورت باندې محمول دې چې پياله كښې خوروه او كدو او غوښه وه، درې مختلف څيزونه وو، نبى كريم صلى الله عليه وسلم غوښه پريښودله او د خپلې خوښې مطابق ئې خوراك كولو. (٤)

---

(١) سنن الترمذى، كتاب الاطعمة باب ماجاء فى التسمية فى الطعام :٢٨٣/٤. رقم الحديث :١٨٤٨، عمدة القارى:٣١/٢١).

(٢) ارشاد السارى:١٤٩/١٢).

(٣) فتح البارى :٩/ ٦٥٤ عمدة القارى:٢١/ ٣٠، ارشاد السارى:١٢/ ١٥٠).

(٤) فتح البارى :٦٥٥/٩).

**قوله**: **إِنَّ خَيَّاطًا دَعَا رَسُولَ اللَّهِ لطعام**: حافظ ابن حجر ﷫ فرمائي چې ددې خياط نوم ماته معلوم نشو، البته د ثمامه عن انس روايت كښې دى چې دا د نبى كريم ﷺ غلام وو. (۱)

(دباء) (ددال په ضمه او دباء په تشديد سره) كدو ته وائى، دا په دوه قسمه وى، يو اوږد او يو ګول، دواړو ترې مراد دى، ځينو وئيلى دى چې ګول ترې مراد دې دا نبى كريم ﷺ ته ډير خوښ وو د نسائى په روايت كښې دى چې (كان يحب القرع ويقول انها شجرة اخى يونس) قرع كدو ته وائى. (۲)

## ۴- بَابُ التَّيَمُّنِ فِي الْأَكْلِ وَغَيْرِهِ

قال عمر بن أبي سلمة: قال لى النبى صلى الله عليه وسلم: (كل بيمينك) [ر: ۵۰۶۱]

[۵۰۶۵] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَشْعَثَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ عَائِشَةَ - رضى الله عنها - قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - يُحِبُّ التَّيَمُّنَ مَا اسْتَطَاعَ فِي طُهُورِهِ وَتَنَعُّلِهِ وَتَرَجُّلِهِ. وَكَانَ قَالَ بِوَاسِطٍ قَبْلَ هَذَا فِي شَأْنِهِ كُلِّهِ. [ر: ۱۶۶]

دوه ځيزونه دى چې يو دې (اكل باليمين) او دويم ځيز دې (تيمن فى الاكل) دواړو كښې فرق دې، د (اكل باليمين) مطلب ښى لاس سره خوراك كول دى او (تيمن فى الاكل) معنى ده ښى طرفنه خوراك كول، امام بخارى ﷫ مخكښې اوفرمائيل چې ښى لاس سره خوراك كول پكار دى. اواوس دا وائى چې ښى طرفنه خوراك كول پكار دى، لهذا د سرى مخكښې پياله يا پليټ چې كله كيخودې شى نو د پياله او پيليټ ښى طرفنه خوراك شروع كول پكار دى.

(فى الاكل) نه پس امام (وغيره) اضافه كړې ده او دې طرفته اشاره كوى چې د (تيمن) فعل صرف اكل سره مخصوص نه دې بلكه هر خوښ فعل كښې دننه (تيمن) مطلوب دې، لكه څنګه چې حديث باب كښې ددې تصريح ده.

عمرو ابن ابى سلمه ﷛ فرمائى چې ماته نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چې (كل بيمينك) ته خپل ښى لاس سره خوراك كوه، امام بخارى ﷫ ددې نه (تيمن فى الاكل) دې طريقې سره ثابت كړې دى چې سړې كله ښى لاس سره خوراك كوى نو ظاهر دى چې د ښى طرفنه به خوراك كوى ځكه چې ښى لاس سره خوراك كول او د ګس طرفنه اخستل ګران دى، ددې و جې كله چې نبى كريم ﷺ دوئ ته ښى لاس سره دخوراك كولو دپاره اوفرمائيل نو ددې نه ضمنا په پوهه كښې راغلل چې ښى طرفنه دې خوراك اوكړې شى.

(۱) فتح البارى: ۹/۶۵۶).
(۲) فتح البارى: ۹/۶۵۶).

**قوله**: وَكَانَ قَالَ بِوَاسِطٍ قَبْلَ هَذَا فِي شَأْنِهِ كُلِّهِ: شعبه بن الحجاج فرمائى چې اشعث بن ابى الشعثاء دې نه مخكښې په واسط ښار كښې چې كله دا حديث پاك بيان كړو نو په هغې كښې (ترجله) نه پس د (فى شانه كله) اضافه وه، په كتاب الوضوء كښې دا روايت تير شوې دې، هلته دا اضافه موجوده ده.[1]

## ٥: باب: من اكل حتى شبع

[٥٠٦٦] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ أَنَّهُ سَمِعَ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَقُولُ قَالَ أَبُو طَلْحَةَ لأُمِّ سُلَيْمٍ لَقَدْ سَمِعْتُ صَوْتَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - ضَعِيفًا أَعْرِفُ فِيهِ الْجُوعَ، فَهَلْ عِنْدَكِ مِنْ شَيْءٍ فَأَخْرَجَتْ أَقْرَاصًا مِنْ شَعِيرٍ، ثُمَّ أَخْرَجَتْ خِمَارًا لَهَا فَلَفَّتِ الْخُبْزَ بِبَعْضِهِ، ثُمَّ دَسَّتْهُ تَحْتَ ثَوْبِي وَرَدَّتْنِي بِبَعْضِهِ، ثُمَّ أَرْسَلَتْنِي إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ فَذَهَبْتُ بِهِ فَوَجَدْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فِي الْمَسْجِدِ وَمَعَهُ النَّاسُ، فَقُمْتُ عَلَيْهِمْ فَقَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - « أَرْسَلَكَ أَبُو طَلْحَةَ ». فَقُلْتُ نَعَمْ. قَالَ « بِطَعَامٍ ». قَالَ فَقُلْتُ نَعَمْ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - لِمَنْ مَعَهُ « قُومُوا ». فَانْطَلَقَ وَانْطَلَقْتُ بَيْنَ أَيْدِيهِمْ حَتَّى جِئْتُ أَبَا طَلْحَةَ، فَقَالَ أَبُو طَلْحَةَ يَا أُمَّ سُلَيْمٍ قَدْ جَاءَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - بِالنَّاسِ، وَلَيْسَ عِنْدَنَا مِنَ الطَّعَامِ مَا نُطْعِمُهُمْ. فَقَالَتِ اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. قَالَ فَانْطَلَقَ أَبُو طَلْحَةَ حَتَّى لَقِيَ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَأَقْبَلَ أَبُو طَلْحَةَ وَرَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - حَتَّى دَخَلاَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - « هَلُمِّي يَا أُمَّ سُلَيْمٍ مَا عِنْدَكِ ». فَأَتَتْ بِذَلِكَ الْخُبْزِ فَأَمَرَ بِهِ فَفُتَّ وَعَصَرَتْ أُمُّ سُلَيْمٍ عُكَّةً لَهَا فَأَدَمَتْهُ، ثُمَّ قَالَ فِيهِ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - مَا شَاءَ اللَّهُ أَنْ يَقُولَ ثُمَّ قَالَ « ائْذَنْ لِعَشَرَةٍ ». فَأَذِنَ لَهُمْ، فَأَكَلُوا حَتَّى شَبِعُوا، ثُمَّ خَرَجُوا، ثُمَّ قَالَ « ائْذَنْ لِعَشَرَةٍ ». فَأَذِنَ لَهُمْ فَأَكَلُوا حَتَّى شَبِعُوا، ثُمَّ خَرَجُوا، ثُمَّ قَالَ « ائْذَنْ لِعَشَرَةٍ ». فَأَذِنَ لَهُمْ فَأَكَلُوا حَتَّى شَبِعُوا ثُمَّ خَرَجُوا، ثُمَّ أَذِنَ لِعَشَرَةٍ، فَأَكَلَ الْقَوْمُ كُلُّهُمْ وَشَبِعُوا، وَالْقَوْمُ ثَمَانُونَ رَجُلاً. [ر: ٤١٢]

ددې باب نه د امام بخارى رحمه الله مقصد دادې كه سړې ښه په مړه خيټه خوراك اوكړى نو دا جائز دى، نو امام بخارى رحمه الله چې كوم روايت ذكر فرمائيلې دې، په رومبى روايت كښې (فاكلوحتى شبعوا ثم خرجوا) دويم روايت كښې دى چې (فاكلنا اجمعون وشبعنا) او دريم روايت كښې دى چې (حين شبعنا من الاسودين)

دباب رومبى او دويم روايت مخكښې تيرشوې دې، دلته د هغې څو مشكل الفاظ اوګورئى.

---

[1] صحيح البخارى مع الفتح كتاب الوضوء باب التيمن فى الوضوء: ١/٢٦٩، رقم الحديث: ١٦٨).

**قوله**: فَأَخْرَجَتْ أَقْرَاصًا مِنْ شَعِيرٍ: ام سليم رضي الله عنها د اوربشو روټۍ راؤښکلې، بيا ئې خپله لوپټه راوويستله، ددې په يوه حصه کښې ئې روټۍ انغښتې او بيا ئې زما کېږې لاندې پټې کړې او د لوپټې ځينې حصه ئې په ما خپله واچوله. (دسته اى الحلته بقوة.... و ردتنى ببعضه اى جعلته رداءلى).

**قوله**: فَأَمَرَ بِهِ فَفُتَّ وَعَصَرَتْ أُمُّ سُلَيْمٍ عُكَّةً لَهَا فَأَدَمَتْهُ: يعنى نبى كريم ﷺ ددې روټو د ماتلو يعنى ټکړې کولو حکم اوفرمائيلو، نو هغه ورې ورې ټکړې کړې شوې، ام سليم رضي الله عنها په دې روټو باندې غوړى واچول او ددې نه چورى جوړه کړه. (عكة) (بضم العين و تشديد الكاف) د څرمنې لوښې چې په هغې کښې غوړى او شهد اچولې کيږى. (ادمته) دائې په ادام سالن يعنى انګولې غوندې کړو، د باب ضرب نه دې، (ادم الخبز....) (ادما) روټۍ په انګلى کښې وهل. (فت) د مجهول صيغه ده، د (فت) معنى ده د يو څيز ريزه ريزه کول.

[٥٠٦٧]. حَدَّثَنَا مُوسَى حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ عَنْ أَبِيهِ قَالَ وَحَدَّثَ أَبُو عُثْمَانَ أَيْضًا عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ - رضى الله عنهما - قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - ثَلاَثِينَ وَمِائَةً، فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «هَلْ مَعَ أَحَدٍ مِنْكُمْ طَعَامٌ». فَإِذَا مَعَ رَجُلٍ صَاعٌ مِنْ طَعَامٍ أَوْ نَحْوُهُ، فَعُجِنَ، ثُمَّ جَاءَ رَجُلٌ مُشْرِكٌ مُشْعَانٌّ طَوِيلٌ بِغَنَمٍ يَسُوقُهَا فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «أَبَيْعٌ أَمْ عَطِيَّةٌ أَوْ - قَالَ - هِبَةٌ». قَالَ لاَ بَلْ بَيْعٌ. قَالَ فَاشْتَرَى مِنْهُ شَاةً فَصُنِعَتْ، فَأَمَرَ نَبِيُّ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - بِسَوَادِ الْبَطْنِ يُشْوَى، وَايْمُ اللَّهِ مَا مِنَ الثَّلاَثِينَ وَمِائَةٍ إِلاَّ قَدْ حَزَّ لَهُ حُزَّةً مِنْ سَوَادِ بَطْنِهَا، إِنْ كَانَ شَاهِدًا أَعْطَاهَا إِيَّاهُ، وَإِنْ كَانَ غَائِبًا خَبَأَهَا لَهُ، ثُمَّ جَعَلَ فِيهَا قَصْعَتَيْنِ فَأَكَلْنَا أَجْمَعُونَ وَشَبِعْنَا، وَفَضَلَ فِي الْقَصْعَتَيْنِ، فَحَمَلْتُهُ عَلَى الْبَعِيرِ. أَوْ كَمَا قَالَ. [ر: ٢١٠٣]

د (ابيه) مصداق سليمان تيمى دې چې د معتبر پلار دې، علامه کرمانى رحمه الله د (وحدث ابوعثمان) مطلب دا بيان کړې دې چې سليمان تيمى دا حديث پاك د بل چا نه هم آوريدلې دې، او د ابو عثمان نحوى نه ئې هم آوريدلې دې.

حافظ ابن حجر عسقلانى رحمه الله فرمائى چې ددې مطلب دادې چې ابو عثمان نحوى په باب کښې ذکر شوى، حديث پاك نه علاوه بل حديث پاك هم مخکښې بيان کړې دې. علامه عينى رحمه الله د کرمانى موافقت کوى او په حافظ ابن حجر رحمه الله باندې ئې رد کړې دې.[1]

ليکن د حافظ ابن حجر رحمه الله خبره زياته قوى ده او درسته معلوميږى، ځکه چې بعينه هم دې سند سره امام بخارى رحمه الله دا روايت په کتاب المناقب کښې ذکر کړې دې[2] او هلته د

---

[1]) شرح للکرمانى: ٢٥/٢٠ عمدة القارى: ٢١/ ٣٢، فتح البارى: ٩/ ٦٦٠).

[2]) صحيح البخارى ابواب المناقب باب علامات النبوة: ١/ ٦٠٥).

صديق اكبر ميلمنو قصه بيان كړې شوې ده، ځكه ممكن دى چې ابو عثمان اول هغه قصه بيان كړې ده چې دې نه پس بيا دا حديث پاك بيان كړې شوې دې.

ددې حديث پاك حاصل دادې چې عبدالرحمان بن ابى بكر رضي الله عنه فرمائى چې هم خلق نبى كريم ﷺ سره يو سفر كښې وو، او مونږ شپږ شلې كسان وو. نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چې تاسو كښې چا سره د خوراك څه شته دې. نو يو سړى سره يو صاع يا ددې نه هومره څه وو. هغه واغږلې شوه، په دې كښې يو مشرك مو اوليدو چې لوړ دنگ وو او چيلئ ئې څرولې. نبى كريم اوفرمائيل چې ته چيلئ خرڅوې او كه هبه كوې ئې؟ هغه اووئيل چې نه بلكه خرڅوم يئ. نو نبى كريم ﷺ دهغه نه يوه چيلئ واخسته، بيا ئې هغه ذبحه كړه. نبى كريم ﷺ حكم اوفرمائيلو چې دهغې كليجى يعنى اينه وريته كړئ. په الله تعالى مې دې قسم وى چې يو سل ديرشو كسانو كښې به داسې يو كس هم نه وى پاتې شوې چې هغه ته به ددې غوښه نه وى رسيدلې. كوم چې حاضر وو هغوئ ته غوښه وركړې شوه. او چې كوم موجود نه وو هغوئ ته هم د هغوئ حصه پريخودې شوه. بيا ددې د غوښې دوه پيالئ جوړې كړې شوې. اومونږ ددې نه ښه په مړۀ خيټه خوراك اوكړو. او په دواړو پيالو كښې غوښه هم پاتې شوه. د پاتې شوې غوښه مو په اوښ بار كړه او ځان سره مو راوړه.

**قوله: سَوَادِ الْبَطْنِ:** يعنى كليجى، **يُشْوَى**:ددې معنى ده وريتول. **حزله حُزَّةً**: يعنى هر سړى دپاره يوه حصه نبى كريم ﷺ يوه حصه وزكړه. **دحُزَّ** معنى ده قطع كول او پريكول. **حُزَّةً** : د حاء په ضمه سره حصه او ټكړې ته وائى. **مشعان** : د ميم په ضمه او دشين په سكون سره، ډير اوږد ته وائى.

[٥٠٦٨] حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا مَنْصُورٌ عَنْ أُمِّهِ عَنْ عَائِشَةَ - رضى الله عنها - تُوُفِّيَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - حِينَ شَبِعْنَا مِنَ الأَسْوَدَيْنِ التَّمْرِ وَالْمَاءِ.[٥١٢٧]

دريم روايت امام بخارى رحمه الله دلته په اول ځل ذكر اوفرمائيلو. [١] حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها فرمائى چې د نبى كريم ﷺ كله وفات اوشو نو په هغه وخت كښې مونږ په كهجورو او اوبو باندې ښه ماړه شوى وو. علامه عينى رحمه الله فرمائى چې (وانما معناه توفى النبى ﷺ وقت كونتا شباعى من الاسودين) [٢]

دې حديث پاك كښې اوبو باندې تغليبا په اسود باندې اطلاق كړې شوې دې، گنى هسې خو د اوبو رنگ نه شته دې. [٣] همداشان دعائشه صديقه رضي الله عنها مقصد په كهجورو باندې

[١] (الحديث اخرجه البخارى ايضا فى كتاب الاطعمة باب الرطب والتمر (رقم الحديث:٥١٢٧) واخرجه مسلم فى كتاب الزهد والرقاق:٤/٢٢٨٤) (رقم الحديث:٢٩٧٥)

[٢] (عمدة القارى:٣٣/٢١)

[٣] (قوله: من الاسودين، تثنية الاسود وهم التمر والماء وهذا من باب التغليب وان كان الماء شفافا لا لونله، و ذالک كالابوين للاب والام، والقمرين للشمس والقمر.(عمدة القارى:٣٣/٢١)

مړيدل مراد دی ځکه چې اوبه خو هسې هم وې ليکن د دواړو ذکر کول دې طرفته اشاره کول چې په دواړو باندې ښه په مړه خيټه ماړه شو. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې:
(ومزاد عائشة بما اشارت اليه من الشبع هو من التمر خاصة دون الماء لكن قرنته به اشارة الى ان تمام الشبع حصل، بجمعهما فكان الو وفيه بمعنى مع، لا ان الماء وحده يوجد الشبع منه) [1]
ډومره خوراک پکار دې: په مړه خيټه خوراک کول جائز دی. البته زيات خوراک کول چې دې سره په بدن کښې سستی او کاهلی راشی او ددې په وجه عبادات او اطاعت اداکولو کښې خلل راشی، نو دا مکروه دی.
ترمذی، نسائی، ابن ماجه او حاکم دمقدام بن معد يکرب حديث نقل فرمائيلې دې، هغه فرمائی چې: (سمعت رسول الله ﷺ يقول: ما ملأ آدمی وعاء شرا من بطن حسب ابن آدم لقيمات يقمن صلبه، فان غلب الادمی نفسه فثلث للطعام وثلث للشراب وثلث للنفس) [2]
په دې کښې د دې چې يو څو نمړئی چې په دې سره د سړی ملا نيغه شی کافی دی، که غلبه زياته وی نو خيټه دې درې حصې کړی، يوه حصه خوراک دپاره، بله اوبه دپاره، اوبله ساه يعنی هوا دپاره.
**داولړې حد:** داولړې په حد او تعريف کښې اختلاف دې، اودوه قوله مشهور دی.
① يو قول دادې چې سړې به هغه وخت کښې اوږې ګڼړلې شی چې کله د ترکارئی يعنی انګولی (سالن) نه بغير دده طبيعت روټئی ته کيږی. که روټئ سره دده شوق سالن ته هم وی نو د اسې سړې به اوږې نشی ګڼړلې.
② دويم قول دادې چې کله سړې توکانړې توکړی نو دده په توکانړو باندې مچان نه کينی، چې د کوم په ريق فم باندې مچان کينی نو دۀ ته به اوږې نشی وئيلې. [3]
**د موړوالی مراتب:** امام غزالی رحمه الله د مړې خيټې اووۀ مراتب بيان کړی دی.
① اول مرتبه داده چې سړې دې دومره خوراک اوکړی چې دې سره ئې ژوند قائم پاتې شی.
② دويمه مرتبه ئې داده چې دې سره مونځ، روژه، مونځ او عبادات او حقوق ادا کړې شی. دا دواړه مراتب واجب دی.
③ دومره خيټه مړول چې نوافل ادا کړې شی.
④ چې دې سره ګټه وټه کولې شی ، دا دواړه مستحب دی.
⑤ چې د خيټې دريمه حصه ډکه شی، دا جائز دی.

---

[1] (فتح الباری :۹/۶۵۹)
[2] (الحديث اخرجه الترمذی فی كتاب الاطعمة باب ماجاء فی كراهية كثرة الاكل :۴/۵۹۰، رقم الحديث :۲۳۸۰، والحاكم: باب اكثر الناس فی الدنيا شبعا:۴/۱۲۱...... وابن ماجة : باب الاقتصار فی الاكل وكراهية الشبع:۱/۱۱۱۱، رقم الحديث:۳۳۴۹)
[3] (عمدة القاری :۲۱/۳۳ و فتح الباری:۹/۶۶۰)

⑥ چې دې سره بدن ثقيل او د روند شي او خوب راشي نو دا مكروه دي.
⑦ داسې په مړهٔ خيټهٔ خوراك كول چې د صحت دپاره نقصاني وي نو دا حرام دي. (١)

## ٦-باب: لَيْسَ عَلَى الأَعْمَى حَرَجٌ ولاعلى الأعرج حرج ولاعلى المريض حرج....الآية (٢)

ددې ترجمةالباب نه د امام بخاري رحمه الله مقصد دادې چې په شريكه دې خوراك اوكړې شي يا جدا جدا، او كه متفرق كيدو سره دې خوراك اوكړې شي. شرعي نقطه نظر سره دواړه جائز دي. امام بخاري رحمه الله چې د سورهٔ نور كوم آيت مبارك په ترجمة الباب كښې ذكر فرمائيلې دې، په هغې كښې ډير وضاحت سره دى چې (لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَأْكُلُوا جَمِيعًا أَوْ أَشْتَاتًا)

**قوله: والنهد والاجتماع في الطعام:** د ترجمة الباب داالفاظ صرف په د مستملي په روايت كښې دي. (٣) نهد (د سكون سره) نو باندې فتح هم جائز ده. ددې معنى ده : د سفر د ملګرو توښه راجمع كول، كله يو څه خلق يو ځائې سفر كوي، كله اكثر خپل خپل سفر او خرچ او توښه راؤباسي او جمع ئې كړي. لكه څنګه چې د تبليغي جماعت په ملګر دا معمول دې چې جماعت سره سفر كولو كښې ټول خرچ يو ملګرى يعنى امير سره عام طور سره جمع كوي. دې عمل ته نهد وائي. امام بخاري رحمه الله په دې باندې كتاب الشركة كښې هم د باب الشركة في الطعام والنهد الفاظو سره ترجمة الباب قائم كړې دې. (٤)

**په شريكه خوراك كولو كښې بركت دې:** ترجمة الباب كښې ددې الفاظو زياتوالې كړې شوې دې او امام بخاري رحمه الله په دې باندې تنبيه فرمائى چې اګر چې جدا جدا خوراك جائز دې، ليكن په جمع او په شريكه خوراك كول بهتر او افضل دي. يو ځل د نبى كريم ﷺ په خدمت كښې څه خلق حاضر شو او عرض ئې اوكړو چې مونږ خوراك كوؤ خو زمونږ آسودګي نه كيږي. نو نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چې تاسو خوراك جدا جدا كوئى او كه په شريكه خوراك كوئى؟ هغوئ اووئيل چې جدا جدا. نو نبي كريم ﷺ ورته اوفرمائيل چې په شريكه خوراك كوئى، د الله تعالى نوم سره خوراك شروع كوئى په دې كښې بركت دې. (٥)

---

(١) (عمدة القاري :٢١/٣٣، وفتح الباري :٩/٦٦٠

(٢) (حرج) اثم وذنب (الاية وتتمها) (وَلَا عَلَىٰ أَنفُسِكُمْ أَن تَأْكُلُوا مِن بُيُوتِكُمْ أَوْ بُيُوتِ آبَائِكُمْ أَوْ بُيُوتِ أُمَّهَاتِكُمْ أَوْ بُيُوتِ إِخْوَانِكُمْ أَوْ بُيُوتِ أَخَوَاتِكُمْ أَوْ بُيُوتِ أَعْمَامِكُمْ أَوْ بُيُوتِ عَمَّاتِكُمْ أَوْ بُيُوتِ أَخْوَالِكُمْ أَوْ بُيُوتِ خَالَاتِكُمْ أَوْ مَا مَلَكْتُم مَّفَاتِحَهُ أَوْ صَدِيقِكُمْ لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَن تَأْكُلُوا جَمِيعًا أَوْ أَشْتَاتًا فَإِذَا دَخَلْتُم بُيُوتًا فَسَلِّمُوا عَلَىٰ أَنفُسِكُمْ تَحِيَّةً مِّنْ عِندِ اللَّهِ مُبَارَكَةً طَيِّبَةً كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمُ الْآيَاتِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ) (مَا مَلَكْتُم مَّفَاتِحَهُ) كان يكون وكيل بستان اوماشية فانه ياكل من ثماره ويشرب من لبانها (أَشْتَاتًا) متفرقين. (عَلَىٰ أَنفُسِكُمْ) ليسلم بعضكم على بعض (مُبَارَكَةً طَيِّبَةً) حسنة فيها الدعاء باالخير)

(٣) (فتح الباري:٩/٦٦١)

(٤) (وقال العيني، النهد: بكسر النون وسكون من المهناهدة هى اخراج كل واحد من الرفقةنفقة على قدر نفقة صاحب (عمدة القاري :٢١/٣٤)

(٥) (الحديث اخرجه ابوداؤد في كتاب الاطعمة في الاجتماع على الطعام: ...[بقيه حاشيه په راروانه صفحه...

ددې حدیث پاك هم په شریکه او یو ځائې خوراك کولو فضیلت معلومیږي.

[۵۰۶۹] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ سَمِعْتُ بُشَيْرَ بْنَ يَسَارٍ يَقُولُ حَدَّثَنَا سُوَيْدُ بْنُ النُّعْمَانِ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - إِلَى خَيْبَرَ، فَلَمَّا كُنَّا بِالصَّهْبَاءِ - قَالَ يَحْيَى وَهِيَ مِنْ خَيْبَرَ عَلَى رَوْحَةٍ - دَعَا رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - بِطَعَامٍ، فَمَا أُتِيَ إِلاَّ بِسَوِيقٍ، فَلُكْنَاهُ فَأَكَلْنَا مِنْهُ، ثُمَّ دَعَا بِمَاءٍ فَمَضْمَضَ وَمَضْمَضْنَا، فَصَلَّى بِنَا الْمَغْرِبَ وَلَمْ يَتَوَضَّأْ.

قَالَ سُفْيَانُ سَمِعْتُهُ مِنْهُ عَوْدًا وَبَدْءًا. [ر: ۲۰۶]

دا حدیث باب مخکښې باب السویق کښې هم راروان دې. سوید بن نعمان رضی الله عنه فرمائی چې مونږ رسول کریم صلی الله علیه وسلم سره خیبر طرفته اووتلو. کله چې مونږ صهباء مقام ته اورسیدو اودا دخیبر نه یو ماښام یعنی د نیم منزل په فاصله کښې دې.

**قوله**: مِنْ خَيْبَرَ عَلَى رَوْحَةٍ: ددې مطلب دې چې دا ځائې د خیبر نه دومره لرې دې که یو کس د زوال په وخت کښې روان ش نو ماښام په هلته اورسی. رسول کریم صلی الله علیه وسلم خوراك راغوښتلو، نوصرف ستوان راؤړلې شو. مونږ ددې نه څه اوخوړل. بیا نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوبه راؤغوښتل، او صرف خله مبارکه ئې کګناله کړه. اودس ئې اونه کړو. مونږ هم خلې کنګالې کړې. او ذې نه پس مونږ ته د ماښام مونځ راکړو. سفیان بن عینیه فرمائی چې دا حدیث پاك ما دیحیی بن سعید نه اولا او اخرا واؤریدو.

**لکنا**: بروزن قلنا لوك نه دې. اوددې معنی ده پوکې وهل.

**قوله**: عودا وبدءا: ای عائدا وبادئا ای اولا اخرا: یعنی اول کښې مې هم واؤریدو او په آخر کښې مې دوباره بیا واؤریدو. (۱)

د ترجمة الباب د حدیث مناسب سره ظاهر دی چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم او حضرات صحابه کرام رضی الله عنهم اجتماعا خوراك اوفرمائیلو.

## ۷- باب الْخُبْزِ الْمُرَقَّقِ وَالأَكْلِ عَلَى الْخِوَانِ وَالسُّفْرَةِ.

**قوله**: الْخُبْزُ الْمُرَقَّقُ: نرې چپاتې، او نرمه نرئ روټئ ته وائی. او خوان د خاء په کسره او ضمه سره دې، دې کښې یو دریم لغت اخوان هم دې. (۲)

...بقیه ازحاشیه گذشته] ان اصحاب النبی صلی الله علیه وسلم قالوا: یارسول الله صلی الله علیه وسلم: انا ناکل ولا نشبع قال فعلیکم تفترقون؟ قالوا نعم، قال فاجتمعوا علی طعامکم واذکراسم الله علیه، یبارک لکم فیه، رقم الحدیث: ۳۷۶۴، واخرجه وابن ماجه فی کتاب الاطعمة باب الاجتماع علی الطعام رقم الحدیث :۳۲۸۶، وانظر ایضا الترغیب والترهیب للمنذری باب الترغیب فی الاجتماع: ۱۳۳/۳)

(۱) (ارشاد الساری :۱۵۵/۱۲، وعمدة القاری ::۳۴/۲۱)

(۲) (فتح الباری :۶۶۳/۹، وعمدة القاری: ۳۴/۲۱)

علامه عینی ددې متعلق فرمائی چې دا د تانبې وو او ددې لاندې پښې وې. (۱)
کیدې شی چې په هغه زمانه کښې خوان د تانبې وو. خلقو به په دې باندې خوراك ایښودو او هغه به ئې خوړلو. نن صبا ددې مثال چوکئی او میز دې. مولانا وحیدالزمان صاحب ددې ترجمه میز کړې ده. (۲)

او (سفرة) د سین په ضمه اود فاء په سکون سره دسترخوان ته وائی. اصل کښې خود سفرة اطلاق په طعام ته وائی. لیکن دلته محل ذکر کړې شوې دې او مراد ترې حال اخستې شوې دې. یا حال وئیلې شوې دې او مراد دې محل اخستې شوې دې. ځکه چې طعام حال او دسترخوان محل دې. او مراد دسترخوان دې. (۳) عام طور سره د څرمنې دسترخوان دپاره سفرة استعمالیږی.

[۵۰۷۰] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ قَالَ كُنَّا عِنْدَ أَنَسٍ وَعِنْدَهُ خَبَّازٌ لَهُ فَقَالَ مَا أَكَلَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - خُبْزًا مُرَقَّقًا وَلاَ شَاةً مَسْمُوطَةً حَتَّى لَقِيَ اللَّهَ. [۵۱۰۵، ۶۰۹۲]

دا حدیث پاك امام بخاری رحمه الله په اول ځل دلته ذکر فرمائیلې دې. (۴)
قتاده فرمائی چې مونږ انس سره وو. هغوئ سره دهغوئ باورچی وو. نو هغوئ اوفرمائیل چې رسول کریم ﷺ کله هم نرئ روټئی نه ده خوړلې، او نه ئې شاة مسموطه خوړلې ده.

**قوله: شَاةً مَسْمُوطَةً:** هغه چیلئ ته وائی چې دهغې ویښته ګرمو اوبو سره په وینځلو لرې کولې شی، او څرمنې سره دا ټوله پخولې شی. عام طور سره د صغیر السن چیلئ بچی سره دا طریقه کولې شی. (۵)

دا د مترفینو طریقه ده، ځکه دا خوښه نه کړې شوه. اودا پریښوډې شوه، اوکله چې داغتیه شی نوددې قیمت اوغوښه کښې به زیاتوالې راشی. اوددې څرمن به هم فائده منده وی. خو څرمنې سره ددې پخول داامکان ختم شی. ځکه داعمل خوښ نه کړې شو. خوبیا هم جائزدې. (۶)

---

(۱) (قال العینی فی العمدة: ۲۵/۲۱، وهو طبق کبیر من نحاس تحته کرسی من نحاس ملزوق به طوله قدر ذراع وضع بین کبیر من المترفین لا یحمله الا اثنان فما فوقهما)

(۲) (اوګورئی القاموس الجدید: ۲۶۰ مده خوه)

(۳) (سفرة اسم لما یوضع علیه الطعام، واصلها الطعام نفسه (ارشاد الساری:۱۲/۱۵۶) وعدمة القاری :۳۵/۲۱، وفتح الباری: ۶۶۳/۹)

(۴) (الحدیث اخرجه البخاری ایضا فی باب شاة مسموطة والکتف والجنب: (رقم الحدیث:۵۱۵۰) و فی کتاب الرقاق باب کیف کان عیش النبی ﷺ واصحابه وتخلیهم من الدنیا (رقم الحدیث:۶۰۹۲) واخرجه ابن ماجه فی الاطعمة باب الرقاق :۱۱۰۸/۲) رقم الحدیث :۳۳۳۹).

(۵) (وفتح الباری ۶۶۳/۹، المسموطة الذی ازیل شعره بالماء المسخن وشوی بجلدة ویطبخ وانما یصنع ذالک فی الصغیرة السن الطوی)

(۶) (فتح الباری :۶۶۳/۹ وعمدة القاری: ۳۵/۲۱)

[٥٠٧١] حَدَّثَنَا عَلِي بْنُ عَبْدِ اللهِ حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي عَنْ يُونُسَ. قَالَ عَلِي هُوَ الإِسْكَافُ - عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ رضي الله عنه قَالَ مَا عَلِمْتُ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم - أَكَلَ عَلَى سُكُرُجَةٍ قَطُّ، وَلاَ خُبِزَ لَهُ مُرَقَّقٌ قَطُّ، وَلاَ أَكَلَ عَلَى خِوَانٍ. قِيلَ لِقَتَادَةَ فَعَلَى مَا كَانُوا يَأْكُلُونَ قَالَ عَلَى السُّفَرِ.[٥٠٩٩]

دا حديث پاك هم امام بخاري رحمه الله دلته په رومبي ځل ذكر فرمائيلي دې. (١).

انس رضي الله عنه فرمائي چې ما ته نه دى معلوم چې رسول كريم صلى الله عليه وسلم كله به وړه ركيبئ كښې خوراك كړې وى او نه نبى كريم صلى الله عليه وسلم كله نرئ روټئ خوړلې ده، او نه نبى كريم صلى الله عليه وسلم په خوان يعنى ميز باندې خوراك كړې دې، قتاده نه تپوس اوكړې شو چې آخر خلقو به په څه څيز باندې خوراك كولو؟ نو هغوئ اُوفرمائيل چې دسترخوان باندې.

**قوله**: سُكُرُجَة: ددې ترجمه ركيبئ كړې شوې ده. او وړو وړو پيالو ته هم سُكُرُجَة وائى. (٢)

نبى كريم صلى الله عليه وسلم بهٔ عام طور په شريكه خوراك كولو. ځكه د وړو لوښو ضرورت نه وو، لوئې لوښى كښې به په شريكه خوراك كولو.

دويمه وجه داده چې وړوكې ركيبئ او وړوكې پيالئ عام طور د اچارو وغيره دپاره استعماليږى. اود نبى كريم صلى الله عليه وسلم په زمانه خو اول غريبى او تنګ دستى وه او دويم دا چې د خوراك زيات اهتمام نه وو. اود اچار او چټنئ وغيره بندوبست هغه خلق كوى چې د زيات خوراك شوقين او عادى وى. (٣)

**قوله**: سُفَر: د سُفرة جمع ده. دسترخوان ته وائى.

سند كښې يونس نه مراد يونس بن ابى الفرات دې، د ابن ما جه په روايت كښې ددې تصريح شته دې. ابن معين او امام احمد دوئ ته ثقه وئيلى دى. بخارى شريف ددوئ دا يو حديث دې. (٤)

دې روايت كښې د حيس ذكر دې. پينر، كهجورې او غوړى يو ځائې كړى او ددې نه يوه حلوه جوړولې شى، دې ته حيس وائى.

**قوله**: لأَنْطَاعِ: د نطع جمع ده، ددې معنى ده دسترخوان.

---

(١) (٥٠٧١)(اخرجه البخارى ايضا فيه، على ماكان النبى صلى الله عليه وسلم واصحابه ياكلون رقم الحديث :٥٠٩٩. واخرجه الترمذى فى الاطعمة باب ماجاء على ما كان ياكل رسول الله : ٤٥٠/٤، الحديث :١٧٨٨، واخرجه ابن ماجه فى الاطعمة باب الاكل على الخوان والسفرة:١٠٩٥/٢ رقم الحديث :٣٢٩٢)

(٢) (قال العينى فى العمدة:٣٦/٢١، سُكُرُجَة بضم السين والكاف والراء المشدد بعدها جيم مفتوحة هى قصاص صغار يؤكل فيها... وفتح البارى :٦٦٤/٩)

(٣) (فتح البارى :٦٦٥/٩)

(٤) (عمدة القارى :٣٥/٢١، وفتح البارى :٦٦٤/٩)

[۵۰۷۲] حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي مَرْيَمَ أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ أَخْبَرَنِي حُمَيْدٌ أَنَّهُ سَمِعَ أَنَسًا يَقُولُ قَامَ النَّبِي -صلى الله عليه وسلم- يَبْنِي بِصَفِيَّةَ فَدَعَوْتُ الْمُسْلِمِينَ إِلَى وَلِيمَتِهِ أَمَرَ بِالْأَنْطَاعِ فَبُسِطَتْ فَأُلْقِيَ عَلَيْهَا التَّمْرُ وَالْأَقِطُ وَالسَّمْنُ. وَقَالَ عَمْرٌو عَنْ أَنَسٍ بَنَى بِهَا النَّبِي - صلى الله عليه وسلم - ثُمَّ صَنَعَ حَيْسًا فِي نِطَعٍ. [ر: ۳۶۴]

[۵۰۷۳] حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ أَخْبَرَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ أَبِيهِ وَعَنْ وَهْبِ بْنِ كَيْسَانَ قَالَ كَانَ أَهْلُ الشَّامِ يُعَيِّرُونَ ابْنَ الزُّبَيْرِ يَقُولُونَ يَا ابْنَ ذَاتِ النِّطَاقَيْنِ. فَقَالَتْ لَهُ أَسْمَاءُ يَا بُنَيَّ إِنَّهُمْ يُعَيِّرُونَكَ بِالنِّطَاقَيْنِ، هَلْ تَدْرِي مَا كَانَ النِّطَاقَانِ إِنَّمَا كَانَ نِطَاقِي شَقَقْتُهُ نِصْفَيْنِ، فَأَوْكَيْتُ قِرْبَةَ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- بِأَحَدِهِمَا، وَجَعَلْتُ فِي سُفْرَتِهِ آخَرَ، قَالَ فَكَانَ أَهْلُ الشَّامِ إِذَا عَيَّرُوهُ بِالنِّطَاقَيْنِ يَقُولُ إِيهًا وَالإِلَهْ. تِلْكَ شَكَاةٌ ظَاهِرٌ عَنْكَ عَارُهَا. [ر: ۲۸۱۷]

عبدالله بن زبير ﷻ ته يا ابن ذات النطاقين اووئيلې شو، ددوئ مور بى بى اسماء بنت ابى بكر باندې د ذات النطاقين اطلاق كړې شوې دې.
اصل كښې كله چې نبى كريم ﷺ هجرت اوكړو او مدينې منور ته ئې تشريف يوړو، نو هغوئ خپل كمر بند اوشلولو او يو سره ئې د نبى كريم ﷺ مشكيزه اوتړله او بل باندې ئې د دوئى دسترخوان تړلې وو. دوئ ته ذات النطاقين اووئيلې شو.

**قوله**: فَأَوْكَيْتُ قِرْبَةَ رَسُولِ اللَّهِ ﷺ بِأَحَدِهِمَا: د (أَوْكَىٰ) معنى تړل ده. او (قِرْبَة) (دقاف په كسره سره) مشكيزې ته وئيلې كيږى. (اى ربطت فمها به......) يعنى د مشكيزې خوله ئې يو نطاق سره اوتړله.

شام والو چې به كله عبدالله بن زبير ﷻ ته ابن ذات النطاقين وئيلواو پيغور كولو نو فرمائيل به ئې (ايها والاله:) په الله مې دې قسم وى، وائې كنه څه په دې خوشحاليږم. (ايها) (د همزه په كسره، دياء په سكون اود هاء په تنوين سره) علامه قسطلانى ددوئ باره كښې فرمائى: (كلمة تستعمل فى استدعاء الشى وقيل: هى للتصديق كانه قال: صدقتم) [1]
يعنى ديو څيز د غوښتلو دپاره دكلمه وئيلې كيږى. دويم قول دادې چې د چا د خبرې اعتراف او تصديق كولو دپاره دا استعماليږى.

دلته (ايها والاله) دې، د احمد بن يونس روايت كښې دى چې (ايها ورب الكعبة) الفاظ دى. [2]
عبدالله بن زبير ﷻ د ابو ذؤب هذلى د شعر مصرعه وائى، پوره شعر داسې دې:

وعيرن والواشون انى احبها      وتلك شكاة ظاهر عنك عارها

[1] (ارشاد السارى: ۱۵۸/۱۲)
[2] (فتح البارى :۶۶۶/۹، وارشاد السارى :۱۵۸/۱۲)

«اته چغلى كوؤنكو پيغور راكړو چې څه هغوئ سره محبت كوؤم، (ليكن څه خو هغوئ ته پيغور وركوم څكه چې) دا خو يو داسې پيغور دې چې ددې عيب زائله كيدونكې دې.

**قوله**: ظَاهِرٌ: د زائله په معنى كښې ده.[1]

مطلب دادې چې ددې نه خو فضيلت ثابتيږى چې هغوئ د نبى كريم ﷺ په خدمت كښې دومره د عاجزئى او مينې اظهار كړې وو چې خپل كمر بند ئې هم د سترخوان او مشكيزې ترلو دپاره د نبى كريم ﷺ د خدمت دپاره استعمال كړل.

**قوله**: أَضُبّ: (بفتح الهمزة وضم الضاد و تشديد الباء) د ضب جمع ده، ګوه يا كفتار.

[۵۰۷۴] حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ أَبِي بِشْرٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ أُمَّ حُفَيْدٍ بِنْتَ الْحَارِثِ بْنِ حَزْنٍ - خَالَةَ ابْنِ عَبَّاسٍ - أَهْدَتْ إِلَى النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - سَمْنًا وَأَقِطًا وَأَضُبًّا، فَدَعَا بِهِنَّ فَأُكِلْنَ عَلَى مَائِدَتِهِ، وَتَرَكَهُنَّ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - كَالْمُسْتَقْذِرِ لَهُنَّ، وَلَوْ كُنَّ حَرَامًا مَا أُكِلْنَ عَلَى مَائِدَةِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - وَلاَ أَمَرَ بِأَكْلِهِنَّ. [ر: ۲۴۳۶]

## ۸- باب السَّوِيقِ.

[۵۰۷۵] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ يَحْيَى عَنْ بُشَيْرِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ سُوَيْدِ بْنِ النُّعْمَانِ أَنَّهُ أَخْبَرَهُ أَنَّهُمْ كَانُوا مَعَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - بِالصَّهْبَاءِ - وَهْىَ عَلَى رَوْحَةٍ مِنْ خَيْبَرَ - فَحَضَرَتِ الصَّلاَةُ، فَدَعَا بِطَعَامٍ فَلَمْ يَجِدْهُ إِلاَّ سَوِيقًا، فَلاَكَ مِنْهُ فَلُكْنَا مَعَهُ، ثُمَّ دَعَا بِمَاءٍ فَمَضْمَضَ، ثُمَّ صَلَّى وَصَلَّيْنَا، وَلَمْ يَتَوَضَّأْ. [ر: ۲۰۶]

## ۹- باب مَا كَانَ النَّبِيُّ لاَ يَأْكُلُ حَتَّى يُسَمَّى لَهُ فَيَعْلَمَ مَا هُوَ

دې باب كښې امام بخارى رحمه الله فرمائى چې نبى كريم ﷺ به تر هغه پورې يو څيز نه خوړلو تركومې چې به نبى كريم ﷺ ته دا اونه وئيلې شو چې هغه څه څيز دې، او كوم خوراك دې. ددې يو وجه داهم ليكلې شوې ده چې په عربو كښې په هغه زمانه كښې چونكه د خوراك د

---

[1] (او اولنى دوه اشعار دى:

هل الدهر الا ليلة ونهارها     والا طلوع الشمس ثم غيارها

ابى تحرق نارى بالشكاة ونارها

او د متن ذكر شوى شعر نه پس داشعر دې

فان اعتذر منها فانى مكذب

وان تعتذر يردد عليك اعتذارها

فتح البارى :۹/۶۶۶، وعمدة القارى:۲۱/۳۷

ځيزونو قلت وو. ددې وجې چې دخوراك څه ځيز به ورته ملاؤ شو نو عام طور به ئې خوړلو. ليكن نبی كريم ﷺ ته ځينې طبعی طورخوښ نه وو ،ددې وجې به نبی كريم ﷺ ته وئيلې شو. داشان د ځينې ځناورو غوښهٔ شرعی نقطه نظر سره حرام ګرزولې شوې وه، نبی كريم ﷺ به ددې وجې هم معلومات كولو چې هسې نه د يو حرام ځيز غوښه استعمال نه كړی چې خوړونكی حلاله ګنړلې وی، او هغه په شريعت كښې حرامه وی (١)

د ترجمة الباب مقصد دادې چې كه ديو سړی طبيعت داشان دې چې ده ته په خوراك كښې ځينې ځيزونه خوښ دی او ځينې ئې خوښ نه وی نو په دې كښې هيڅ حرج نشته چې دا يو طبعی او غير اختيار حالت دې.

[۵۰۷۶] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ أَبُو الْحَسَنِ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا يُونُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبُو أُمَامَةَ بْنُ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ الأَنْصَارِيُّ أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ أَخْبَرَهُ أَنَّ خَالِدَ بْنَ الْوَلِيدِ الَّذِي يُقَالُ لَهُ سَيْفُ اللَّهِ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ دَخَلَ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم عَلَى مَيْمُونَةَ وَهْيَ خَالَتُهُ وَخَالَةُ ابْنِ عَبَّاسٍ فَوَجَدَ عِنْدَهَا ضَبًّا مَحْنُوذًا، قَدِمَتْ بِهِ أُخْتُهَا حُفَيْدَةُ بِنْتُ الْحَارِثِ مِنْ نَجْدٍ، فَقَدَّمَتِ الضَّبَّ لِرَسُولِ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم وَكَانَ قَلَّمَا يُقَدِّمُ يَدَهُ لِطَعَامٍ حَتَّى يُحَدَّثَ بِهِ وَيُسَمَّى لَهُ، فَأَهْوَى رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم يَدَهُ إِلَى الضَّبِّ، فَقَالَتِ امْرَأَةٌ مِنَ النِّسْوَةِ الْحُضُورِ أَخْبِرْنَ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- مَا قَدَّمْتُنَّ لَهُ، هُوَ الضَّبُّ يَا رَسُولَ اللَّهِ. فَرَفَعَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَدَهُ عَنِ الضَّبِّ، فَقَالَ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ أَحَرَامٌ الضَّبُّ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ «لاَ وَلَكِنْ لَمْ يَكُنْ بِأَرْضِ قَوْمِي فَأَجِدُنِي أَعَافُهُ». قَالَ خَالِدٌ فَاجْتَرَرْتُهُ فَأَكَلْتُهُ وَرَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَنْظُرُ إِلَيَّ. [۵۰۸۵، ۵۲۱۷]

خالد بن وليد رضی الله عنه فرمائي چې هغوئ نبی كريم ﷺ سره ميمونه رضی الله عنها كره لاړو، (ميمونه رضی الله عنها ددوئ او د ابن عباس رضی الله عنه ترور وه) هغوئ سره وريته شوې غوښه موجود وه. چې دا غوښهٔ ددې خور خفيده بنت الحارث د علاقې نجد نه راوړې وه. ميمونه هغه غوښه نبی كريم ﷺ ته مخكښې كړه، او ډير كم به داسې وو چې نبی كريم ﷺ خپل لاسونه مبارك يو خوراك طرفته اوړل. تر هغه وخته پورې چې نبی كريم ﷺ ته ددې بيان اونه كړې شی چې دا څه ځيز دې. نبی كريم ﷺ خپل لاس مبارك ورته شوې غوښې ته اورد كړو. نو هغه ځائې كښې چې كومې ښځې ناستې وی هغوئ كښې يو اووئيل چې د نبی كريم ﷺ په مخكښې تا كوم ځيز ايخودې دې دهغې باره كښې اووايه. (بيا ئې پخپله اووئيل) چې يارسول الله ﷺ! دا خو سمساره ده، په دې أوريدو سره نبی كريم ﷺ خپل لاس مبارك روستو كړو، په دې باندې خالد بن وليد رضی الله عنه اوفرمائيل چې يارسول الله ﷺ! آيا دا حرام ځيز دې څه. نبی كريم ﷺ اوفرمائيل چې نه ليكن دا زمونږ په وطن كښې نشته دې نو ددې وجې زما طبيعت دانه خوښوی.

---

(١) مذكوره دواړو توجيهاتو دپاره اوګورئي : فتح الباری :۹/ ۶۶۸، ارشاد الساری:۱۲/ ۱۶۰).

خالد بن ولید رضی الله عنه فرمائی چې ما دا د نبی کریم ﷺ د مخکښې نه راښکله او خوړله مې نو نبی کریم ﷺ زما طرفته تعجب سره کتل.

**قوله: (فقالت امراة من النسوة الحضور):** چې کومې ښځې نبی کریم ﷺ ته اووئیل، د طبرانی په روایت کښې دی چې هغه میمونه رضی الله عنها وه.

**د سمسارې خوړلو حکم:** د جمهورو علماء کرامو په نیزد د کفتار او ګوه غوښه خوړل مباح دی، امام مالك رحمه الله، امام شافعی رحمه الله، امام احمد بن حنبل رحمه الله او د ظاهریه هم دا مسلك دې. (۱)

د حضرات فقهاء کرامو د یوې ډلې په نیزد سمساره حرامه ده، دا مسلك د اعمش رحمه الله، زید بن وهب او علی رضی الله عنه دې. (۲)

د امام ابوحنیفه رحمه الله اود صاحبینو په نیز د سمسارې غوښه مکروه ده. (۳)

امام طحاوی ورته مکروه تنزیهی وئیلی دی. (۴) او په بنایه کښې دعینی رحمه الله د کلام نه معلومیږی چې دا مکروه تحریمی ده. (۵)

د جمهورو علماء کرامو استدلال حدیث د باب نه دې، چې واضح دې.

دحرمت قائلین، ابو داؤد کښې د عبدالرحمان بن شبل رحمه الله روایت نه استدلال کوی چې (ان النبی ﷺ نهی عن اکل الضب) (۶)

علامه بیهقی دا حدیث پاك داسماعیل بن عیاش په وجه معلول ګرزولی دی. (۷)

لیکن حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې اسماعیل بن عیاش رحمه الله شامییونو نه روایت مقبول دې او دا حدیث پاك هغه د شامیین نه روایت کوی، دې نه علاوه ابن عساکر دې روایت لره د عائشه صدیقه رضی الله عنها په طریق باندې هم نقل کړې دې، او ددهٔ سند حسن دې. (۸)

همداشان امام محمد رحمه الله په کتاب الاثار کښې د عائشه رضی الله عنها نه روایت نقل کړې دې چې هغوئ ته چا په هدیه کښې ضب ورکړو. هغوئ ددې متعلق د حضرت نبی کریم ﷺ نه تپوس اوکړو چې نبی کریم ﷺ منع کړه، په دې کښې یو سائل راغلو، عائشه صدیقه رضی الله عنها هغه ته دغه ضب ورکول غوښتل نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې (اتطعمینه مالا تاکلین) چې څه په خپله نه خورې نو هغه بل ته مه ورکوئ.

---

(۱) فتح الباری: ۹/ ۶۶۸ ارشاد الساری: ۱۲/ ۱۶۱).
(۲) کتاب الام: ۵۳/۱ الجزء الثانی: اکل الضب وعمدة القاری: ۳۹/۲۱).
(۳) عمدة القاری: ۵۳/۲۱).
(۴) اعلاء السنن، کتاب الذبائح، باب النهی عن اکل الضب: ۱۶۲/۱۷).
(۵) البنایة شرح هدایه: ۷۰/۱۰).
(۶) سنن ابو داؤد کتاب الاطعمة باب فی اکل الضب رقم الحدیث: ۳۷۹۶).
(۷) اعلاء السنن کتاب الذبائح: ۱۶۰/۱۷).
(۸) السراج المنیر للعزیز: ۳۹۶/۳).

امام احمد رحمه الله فرمائی چې: «وبه نأخذ وهو قول ابی حنیفة رحمه الله»[1]

# ۱۰- بَاب طَعَامُ الْوَاحِدِ يَكْفِي الِاثْنَيْنِ.

[۵۰۷۷] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ وَحَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ أَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضی الله عنه - أَنَّهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلی الله علیه وسلم - «طَعَامُ الِاثْنَيْنِ كَافِي الثَّلَاثَةِ، وَطَعَامُ الثَّلَاثَةِ كَافِي الْأَرْبَعَةِ».

امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې چې کوم الفاظ نقل کړی دی دا دهغه حدیث مبارک الفاظ دی کوم چې امام مسلم نقل کړی دی.[2]

حدیث د امام بخاری رحمه الله په شرط باندې پوره نه وو. ددې وجې امام بخاری رحمه الله دا الفاظ په ترجمة الباب کښې ذکر کړل، او مخکښې په «باب طعام الاثنین کافی الثلاثة» والا روایت کښې نقل فرمائی چې د دواړو روایتونو په مینځ کښې فرق ظاهر دې دیو سړی خوراك د دوؤ دپاره کافی کیږی. دې صورت کښې د هر یو حصه کښې نیم نیم رازی. د دوؤ دریو دپاره کافی دې، په دې کښې دنیم په ځائې د هر یو حصه دریمه دریمه حصه راشی.

علامه ابن منیر رحمه الله فرمائی چې د ترجمة الباب الفاظ حدیث باب نه داشان ثابتیږی چې د کوم سړی دپاره ثلث پریښودل ممکن وی، ددې نیم پریښودل هم ممکن وی، «لتقاربها»[3] ځکه چې نیم او دوه ثلث کښې صرف د یو سدس فرق دې او دا څۀ فرق نه دې.

**د یو خوراک د دوؤ دپاره دکافی کیدو مطلب:** باقی ددې احادیثو مطلب دا نه دې چې کوم خوراك د یو سړی دپاره کافی وی دې سره دوه سړی ماړۀ شی، بلکه مطلب ددې امر دادې چې د دوؤ ګزاره په دې سره اوشی. داشان چې کوم خوراك دوه سړی مړوی، هغه د دریو سړو دپاره په طور دقناعت کافی کیږی اوددې بنیادی غذائی ضرورت دې سره پوره کیږی.[4] داشان داحادیثو اصل مقصد د قناعت ترغیب او تعلیم ورکول دی چې الله جل جلاله تأسو ته څه درکړی دی، په هغې کښې نورو خلقو لره هم شریکوئی.

حدیث باب امام بخاری رحمه الله دلته په رومبی ځل ذکر اوفرمائیلو.[5]

# ۱۱- بَاب الْمُؤْمِنُ يَأْكُلُ فِي مِعًى وَاحِدٍ.

[۵۰۷۸] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ وَاقِدِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ نَافِعٍ

---

[1]) کتاب الاثار : ۱۷۹، رقم الحدیث : ۸۱۶).

[2]) اوګورئی صحیح المسلم کتاب الاطعمة باب فضیلة المواساة فی الطعام القلیل رقم الحدیث :۲۰۵۸).

[3]) فتح الباری :۹/۶۶۹).

[4]) فتح الباری :۹/ ۶۶۸، و شرح مشکاة للطیبی کتاب الاطعمة:۸/۱۴۴).

[5]) (۲۰۵۸) اخرجه مسلم فی کتاب الاطعمة، باب المواسات فی الطعام القلیل رقم الحدیث :۲۰۵۸، اخرجه الترمذی فی کتاب الاطعمة باب ماجاء فی طعام الواحد یکفی الاثنین (رقم الحدیث:۱۰۲۰).

قَالَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ لَا يَأْكُلُ حَتَّى يُؤْتَى بِمِسْكِينٍ يَأْكُلُ مَعَهُ، فَأَدْخَلْتُ رَجُلًا يَأْكُلُ مَعَهُ فَأَكَلَ كَثِيرًا فَقَالَ يَا نَافِعُ لَا تُدْخِلْ هَذَا عَلَيَّ سَمِعْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ «الْمُؤْمِنُ يَأْكُلُ فِي مِعًى وَاحِدٍ وَالْكَافِرُ يَأْكُلُ فِي سَبْعَةِ أَمْعَاءٍ».

[٥٠٧٩] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ أَخْبَرَنَا عَبْدَةُ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رضى الله عنهما - قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «إِنَّ الْمُؤْمِنَ يَأْكُلُ فِي مِعًى وَاحِدٍ، وَإِنَّ الْكَافِرَ - أَوِ الْمُنَافِقَ فَلَا أَدْرِي أَيَّهُمَا قَالَ عُبَيْدُ اللَّهِ - يَأْكُلُ فِي سَبْعَةِ أَمْعَاءٍ». وَقَالَ ابْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - بِمِثْلِهِ.

[٥٠٨٠] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو قَالَ كَانَ أَبُو نَهِيكٍ رَجُلًا أَكُولًا فَقَالَ لَهُ ابْنُ عُمَرَ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «إِنَّ الْكَافِرَ يَأْكُلُ فِي سَبْعَةِ أَمْعَاءٍ». فَقَالَ فَأَنَا أُومِنُ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ.

[٥٠٨١] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ أَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «يَأْكُلُ الْمُسْلِمُ فِي مِعًى وَاحِدٍ، وَالْكَافِرُ يَأْكُلُ فِي سَبْعَةِ أَمْعَاءٍ».

[٥٠٨٢] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ عَنْ أَبِي حَازِمٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَجُلًا كَانَ يَأْكُلُ أَكْلًا كَثِيرًا، فَأَسْلَمَ فَكَانَ يَأْكُلُ أَكْلًا قَلِيلًا، فَذُكِرَ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ «إِنَّ الْمُؤْمِنَ يَأْكُلُ فِي مِعًى وَاحِدٍ، وَالْكَافِرُ يَأْكُلُ فِي سَبْعَةِ أَمْعَاءٍ».

(معًى) د میم په کسره او دعین په تنوین سره کولمې ته وائی.

د باب رومبی حدیث کښې د عبدالله بن عمر ﷺ متعلق دې چې تر کومې پورې به د سره په خوراك کښې یو مسکین او فقیر شامل نه وو. تر هغه وخته پورې به هغه خوراك نه کولو، یو ځل یو سړې ده سره د خوراك دپاره راوستلې شو، نو هغه ډیر خوراك اوکړو. نو ابن عمر فاروق ﷺ اوفرمائیل چې بیا دپاره مالزه دا سړې مه راوله. ځکه چې ما د نبی کریم ﷺ نه آؤریدلی دی چې مؤمن په یو کولمه او کافر په اوؤ کولمو کښې خوری.

**د مؤمن په یو کولمه او کافر په اوؤ کولمو سره د خوړلو مطلب:** حضرات محدثین ددې حدیث متعلق بیان کړېدې

① یو مطلب دا بیان شوې دې چې ددې حدیث نه حقیقت کښې کولمې او خوراك مراد نه دی، بلکه دنیا اوددې لذتونو قلت او کثرت ترې مراد دې یعنی دنیا ته ئې (اکل) او ددې اسبابو ته ئې (امعاء) سره تعبیر ورکړو او مقصد دادې چې مومن ته ددنیاوی د لذتونو زیات شوق نه وی او کافر عیش او لذت پرست وی. (١)

(١) فتح البارى :٩/ ٦٧٢عمدة القارى:٢١/ ٤١، ارشاد السارى:١٢/ ١٦٢).

② دويم مطلب دا بيان كړې شوې دې چې مؤمن رزق حلال خورى چې نسبتا كم وى او كافر حرام خورى چې ددې ذرائع ډيرې زياتې وى، قلت حلال او كثرت حرام لره په (معی واحد) او (سبعة امعاء) سره تعبير كړې شوې دې. [1]

③ د حديث پاك مطلب دادې چې د مؤمن په خوراك كښې بركت اود كافر په خوراك كښې بې بركتى بيانول دى چې مؤمن د الله تعالى نوم اخلى او خوراك كوى نو دې كښې بركت وى، او شيطان ده سره شريك نه وى، نو كم خوراك ددهٔ دپاره كافى كيږى، كله چې كافر د الله تعالى د نوم نه بغير خوراك كوى نو د شيطان د شركت په وجه كم خوراك ددهٔ دپاره كافى نه وى. [2]

④ ددې نه مراد عام قانون بيانول نه دى بلكه نبى كريم ﷺ دا جمله د يو خاص مسلمان باره كښې ارشاد فرمائيلې وه، چې ددې ذكر د مسلم وغيره روايتونو كښې وې چې نبى كريم ﷺ لره يو مليمه راغلو او دا كافر وو. نبى كريم ﷺ دهغه دپاره د چيلئ دلوشولو حكم اوفرمائيلو، چيلئ اولوشلې شوه، هه دا پئ اوڅكل، بيا بله چيلئ اولوشلې شوه، هغه دا پئ هم او څكل، هر كله چې سبا شو نو هغه مسلمان شو. نبى كريم ﷺ دده دپاره د چيلئ لوشلو حكم اوفرمائيلو، نو هغه ددې چيلئ پئ اوڅكل او بله چيلئ اولوشلې شوه خوده انكار اوكړو چې څه موړ شوم، په دې باندې نبى كريم ﷺ دا جمله اوفرمائيله. مطلب دا وو چې كله داسړې كافر وو نو څكل ئې ډير اوكړل، او چې مسلمان شو نو كم ئې اوڅكل. نو په دې حديث پاك كښې ددې خاص سړى ذكر دې، عام خبره او څه قاعدې كليه بيانول مقصد نه دې. (المؤمن) او (الكافر) كښې الف لام عهد خارجى دى.

علامه طحاوى رحمه الله په (مشكل الاثار) كښې هم دا قول اختيار كړې دې، هغه فرمائى چې: (ان هذا الحديث كان فى مخصوص وهو الذى شرب حلاب سبع شياه، وليس عندنا للحديث محمل غير هذا الوجه) ابن عبدالبر او ابوعبيده هم داقول اختيار كړې دې. [3]

ليكن په دې قول بهٔ اشكال وى كله چې دا حديث د يو خاص سړى متعلق دې. عام خبره په دې كښې نه ده بيان شوې نو ابن عمر رضى الله عنه ددې نه عموم څنګه اوګڼړلو چې زيات خوراك فقير مالره مه راولئ.

⑤ پنځم مطلب دا بيان شوې دې چې په دې حديث پاك كښې دمؤمن د عمومى حالت ذكر دې. او د (سبعة) عدد نه مراد نه دې بلكه دا مبالغه فى الكثير دپاره دې. مطلب دا دې چې دمؤمن شان او عمومى كيفيت دا وى چې هغه په خوراك څكاك كښې زياته دلچسپى نه اخلى. كم خوراك كوى. زيات خوراك او مستقل په دې فكر كښې اوسيدل دكافرانو صفت

[1]) فتح البارى :۹/۶۷۲)
[2]) فتح البارى :۹/۶۷۲، عمدة القارى:۲۱/۴۱).
[3]) فتح البارى :۹/۶۳۷).

دي. په قرآن عظيم الشان كښې دى چې ﴿وَالَّذِينَ كَفَرُوا يَتَمَتَّعُونَ وَيَأْكُلُونَ كَمَا تَأْكُلُ الْأَنْعَامُ﴾ داشان مؤمن د خوراك په مقابله كښې عموما د يو اوؤ نسبت وى، ليكن دا اثر داغلب سره وى. گنى اكثر مؤمن داسې كيدشى چې عادتا يا دڅه عارض په وجه زيات خوراك كوى، لكه څنګه چې د باب په دريم حديث پاك كښې دى چې ابو نهيك به خوراك زيات كولو. ابن عمر رضي الله عنه چې كله اوفرمائيل چې كافر به اوؤ كولمو سره خورى نو هغوئ اووئيل چې مؤمن يم (كافر نه يم) او ډير كافر داسې كيدېشى چې ډير كم خوراك كوى. حديث بنا على الاغلب والاكثر ارشاد فرمائيلې شوې دې. [1] ددې حديث پاك په تشريح كښې هم دا قول د ټولو نه زيات زړه ته نزدې دې.

⑥ علامه قرطبى رحمه الله فرمائى چې د خوراك څكاك شهوات اووه دى. ① شهوة الطبع ② شهوة النفس ③ شهوة العين ④ شهوة الفم ⑤ شهوة الاذن ⑥ شهوة الانف ⑦ شهوة الجوع. د آخرى خواهش انسانى ضرورت دې، مؤمن صرف هم ددې يو خواهش لاندې خوراك كوى، او كافر دا نور خواهشات پيش نظر خوراك كوى، په د ې حديث كښې (معى واحد) او (امعاء سبعة) نه هم دا شهوات او خواهشات مراد دى. [2]

قاضى ابوبكر العربى رحمه الله هم دې ته نزدې نزدې د حديث پاك تشريح كړې ده. [3]

يحيى بن عبدالله بن بكير تعليق چې كوم حضرات امام بخارى رحمه الله فرمائيلى دې، دا ابونعيم موصولا نقل كړيدې. فتح البارى: ۹/۶۷۱، عمدة القارى: ۲۱/۴۳، ارشاد السارى: ۱۲/۱۶۳).

د باب په آخرى حديث كښې دى چې (ان رجلا ياكل كثيرا)

**دا سړې څوك وو؟**: اكثر حضرات دا وائى چې دا جهجاه غفارى وو، حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله نه روايت دې چې دا نضله بن عمرو وو. ابوعبيده په الغريب كښې ذكر كړى دى چې دا ابونضره غفارى وو او دابن اسحاق د قول مطابق دا ثمامه بن اثال وو. [4]

دصحيح بخارى په څينو نسخو كښې دوه بابونه دى، زمونږ هندوستانى نسخه هم ددې مطابق ده. ړومبى باب كښې دى چې (المؤمن ياكل فى معى واحد) ددې باب تحت د ابن عمر رضي الله عنه مسكين والا واقعه كښې روايت ذكر كړې دې او دويم باب كښې دى چې (المؤمن ياكل فى معى واحد فيه ابوهريرة رضي الله عنه عن النبى صلى الله عليه وسلم) دواړو كښې تكرار دې.

شيخ الحديث مولانا محمد زكريا رحمه الله فرمائى چې په دواړو ترجمو كښې اګر چې صورة تكرار دې ليكن د دواړو غرض جدا جدا دې، دړومبى باب نه تقليل د طعام طرفته اشاره كول مقصود دى او د دويم باب نه د امام بخارى رحمه الله مقصد په دې خبره باندې تنبيه كول

---

[1]) فتح البارى :۹/۶۷۳ عمدة القارى:۲۱/۴۱، وشرح الطيبى على مشكوة المصابيح :۸/۱۷۳)

[2]) عمدة القارى:۲۱/۶۷۴، ارشاد السارى:۱۲/۴۲).

[3]) فتح البارى :۹/۶۷۴).

[4]) فتح البارى :۹/۶۷۱، عمدة القارى:۲۱/ ۴۱، ارشاد السارى:۱۲/ ۱۶۵-۱۶۶).

دی چې خوراك نه دمؤمن غرض صرف رفع الجوع کول پکار دی، دکافر په شان مختلفو شهوتونه پوره کول دمؤمن مقصد نه دی پکار،(۱) والله اعلم

## ۱۲- باب الأَكْلِ مُتَّكِئًا

[۵۰۸۳] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا مِسْعَرٌ عَنْ عَلِيِّ بْنِ الأَقْمَرِ سَمِعْتُ أَبَا جُحَيْفَةَ يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- «لاَ آكُلُ مُتَّكِئًا».

[۵۰۸۴] حَدَّثَنِي عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ أَخْبَرَنَا جَرِيرٌ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ عَلِيِّ بْنِ الأَقْمَرِ عَنْ أَبِي جُحَيْفَةَ قَالَ كُنْتُ عِنْدَ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فَقَالَ لِرَجُلٍ عِنْدَهُ «لاَ آكُلُ وَأَنَا مُتَّكِئٌ».

داباب دامام بخاری رحمه الله تکیه او اډانړه لګولو اودخوراك کول متعلق قائم کړې دې،او صراحتا هیڅ حکم ئې نه دې لګولې ځکه چې څه صریح نهی په دې سلسله کښې نه ده وارد شوې.

**د اډانړه لګولو په وخت کښې د خوراك حکم:** د اډانړه لګولو مختلف صورتونه بیان کړې شوې دی، یو خو مشهور معنی ده چې څه څیز تکیه، دیوال وغیره سره دې اډانړه اولګولې شي او ددې نه علاوه یو اړخ طرفته تیتیدل او خوراك کول، په لاس باندې اډانړه لګول او خوراك کول داشان صورتونه په اتکاء کښې داخل دی او د اډانړه لګولو په وخت کښې خوراك کولو کښې د علماء کرامو اختلاف دې.

امام مالك رحمه الله امام شافعي رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله اود جمهورو په نزد اډانړه لګول او خوراك کول مکروه دی (۲)

لیکن د صحابه کرام رضي الله عنهم او تابعینو یو ډلې نه د «اکل متکئا» جوازهم منقول دې، نو ابن ابی شیبه د ابن عباس رضي الله عنه ، خالد بن ولید رضي الله عنه ، عبیده سلمانی رحمه الله، محمد بن سیرین رحمه الله، عطاء بن یسار رحمه الله او د امام زهری رحمه الله نه مطلقا جواز نقل دې.

د حضرت حنیفه میلان هم دې طرفته دې، نو علامه شامی رحمه الله لیکن دی چې «لاباس بالاکل متکئا» (۳).

دې حضراتو خو غالبا حدیث باب لره یا خو د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په خصوصیت باندې محمول کړې دې او یا بیا په افضیلت باندې محمول کړې دې.

شوافع کښې د ابو العاص بن القاص رائې ده چې دا د نبی کریم صلی الله علیه وسلم خصائصو نه دې.(۴)

لیکن ظاهر دادی چې دې لره بغیر د څۀ دلیل نه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم خصوصیت نه شی ګرزولې، البته بلا عذر اډانړه لګول او خوراك کول خلاف اولی دی، او په دې کښې د هیڅا اختلاف

(۱) تعلیقات لام الداری:۹/۳۹۴
(۲) عمدة القاری:۲۱/۴۳).
(۳) فتح الباری :۹/۶۷۶ عمدة القاری:۲۱/۴۴ ارشاد الساری:۱۲/۱۶۷).
(۴) عمدة القاری:۲۱/۴۳ فتح الباری :۹/۶۷۶).

نشته دي،(١) علامه عيني رحمه الله د طبراني په حوالې سره د ابو لدرداء نه روايت نقل کړې دې چې نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې (لاتدخل متكئا) علامه عيني فرمائي چې ددې حديث ټول راوي ثقه دي. (٢)

دضرورت په وخت کښې اډانړه لګول او خوراك کول بلا کراهت بالاتفاق جائز دي.

**د خوراک دپاره د ناستې مستحب صورتونه:** د خوراك دپاره ناسته کښې مستحب صورت يو خو دا دې چې سړی په دوارو پښو داشن کينی چې سرين په زمکه باندې اونه لږي، لکه څنګه چې زمونږ په مدارسو کښې زمونږ طلبه کرام کينی، نو د انس رضي الله عنه په روايت کښې دی چې نبی کريم ﷺ به د خوراك په وخت داشان کول. (٣)

دويم صورت دادې چې ښئ پښه اودروی او ګسه باندې کينی، لکه څنګه چې په درسګاه کښې عموما طلبه کينی، هم په هغه حالت کښې. (٤)

دې نه علاوه په څنګونو باندې کيناستل او متربعا کيناستل بلاکراهت جائزدی. ځکه چې په دې کښې د کراهت هيڅ علت نشته دې، بلکه په څنګونو داشان کيناستل چې ښی لاس په خيټه باندې وی او خوراك کښې تيتيږی نو اولی دی، خوراك دې کم او کړې شی، او په دې کښې د روټئ احترام هم زيات وی، (كما سمعت عن شيخ الاسلام والمسلمين سيدنا ومولانا حسين احمد مدنی رحمه الله)

حديث باب کښې د نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې ځه اډانړه شوی حالت کښې خوراك نه کوم. ځينې روايتونو کښې دی چې جبرائيل عليه السلام نبی کريم ﷺ اوکتلو چې اډانړه ئې لګولې وه او خوراك ئې کولو، نو نبی کريم ﷺ ئې منع کړو، دې نه پس نبی کريم ﷺ متکئا خوراك کول پريښودل. (٥)

**قوله:** عَلِي بْنِ الأَقْمَرِ: دلته د باب د دوؤ حديثونو په سند کښې (على بن الاقمر) دې، صحيح بخاری کښې ددوئ صرف يو حديث دې؟ (٦)

ابن سعد د کوفې والو په طبقه ثالثه کښې ددوئ ذکر کړې دې (٧) يحيى بن معين رحمه الله، ابو

---

(١) عمدة القاری:٢١/٤٤، الابواب والترجيم:٨٧/٢).
(٢) عمدة القاری:٢١/٤٤).
(٣) اوګورئی سنن ابوداؤد ، كتاب الاطعمة باب ماجاء فی الاكل متكئا:٣٤٨/٣ (رقم الحديث :٣٧٧١).
(٤) قال القسطلانی فی ارشاد الساری: ١٦٧/١٢، و اذا ثبت انه مكروه او خلاف الاولى فليكن الاكل جاثيا على ركبتيه وظهور قدميه او ينصب الرجل اليمنى ويجلس على اليسرى، اوګورئی تحفة الاحوذی ٥٥٨/٥ ، عمدة القاری:٢١/٤٤ فتح الباری :٦٧٦/٩)
(٥) فتح الباری :٦٧٦/٩ ارشاد الساری:١٢/ ١٦٧).
(٦) عمدة القاری:٢١/٤٣).
(٧) طبقات ابن سعد:٣١١/٦).

حاتم رحمه الله، عجلی رحمه الله، نسائی رحمه الله او دار قطنی رحمه الله دوئ په ثقه کښې ګرزولی دی. (۱)
ابن حبان رحمه الله په کتاب الثقات کښې دوئ ذکر کړی دی. (۲)

**قوله**: سَمِعْتُ أَبَا جُحَيْفَةَ: داحديث پاك علی بن الاقمر نيغ په نيغه دابو جحيفه نه آؤريدلی دې، په جمله کښې تصريح ده او دابو جحيفه ځوئې عون په واسطه هم آوريدلی دی لکه څنګه چې سفيان روايت کړې دې، دې ته د اصول حديث په اصطلاح کښې «مزيد فی متصل الاسانيد» وائی. (۳)

## ۱۳- بَابُ الشِّوَاءِ. (۱۴)

وَقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى (أَنْ جَاءَ بِعِجْلٍ حَنِيذٍ) أَيْ مَشْوِيٍّ.

[۵۰۸۵] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ بْنِ سَهْلٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ خَالِدِ بْنِ الْوَلِيدِ قَالَ أُتِيَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - بِضَبٍّ مَشْوِيٍّ، فَأَهْوَى إِلَيْهِ لِيَأْكُلَ فَقِيلَ لَهُ إِنَّهُ ضَبٌّ، فَأَمْسَكَ يَدَهُ، فَقَالَ خَالِدٌ أَحَرَامٌ هُوَ قَالَ «لاَ، وَلَكِنَّهُ لاَ يَكُونُ بِأَرْضِ قَوْمِي، فَأَجِدُنِي أَعَافُهُ». فَأَكَلَ خَالِدٌ وَرَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَنْظُرُ. قَالَ مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ بِضَبٍّ مَحْنُوذٍ. [ر: ۵۰۷۶]

ددې باب نه د امام بخاری رحمه الله مقصد دادې چې روته شوې غوښه خوړل جائز دی، ددې لاندې ئې ضب ولا روايت نقل کړې دې، ضب خو نبی کريم ﷺ د ناخوښنه په وجه او نه خوړله. خوددې په مشوی او روتولو باندې ئې اعتراض نه دې کړې اوپه دې ئې نکير نه دې کړې، ددې نه معلوم شو چې په روته شوې غوښه خوړلو کښې څه باك او خبره نشته دې، (۴)
ترجمة الباب کښې ذکرشوی آيت مبارك کښې د «حنيذ» معنی مشوی او ورته شوې غوښه ده.

## ۱۴- بَابُ الْخَزِيرَةِ.

وَقَالَ النَّضْرُ الْخَزِيرَةُ مِنَ النُّخَالَةِ، وَالْحَرِيرَةُ مِنَ اللَّبَنِ. ۷/۹۳

[۵۰۸۶] حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي مَحْمُودُ بْنُ الرَّبِيعِ الأَنْصَارِيُّ أَنَّ عِتْبَانَ بْنَ مَالِكٍ - وَكَانَ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - مِمَّنْ شَهِدَ بَدْرًا مِنَ الأَنْصَارِ - أَنَّهُ أَتَى رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم

---

(۱) اوګورئی الجرح والتعديل :۶/رقم الترجمة : ۹۵۴، والمعرفة والتاريخ:۶۵۱/۲، وتهذيب الكمال: ۳۴۴/۲۰، وتهذيب التهذيب:۲۸۳/۷، ۲۸۴).
(۲) كتاب الثقات لابن حبان: ۱۶۲/۵).
(۳) فتح الباری :۶۷۵/۹).
(۴) فتح الباری :۹/ ۶۷۷)

فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي أَنْكَرْتُ بَصَرِي وَأَنَا أُصَلِّي لِقَوْمِي، فَإِذَا كَانَتِ الأَمْطَارُ سَالَ الوَادِي الَّذِي بَيْنِي وَبَيْنَهُمْ، لَمْ أَسْتَطِعْ أَنْ آتِيَ مَسْجِدَهُمْ فَأُصَلِّيَ لَهُمْ، فَوَدِدْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَنَّكَ تَأْتِي فَتُصَلِّي فِي بَيْتِي، فَأَتَّخِذُهُ مُصَلًّى. فَقَالَ «سَأَفْعَلُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ». قَالَ عِتْبَانُ فَغَدَا رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- وَأَبُو بَكْرٍ حِينَ ارْتَفَعَ النَّهَارُ، فَاسْتَأْذَنَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- فَأَذِنْتُ لَهُ فَلَمْ يَجْلِسْ حَتَّى دَخَلَ البَيْتَ، ثُمَّ قَالَ لِي «أَيْنَ تُحِبُّ أَنْ أُصَلِّيَ مِنْ بَيْتِكَ». فَأَشَرْتُ إِلَى نَاحِيَةٍ مِنَ البَيْتِ فَقَامَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- فَكَبَّرَ، فَصَفَفْنَا، فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ سَلَّمَ وَحَبَسْنَاهُ عَلَى خَزِيرٍ صَنَعْنَاهُ، فَثَابَ فِي البَيْتِ رِجَالٌ مِنْ أَهْلِ الدَّارِ ذَوُو عَدَدٍ فَاجْتَمَعُوا، فَقَالَ قَائِلٌ مِنْهُمْ أَيْنَ مَالِكُ بْنُ الدُّخْشُنِ. فَقَالَ بَعْضُهُمْ ذَلِكَ مُنَافِقٌ لاَ يُحِبُّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ. قَالَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- «لاَ تَقُلْ، أَلاَ تَرَاهُ قَالَ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ. يُرِيدُ بِذَلِكَ وَجْهَ اللَّهِ». قَالَ اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. قَالَ قُلْنَا فَإِنَّا نَرَى وَجْهَهُ وَنَصِيحَتَهُ إِلَى المُنَافِقِينَ. فَقَالَ «فَإِنَّ اللَّهَ حَرَّمَ عَلَى النَّارِ مَنْ قَالَ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ. يَبْتَغِي بِذَلِكَ وَجْهَ اللَّهِ». قَالَ ابْنُ شِهَابٍ ثُمَّ سَأَلْتُ الحُصَيْنَ بْنَ مُحَمَّدٍ الأَنْصَارِيَّ أَحَدَ بَنِي سَالِمٍ وَكَانَ مِنْ سَرَاتِهِمْ عَنْ حَدِيثِ مَحْمُودٍ فَصَدَّقَهُ. [ر: ۴۱۴]

نضر بن شميل فرمائی چې خزيره د معدې نه او حريره د پيئو نه جوړيږي.

ابن فارس فرمائی چې خزيره اوړه او غوښه يو ځائې کولې شي او جوړولې شي. (١)

جوهری رحمه الله اوفرمائيل چې د خزيره جوړولو ترکيب دادې چې د غوښې وړې وړې ټکړې زيات مقدار کښې اچولې شي، اوښه پخولو نه پس په دې کښې اوړه اچولې شي. (٢)

(نخالة) داسې اوړو ته وائی چې چاڼ شوی نه وی، امام بخاری رحمه الله فرمائی چې غنمو اوړو ته نخالة وائی، ددې تائيد يو بل قول سره کيږی چې په هغې کښې (جشيشة) وارد شوی دی. او اهل لغتو ليکلی دی چې (جشيشة) دادې چې غنم ساده غټ واخستې شی، او بيا په دې کښې چربی وغيره واچولې شی، او دې نه حريره جوړه کړې شی. (٣) والله اعلم.

حديث پاك کښې کتاب الصلوة کښې تير شوی دی چې په دې واقعه کښې (وحسبناه على خزيرة صنعناه) مناسبت سره امام دلته ذکر کړې دې

## ١٥- باب الأَقِطِ.

وَقَالَ حُمَيْدٌ سَمِعْتُ أَنَسًا بَنَى النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم بِصَفِيَّةَ، فَأَلْقَى التَّمْرَ وَالأَقِطَ وَالسَّمْنَ.

---

(١) فتح الباری: ۹/ ۶۷۸ عمدة القاری: ۲۱/۴۵).

(٢) فتح الباری: ۹/ ۶۷۸ عمدة القاری: ۲۱/۴۵).

(٣) فتح الباری: ۹/ ۶۷۸ عمدة القاری: ۲۱/۴۵).

[٥٠٨٧] وَقَالَ عَمْرُو بْنُ أَبِي عَمْرٍو عَنْ أَنَسٍ صَنَعَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- حَيْسًا.
حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي بِشْرٍ عَنْ سَعِيدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رضى الله عنهما- قَالَ أَهْدَتْ خَالَتِي إِلَى النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- ضِبَابًا وَأَقِطًا وَلَبَنًا، فَوُضِعَ الضَّبُّ عَلَى مَائِدَتِهِ، فَلَوْ كَانَ حَرَامًا لَمْ يُوضَعْ وَشَرِبَ اللَّبَنَ، وَأَكَلَ الأَقِطَ [ر: ٢٤٣٦]

(اقط) د همزه فتحه او د قاف کسره سره، پنیرو ته وائی، (حیس) کهجورو او پنیرو اوغوښه چې ګډوډ شوی وی او دې نه یو قسم حلوه جوړه شوې دې، دې ته (حیس) وائی

## ١٦- بَابُ السِّلْقِ وَالشَّعِيرِ.

[٥٠٨٨] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ أَبِي حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ إِنْ كُنَّا لَنَفْرَحُ بِيَوْمِ الْجُمُعَةِ، كَانَتْ لَنَا عَجُوزٌ تَأْخُذُ أُصُولَ السِّلْقِ، فَتَجْعَلُهُ فِي قِدْرٍ لَهَا، فَتَجْعَلُ فِيهِ حَبَّاتٍ مِنْ شَعِيرٍ، إِذَا صَلَّيْنَا زُرْنَاهَا فَقَرَّبَتْهُ إِلَيْنَا، وَكُنَّا نَفْرَحُ بِيَوْمِ الْجُمُعَةِ مِنْ أَجْلِ ذَلِكَ، وَمَا كُنَّا نَتَغَدَّى وَلاَ نَقِيلُ إِلاَّ بَعْدَ الْجُمُعَةِ، وَاللَّهِ مَا فِيهِ شَحْمٌ وَلاَ وَدَكٌ. [ر: ٨٩٦]

(سلق) چقندر او شعیر جوار، اوربشو ته وائی، سهل بن سعد فرمائی چې د جمعې په ورځ به مونږ ډیر خوشحاله وو، ځکه چې زمونږ یو مشرې خور به یو چقندر واخستلو او هغه به ئې یو آنډئی کښې واچولو او په دې کښې به ئې د اوربشو څو دانې واچولې، مونږ چې به کله د مونځ نه فارغ شو نو دهغې زیارت دپاره به تلو، هغې به د چقندر او اوربشو هغه مرکب خوراك مونږته پیش کړو، په دې کښې به نه غوښه اونه به په کښې غوړی وو، (ودك) او (دسم) یو معنی ده تری او غوړی، ددې نه اندازه اولګوئی چې دحضرات صحابه کرامو ﷺ ژوند څومره ساده وو.

## ١٧- بَابُ النَّهْسِ وَانْتِشَالِ اللَّحْمِ.

[٥٠٨٩] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رضى الله عنهما- قَالَ تَعَرَّقَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- كَتِفًا، ثُمَّ قَامَ فَصَلَّى، وَلَمْ يَتَوَضَّأْ
وَعَنْ أَيُّوبَ وَعَاصِمٍ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ انْتَشَلَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- عَرْقًا مِنْ قِدْرٍ فَأَكَلَ، ثُمَّ صَلَّى، وَلَمْ يَتَوَضَّأْ [ر: ٢٠٤]

(نهش) دنون په فتحه او د هاء په سکون سره، غوښه په غاښونو سره چیچلو ته وائی. او د (انتشال اللحم) مطلب دادې چې د کټوئی نه غوښه راؤباسی او او دې خوړلې شی، اکثر دا لفظ په هغه وخت کښې استعمالیږی چې کله غوښه لا پوره پخ شوې نه وی، اوهانډئی نه

راؤويستلي شي داسې غوښې ته (تشيل) وائي. (۱)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چې امام بخاري رحمه الله په دې باب کښې ددې حديث ضعف طرفته اشاره کړې ده، چې په دې کښې د (قطع اللحم بالسكين) چاقو وغيره سره د پريکولو، ممانعت وارد شوې دې. (۲)
ليکن د حافظ ابن حجر رحمه الله په دې خبره کښې وړُن نشته دې، ددې حديث پاك تضعيف طرفته اشاره په راتلونکی باب (باب قطع اللحم بالسكين) سره اشاره کړې ده،او هلته هغه اشاره په پوهه کښې رازی، شيخ الحديث مولنا محمدُ زکريا رحمه الله فرمائي چې ددې باب نه د امام بخاري رحمه الله د امام ترمذی يو حديث پاك طرفته إشاره کول دی او غوښه په غاښونو سره د خوړلو استحباب بيانول دی، د ترمذی په روايت کښې دی چې (انهشوا اللحم فانه اهنا وامرا) (۳)
**قوله**: عَنْ مُحَمَّدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنه: دلته ړومبې حديث پاك محمد بن سيرين رحمه الله د ابن عباس رضي الله عنه نه نقل کړې دې. د محمد بن سيرين رحمه الله د ابن عباس رضي الله عنه نه سماع ثابت نه ده، بلکه د شعبه وينا ده چې (احاديث محمد بن سيرين عن عبدالله بن عباس انما سمعها عكرمة)يعنی په مينځ کښې د عکرمة واسطه ده، ددې وجې دا سند منقطع دی، دمحمد بن سيرين عن ابن عباس صرف د ايو حديث پاك په صحيح بخاري کښې روايت شوې دې.
امام بخاري رحمه الله په دې وجه په دويم روايت کښې د ايوب عن عكرمة عن ابن عباس رضي الله عنه طريق سره نقل کړې دې. چې متصل دې.(۴) د باب ړومبی روايت کښې د (تعرق) لفظ راغلې دې، چې دهغې معنی هډوکی نه غوښه په غاښونو سره اخوا کول او خوړلو ته وائی، په دويم روايت کښې د(عرق) لفظ راغلې دې، د عين په فتحه سره او د راء په سکون سره دا غوښې والا هډوکی ته وائی. (۵)

## ۱۸- بَاب تَعَرُّقِ الْعَضُدِ.

[۵۰۹۰] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى قَالَ حَدَّثَنِي عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ حَدَّثَنَا أَبُو حَازِمٍ الْمَدَنِيُّ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي قَتَادَةَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم - نَحْوَ مَكَّةَ.

[۵۰۹۱] حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ أَبِي حَازِمٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ

---

۱) فتح البارى :۹/ ۶۸۱عمدة القارى:۲۱/۴۷).
۲) فتح البارى :۶۸۱/۹).
۳) الابواب والتراجم:۸۸/۲).
۴) فتح البارى :۹/ ۶۸۱عمدة القارى:۲۱/۴۷).
۵) ارشاد السارى:۱۷۲/۱۲).

بْنِ أَبِي قَتَادَةَ السَّلَمِيِّ عَنْ أَبِيهِ أَنَّهُ قَالَ كُنْتُ يَوْمًا جَالِسًا مَعَ رِجَالٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فِي مَنْزِلٍ فِي طَرِيقِ مَكَّةَ، وَرَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- نَازِلٌ أَمَامَنَا، وَالْقَوْمُ مُحْرِمُونَ وَأَنَا غَيْرُ مُحْرِمٍ، فَأَبْصَرُوا حِمَارًا وَحْشِيًّا وَأَنَا مَشْغُولٌ أَخْصِفُ نَعْلِي، فَلَمْ يُؤْذِنُونِي لَهُ، وَأَحَبُّوا لَوْ أَنِّي أَبْصَرْتُهُ، فَالْتَفَتُّ فَأَبْصَرْتُهُ فَقُمْتُ إِلَى الْفَرَسِ فَأَسْرَجْتُهُ. ثُمَّ رَكِبْتُ وَنَسِيتُ السَّوْطَ وَالرُّمْحَ فَقُلْتُ لَهُمْ نَاوِلُونِي السَّوْطَ وَالرُّمْحَ. فَقَالُوا لاَ وَاللَّهِ لاَ نُعِينُكَ عَلَيْهِ بِشَيْءٍ. فَغَضِبْتُ فَنَزَلْتُ فَأَخَذْتُهُمَا، ثُمَّ رَكِبْتُ فَشَدَدْتُ عَلَى الْحِمَارِ فَعَقَرْتُهُ، ثُمَّ جِئْتُ بِهِ وَقَدْ مَاتَ فَوَقَعُوا فِيهِ يَأْكُلُونَهُ، ثُمَّ إِنَّهُمْ شَكُّوا فِي أَكْلِهِمْ إِيَّاهُ وَهُمْ حُرُمٌ، فَرُحْنَا وَخَبَأْتُ الْعَضُدَ مَعِي، فَأَدْرَكْنَا رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَسَأَلْنَاهُ عَنْ ذَلِكَ فَقَالَ «مَعَكُمْ مِنْهُ شَيْءٌ». فَنَاوَلْتُهُ الْعَضُدَ فَأَكَلَهَا حَتَّى تَعَرَّقَهَا، وَهْوَ مُحْرِمٌ. قَالَ ابْنُ جَعْفَرٍ وَحَدَّثَنِي زَيْدُ بْنُ أَسْلَمَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِي قَتَادَةَ مِثْلَهُ. [ر: ۱۷۲۵]

دې باب کښې د لاس غوښه په غاښونو د خوړلو ذکر امام بخاری رحمه الله کړې دې، په باب کښې ذکر شوې د قتاده والا روايت په کتاب الحج کښې تير شوې دې. (۱)

**قوله: قَالَ محمد ابْنُ جَعْفَرٍ وَحَدَّثَنِي زَيْدُ بْنُ أَسْلَمَ:** محمد بن جعفر د امام بخاری رحمه الله شيخ دې، ددوئ دوه سندونه دی، يو «عن ابي حازم» والا چې د هغې شان امام بخاری ذکر کړې دې. او دويم سند زيدبن اسلم نه دې، امام بخاری د «قال محمد بن جعفر» نه هم دا وئيلې دی، دادې تعليق اونه ګنړلې شي، بلکه ما قبل سند باندې ددې عطف دې او متصل دې. (۲)

## ۱۹-باب: قَطْعِ اللَّحْمِ بِالسِّكِّينِ.

[۵۰۹۲] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي جَعْفَرُ بْنُ عَمْرِو بْنِ أُمَيَّةَ أَنَّ أَبَاهُ عَمْرَو بْنَ أُمَيَّةَ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- يَحْتَزُّ مِنْ كَتِفِ شَاةٍ فِي يَدِهِ، فَدُعِيَ إِلَى الصَّلاَةِ فَأَلْقَاهَا وَالسِّكِّينَ الَّتِي يَحْتَزُّ بِهَا، ثُمَّ قَامَ فَصَلَّى، وَلَمْ يَتَوَضَّأْ [ر: ۲۰۵]

د امام بخاری رحمه الله مقصد دادې چې کومې طريقې سره په غاښونو سره شوکولو غوښې خوړل جائز دی، دانسان په چاړه سره د غوښې پريکول او خوړل هم جائز دی.

سنن ابوداؤد کښې د عائشه صديقه رضي الله عنها نه روايت دې چې «قال رسول الله ﷺ لاتقطعوا اللحم بالسكين فانه من صنيع الاعاجم وانهشوا فانه اهنأ وامرأ» (۳)

امام ابو داؤد رحمه الله او امام بيهقي رحمه الله فرمائی چې دا روايت قوی نه دې، (۴) امام نسائی هم

---

(۱) فتح البارى: ۶۸۳/۹).
(۲) فتح البارى: ۶۸۳/۹ عمدة القارى: ۴۹/۲۱).
(۳) سنن ابى داؤد كتاب الاطعمة باب فى اكل اللحم: ۳۴۹/۳، رقم الحديث: ۳۷۷۸).
(۴) سنن ابى داؤد كتاب الاطعمة باب فى اكل اللحم: ۳۴۹/۳، رقم الحديث: ۳۷۷۸).

دابو معشر په مناكيرو كښې شمار كړې دې. (۱)او علامه ابن الجوزى يو قدم وړاندې دې او دائى په موضوعاتو كښې ذكر كړې دې. (۲) حسن بن محمد صغانى لاهورى هم دا په موضوعتو كښې نقل كړې دې. (۳)
كه دا روايت تسليم كړې شى نو بياهم جمع بين الروايات ممكن دې چې غوښه اګر چې ښه پخه شوى وى او دا په په چاړې سره نه دى پريكول پكار، دابوداؤد روايت په دې باندې محمول دې ليكن كه چرته غوښه كچه وى يا سخته وى نو په دې صورت كښې چړې سره پريكولې شى.
**چمچې(كانټې) سره خوراک كول** : البته چړې او د پنجې والا چمچې (كانټې) سره خوراك جائز نه دې، ځكه چې دا د فساق او فجار اوانګريزانو طريقه ده. حديث كښې خو په چړې او كاشوغې چمچې سره د غوښې د پريكولو ذكر خو شته دې ليكن د خوراك نشته دې، البته چمچې سره خوراك كول جائز دى، ځينې ځيزونه داسې وى چې دهغې په لاس سره خوړل مشكل وى. او چمچې سره سهولت وى لكه پهينې (په غوړو كښې تليدلې روټئ چې دا په پئيو كښې اچوى او خوړلې شى) اوداپه لاسونو سره نشى خوړلې.
په چړې او د پنجې والا كاشوغې كښې ددې قسم هيڅ ضرورت نشته دې، دا كافرانو فاجرانو يو خالصه طريقه او تهذيب دې او تشبيه بالكفار ممنوع ده.

## ۲۰-بَاب مَا عَابَ النَّبِيُّ ﷺ طَعَامًا

[۵۰۹۳] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ أَبِي حَازِمٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ مَا عَابَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - طَعَامًا قَطُّ، إِنِ اشْتَهَاهُ أَكَلَهُ، وَإِنْ كَرِهَهُ تَرَكَهُ. [ر: ۳۳۷۰]

خوراك كښې عيب لټول د نبى كريم ﷺ عادت نه وو. نبى كريم ﷺ به كه روټئ خوښه وه نو هغه به ئې خوړله كه خوښه به ئې نه وه نو هغه به ئې پريخوده.
د امام بخارى رحمه الله مقصد هم دادې چې خوراك كښې عيب راويستل درست نه دى، لكه دا فرمائى چې بدمزه اوكچا ده، سوزيدلى ده او مزيداره نده.

## ۲۱-بَاب النَّفْخِ فِي الشَّعِيرِ. (۴)

[۵۰۹۴] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ حَدَّثَنَا أَبُو غَسَّانَ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو حَازِمٍ أَنَّهُ سَأَلَ سَهْلاً هَلْ رَأَيْتُمْ فِي زَمَانِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- النَّقِيَّ قَالَ لاَ. فَقُلْتُ فَهَلْ كُنْتُمْ

---

۱) اوګورئى تنزيه الشريعة المرفوعة الفصل الثانى، رقم الحديث :۲۴۸/۲/۵۷، واللالى المصنوعة:۱۹۰/۲).
۲) كتاب الموضوعات كتاب الاطعمة باب قطع اللحم باالسكين:۳۰۳/۲)
۳) كتاب الموضوعات للصغانى:۱۲).
۴) (۵۰۹۴) الحديث ايضا اخرجه البخارى فى كتاب الاطعمة باب كان النبى ﷺ واصحابه ياكلون رقم الحديث :۵۰۹۷).

تنخلون الشعيرقال لاولكن كنا ننفخه.[۵۰۹۷]

دې باب کښې د اوربشو د اوړو بيان دې چې دې لره پوکې ورکولې شی چې ددې پوستکی او بوس وغيره لرې شی. ابو حازم د سهل نه تپوس اوکړو چې آيا تاسو نبی کريم ﷺ په زمانه کښې ميده کتلی وه ؟ هغوئ اوونيل چې نه، بيا ما تپوس اوکړو چې آيا د اوربشو اوړه به مو چاڼ کول ؟ هغوئ اوفرمائيل چې نه، ليکن مونږ به ددې ته پوکې ورکولو.

(نقی) د صفا اوړو ميدې ته وائی. (تنخلون الشعير) تاسو به د اوربشو اوړ چاڼ کول. (تنخلت الدقيق ای اخرجت منه النخالة) د پوکې ورکولو نه مراد دادې چې ميده کړې شی او بيا دې ته پوکې ورکړې شی چې ددې نه بوس او پوستکی وغيره والوزی.

حديث باب کښې امام بخاری رحمه الله په ړومبی ځل ذکر کړې دې، صحاح سته کښې بل چا دا حديث پاک نه دې نقل کړې. (1)

## ۲۲- باب ما كان النبي ﷺ وأصحابه يأكلون.

[۵۰۹۵] حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ عَبَّاسٍ الْجُرَيْرِيِّ عَنْ أَبِي عُثْمَانَ النَّهْدِيِّ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَسَمَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - يَوْمًا بَيْنَ أَصْحَابِهِ تَمْرًا، فَأَعْطَى كُلَّ إِنْسَانٍ سَبْعَ تَمَرَاتٍ، فَأَعْطَانِي سَبْعَ تَمَرَاتٍ إِحْدَاهُنَّ حَشَفَةٌ، فَلَمْ يَكُنْ فِيهِنَّ تَمْرَةٌ أَعْجَبَ إِلَيَّ مِنْهَا، شَدَّتْ فِي مَضَاغِي. [۵۱۲۵، ۵۱۲۶]

[۵۰۹۶] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيرٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ إِسْمَاعِيلَ عَنْ قَيْسٍ عَنْ سَعْدٍ قَالَ رَأَيْتُنِي سَابِعَ سَبْعَةٍ مَعَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - مَا لَنَا طَعَامٌ إِلاَّ وَرَقُ الْحُبْلَةِ - أَوِ الْحَبَلَةِ - حَتَّى يَضَعَ أَحَدُنَا مَا تَضَعُ الشَّاةُ، ثُمَّ أَصْبَحَتْ بَنُو أَسَدٍ تُعَزِّرُنِي عَلَى الإِسْلاَمِ، خَسِرْتُ إِذًا وَضَلَّ سَعْيِي. [ر: ۳۵۲۲]

[۵۰۹۷] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ عَنْ أَبِي حَازِمٍ قَالَ سَأَلْتُ سَهْلَ بْنَ سَعْدٍ فَقُلْتُ هَلْ أَكَلَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - النَّقِيَّ فَقَالَ سَهْلٌ مَا رَأَى رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - النَّقِيَّ مِنْ حِينَ ابْتَعَثَهُ اللَّهُ حَتَّى قَبَضَهُ اللَّهُ. قَالَ فَقُلْتُ هَلْ كَانَتْ لَكُمْ فِي عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - مَنَاخِلُ قَالَ مَا رَأَى رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - مُنْخُلاً مِنْ حِينَ ابْتَعَثَهُ اللَّهُ حَتَّى قَبَضَهُ. قَالَ قُلْتُ كَيْفَ كُنْتُمْ تَأْكُلُونَ الشَّعِيرَ غَيْرَ مَنْخُولٍ قَالَ كُنَّا نَطْحَنُهُ وَنَنْفُخُهُ، فَيَطِيرُ مَا طَارَ وَمَا بَقِيَ ثَرَّيْنَاهُ فَأَكَلْنَاهُ. [ر: ۵۰۹۴]

[۵۰۹۸] حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ أَخْبَرَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ عَنْ سَعِيدٍ

(1) قال العينی والحديث من افراده: (عمدة القاری :۲۱/۵۰)

الْمَقْبُرِيِّ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضي الله عنه - أَنَّهُ مَرَّ بِقَوْمٍ بَيْنَ أَيْدِيهِمْ شَاةٌ مَصْلِيَّةٌ، فَدَعَوْهُ فَأَبَى أَنْ يَأْكُلَ قَالَ خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - مِنَ الدُّنْيَا وَلَمْ يَشْبَعْ مِنَ الْخُبْزِ الشَّعِيرِ.

[۵۰۹۹] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي الْأَسْوَدِ حَدَّثَنَا مُعَاذٌ حَدَّثَنِي أَبِي عَنْ يُونُسَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ مَا أَكَلَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - عَلَى خِوَانٍ، وَلَا فِي سُكُرُّجَةٍ، وَلَا خُبِزَ لَهُ مُرَقَّقٌ. قُلْتُ لِقَتَادَةَ عَلَى مَا يَأْكُلُونَ قَالَ عَلَى السُّفَرِ. [ر: ۵۰۷۱]

[۵۱۰۰] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنِ الْأَسْوَدِ عَنْ عَائِشَةَ - رضي الله عنها - قَالَتْ مَا شَبِعَ آلُ مُحَمَّدٍ - صلى الله عليه وسلم - مُنْذُ قَدِمَ الْمَدِينَةَ مِنْ طَعَامِ الْبُرِّ ثَلَاثَ لَيَالٍ تِبَاعًا، حَتَّى قُبِضَ. [۵۱۰۷، ۵۱۲۲، ۶۰۸۹، ۶۳۰۹]

نبی کریم ﷺ او حضرات صحابه کرام رضي الله عنهم بۀ څه څه خیزونه خوړل، په دې باب کښې دهغې نه دځو خیزونو ذکر دې.

رومبی روایت کښې ابوهریره رضي الله عنه فرمائی چې نبی کریم ﷺ یو ورځ صحابه کرامو رضي الله عنهم کښې کهجورې تقسیم کړې، هر یوته اووۀ اووۀ کهجورې ورکړې شوې، ماته هم اووۀ کهجورې ملاؤ شوې، په دې کښې یو حشفه یعنی خرابه کهجوره وه، لیکن ماته په دې کهجورو کښې ددې نه زیاته ښه کهجوره خوښه نه شوه، ځکه باقی نورې کهجورې بۀ په خوله کښې زیاتې نه پاتې کیدې.[۱] اوددې په چوپلو ترډیره پورې ماددې نه خوند واخستلو.

**قوله: (شدت):** د باب نصر نه د واحد مؤنث صیغه ده په معنی د سختیدو.

**قوله: (مضاغ):** دمیم په فتحه او کسره سره اولوستلې شو، ددې اطلاق په هغه طعام باندې کیږی چې چوپلې کیږی، او مطلقا د چوپلو دپاره استعمالیږی. وائی چې (لقمة لينة المضاغ وشديدة المضاغ).[۲]

علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی چې (يحتمل ان يكون المراد ما يمضغ به و هو الاسنان و ان يكون المراد المضغ نفسه)[۳] یعنی دلته ددې حدیث پاك نه غاښونه هم مراد اخستې شی، چې ددې په ذریعه خوراك چوپلې کیږی او صرف چوپل هم مراد کیدې شی. مطلب دادې چې هغه ردی کهجورې ځما په چوپلو کښې یا ځما په غاښونو کښې سخته وه.

دباب دویم روایت په ابواب المناقب کښې تیر شوې دې.[۴]

---

[۱] (۵۰۹۵) الحديث اخرجه البخاري ايضا في باب الرطب باالقثاء رقم الحديث :۵۱۲۵، ۵۱۲۶، واخرجه الترمذي في الزهد واخرجه النسائي في ابواب الاطعمة باب قسم الماكول اذا قل رقم الحديث :۶۷۳۱، ۱۲۸/۴، واخرجه ابن ماجه في الزهد باب معيشة اصحاب النبي ﷺ رقم:۴۱۵۷).

[۲] عمدة القاري:۵۱/۲۱).

[۳] ارشاد الساري:۱۲/۱۷۶)

[۴] فتح الباري :۹/ ۶۸۶).

سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه فرمائی چې څه په نبی کریم ﷺ باندې ایمان راؤړونکو کښې اووم سړې اوم (یعنی څه قدیم الاسلام یم) زمونږ خوراك به د ونو دپاڼړو نه سوا بل څه نه وو. تر دې پورې چې د چیلو په شان پچې به مونږ کولې، اوس بنواسد داسلام باره کښې زما سرزنش کوی، څه خو بیا خائب وخاسر شوم او څما ټوله سعی ضائع شوه، (که دهغوئ وینا مطابق ماته مونځ کول هم نه راځی حالانکه ما د اسلام په شروع کښې هر څه زده کړی وو).

کومو شپږو کسانو چې د سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه نه وړاندې اسلام قبول کړې وو هغوئ کښې ① ابوبکر صدیق رضی الله عنه ② عثمان ذی النورین رضی الله عنه ③ علی رضی الله عنه ④ زید بن حارثه ⑤ زبیر رضی الله عنه او ⑥ عبدالرحمان بن عوف رضی الله عنه وو. (١)

اصل کښې بنو اسد عمر فاروق ته شکایت کړی وو چې سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه ته مونځ نه ورځی، نو په دې هغوئ رضی الله عنه دا ارشاد اوفرمائیلو. (٢)

حافظ ابن حجر رحمه الله (حبلة) (د حاء او باء په ضمه سره هم په دې معنی کښې نقل کړې ده)(٣)

او (حبلة) د باء او حاء دواړو په فتحه سره، انګورو ته وائی. بهر حال مطلب دا وو چې په هغه وخت کښې د تنګئ او عسرت وخت وو. د خوراك دپاره د عضا د ونې او دانګورو دپاڼړو نه سوا بل څه نه وو. او دا به ئې خوراك وو او په دې باندې ئې ګزاره کوله.

**قوله: تعزرنی ای تودبنی ثرینا ه:** بتشدید الراء من ثریت السویق: اذا بللته بالماء:(٤) یعنی د اوړو نه بوس الوزولو نه پس باقی به مو په اوبو کښې خوشته کړه او خوړلو به مو. (منخل) د میم په ضمه، د نون په سکون او د خاء په ضمه سره، چنړولو ته وائی، ددې جمع (مناخل) رازی.

**قوله: شَاةٌ مَصْلِيَّةٌ:** دباب څلورم حدیث کښې دا د مصلیة لفظ راغلې دې، (مصلیة) دمیم په فتحه او د صاد په سکون، لام په کسره او دیاء په تشدید سره، د (مشویة) په معنی کښې رازی، د روته شوې چیلئ. (٥)

**قوله: فَدَعَوْهُ فَأَبَى:** نبی کریم ﷺ ته خلقو د چیلئ د روټې شوې غوښې د عوت ورکړو، نبی کریم ﷺ دعوت قبول نه کړو، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې (لیس هذا من ترك اجابة الدعوة لانه فی الولیمة لانی کل الطعام) (٦)

---

١) ارشاد الساری:١٢/١٧٦).

٢) و فی النهایة :٢١/٣٣٤، الحبلة بالضم وسکون الباء ثمر السمر یشبه اللوبیا وقیل هو ثمر العضاه والحبلة بفتح والیاء و ربما سکنت الاصل اوالقضب من شجر الاعناب).

٣) فتح الباری :٩/٦٨٧).

٤) عمدة القاری:٢١/٥٢).

٥) ارشاد الساری:١٢/ ١٧٨).

٦) ارشاد الساری:١٢/١٧٨).

مطلب دادي چې په عامو حالاتو کښې ددعوت قبلولو نه انکار کولې شی، البته د ولیمې دعوت قبلول دمسلم دحق په زمره کښې رازی، او دا قبلول پکار دی، مذکوره دعوت ولیمه نه وه.

د باب آخری حدیث پاك امام بخاری رحمه الله دلت په رومبی ځل باندې ذکر کړو.[1] چې نبی کریم ﷺ وفات پورې دغنمو روټۍ دریو ورځو پورې مسلسل نه ده خوړلې.

## ۲۳- باب التَّلْبِينَةِ

[۵۱۰۱] [2] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- أَنَّهَا كَانَتْ إِذَا مَاتَ الْمَيِّتُ مِنْ أَهْلِهَا فَاجْتَمَعَ لِذَلِكَ النِّسَاءُ، ثُمَّ تَفَرَّقْنَ، إِلاَّ أَهْلَهَا وَخَاصَّتَهَا، أَمَرَتْ بِبُرْمَةٍ مِنْ تَلْبِينَةٍ فَطُبِخَتْ، ثُمَّ صُنِعَ ثَرِيدٌ فَصُبَّتِ التَّلْبِينَةُ عَلَيْهَا ثُمَّ قَالَتْ كُلْنَ مِنْهَا فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ «التَّلْبِينَةُ مُجِمَّةٌ لِفُؤَادِ الْمَرِيضِ، تَذْهَبُ بِبَعْضِ الْحُزْنِ». [۵۳۶۵، ۵۳۶۶]

(تلبینة) يو خاص قسم حلوه یا فالوده ده چې بغیرمیدې یاچانړ شوی اوړو نه جوړیږی. ځینې وخت په دې کښې چینی یا شهد هم ګډولې شی، په رنګ کښې د پیئو په شان وی او ددې وجې دې ته تلبینة وائی.[3]

عائشه صدیقه رضي الله عنها فرمائی چې کله به ددوئ څوك رشته دار مړ شو نو ښځې به جمع شوې، بیا بهٔ ټولې خپلو خپلو کورونو ته تلې، مګر خاص خاص او نزدې ښځې به پاتې شوې او د تلبینه جوړولو حکم به ئې کولو او بیا به ثرید جوړ کړې او په دې باندې په تلبینه واچولې شوه، بیا به ئې فرمائیل چې دا خورئی ځکه چې ما د نبی کریم ﷺ نه آوریدلی دی چې تلبینه د مریض د زړه د تسکین دې او غم لرې کوی.

**قوله**: (مجمة المریض): مریض ته راحت ورکولو والا. (مجمة) د میم او جیم او په فتحه

---

[1] (۵۱۰۰) الحدیث اخرجه البخاری ایضا فی مَا كَانَ السَّلَفُ يَدَّخِرُونَ فِي بُيُوتِهِمْ وَأَسْفَارِهِمْ مِنَ الطَّعَامِ وَاللَّحْمِ وَغَيْرِهِ رقم الحديث : ۵۱۰۷،وفی الباب القدید: رقم الحدیث:۵۱۲۳، وفی کتاب الرقاق، باب كَيْفَ كَانَ عَيْشُ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - وَأَصْحَابِهِ، وَتَخَلِّيهِمْ مِنَ الدُّنْيَا رقم الحدیث :۶۰۸۹، و فی الدعوات باب التوبة رقم الحدیث :۶۳۰۹، واخرجه مسلم فی کتاب الزهد والرقاق :رقم الحدیث :۲۹۷۰، واخرجه النسائی فی کتاب الضحایا: ۲۰۸/۲، واخرجه ابن ماجه فی کتاب الاطعمة باب الخبز والبر:۲۳۹).

[2] (الحدیث اخرجه البخاری ایضا فی الاطعمة باب التلبینة للمریض، رقم الحدیث :۵۳۲۵، واخرجه مسلم فی کتاب السلام باب التلبینة مجمة لفواد المریض رقم الحدیث:۲۲۱۶، واخرجه الترمذی فی کتاب الطب باب ماجاء ما یطعم المریض المریض رقم الحدیث :۲۰۳۹، ۳۸۳/٤، واخرجه النسائی فی الولیمة باب التلینة: ۱۶۱/٤ رقم الحدیث :۶۶۹۳)

[3] و فی النهایة:۲۲۹/٤، التلبینة والتلبین حساء یعمل من دقیق او نخالة و ربما جعل فیها عسل سمیت بها تشبیها باللبن لبیاضها ورقتها وهی تسمیة بالمرة من التلبین مصدر لبن القوم اذا سقاهم اللبن).

سره او (مكان الاستراحة) د ميم ضمه او د جيم كسره سره صيغه د اسم فاعل هم كيدې شى، راحت رسولو والا.[1]

## ٢٤- باب الثَّرِيدِ.

[٥١٠٢]. حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ الْجَمَلِيِّ عَنْ مُرَّةَ الْهَمْدَانِيِّ عَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ كَمَلَ مِنَ الرِّجَالِ كَثِيرٌ، وَلَمْ يَكْمُلْ مِنَ النِّسَاءِ إِلاَّ مَرْيَمُ بِنْتُ عِمْرَانَ وَآسِيَةُ امْرَأَةُ فِرْعَوْنَ، وَفَضْلُ عَائِشَةَ عَلَى النِّسَاءِ كَفَضْلِ الثَّرِيدِ عَلَى سَائِرِ الطَّعَامِ». [ر: ٣٢٣٠]

[٥١٠٣]. حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ أَبِي طُوَالَةَ عَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ فَضْلُ عَائِشَةَ عَلَى النِّسَاءِ كَفَضْلِ الثَّرِيدِ عَلَى سَائِرِ الطَّعَامِ». [ر: ٣٥٥٩]

[٥١٠٤]. حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُنِيرٍ سَمِعَ أَبَا حَاتِمٍ الْأَشْهَلَ بْنَ حَاتِمٍ حَدَّثَنَا ابْنُ عَوْنٍ عَنْ ثُمَامَةَ بْنِ أَنَسٍ عَنْ أَنَسٍ - رضى الله عنه - قَالَ دَخَلْتُ مَعَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - عَلَى غُلاَمٍ لَهُ خَيَّاطٍ، فَقَدَّمَ إِلَيْهِ قَصْعَةً فِيهَا ثَرِيدٌ - قَالَ - وَأَقْبَلَ عَلَى عَمَلِهِ - قَالَ - فَجَعَلَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - يَتَتَبَّعُ الدُّبَّاءَ - قَالَ - فَجَعَلْتُ أَتَتَبَّعُهُ فَأَضَعُهُ بَيْنَ يَدَيْهِ - قَالَ - فَمَا زِلْتُ بَعْدُ أُحِبُّ الدُّبَّاءَ. [ر: ١٩٨٦]

ثريد په خوروا كښې روټئ ماتولو ته وائى، عربو كښې به دا ډيره خوښولې شوه، امام بخارى رحمه الله دا باب قائم كړو او د ثريد فضيلت طرفته ئې اشاره اوكړه. امام بخارى رحمه الله چې په باب كښې كوم روايت ذكركړې دې، په هغې كښې په هر يو كښې دننه د ثريد فضيلت طرفته اشاره موجوده ده.

## ٢٥- باب شَاةٍ مَسْمُوطَةٍ وَالْكَتِفِ وَالْجَنْبِ.

[٥١٠٥]. حَدَّثَنَا هُدْبَةُ بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا هَمَّامُ بْنُ يَحْيَى عَنْ قَتَادَةَ قَالَ كُنَّا نَأْتِي أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ - رضى الله عنه - وَخَبَّازُهُ قَائِمٌ قَالَ كُلُوا فَمَا أَعْلَمُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - رَأَى رَغِيفًا مُرَقَّقًا حَتَّى لَحِقَ بِاللَّهِ، وَلاَ رَأَى شَاةً سَمِيطًا بِعَيْنِهِ قَطُّ.

[٥١٠٦]. حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ جَعْفَرِ بْنِ عَمْرِو بْنِ أُمَيَّةَ الضَّمْرِيِّ عَنْ أَبِيهِ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَحْتَزُّ مِنْ كَتِفِ شَاةٍ، فَأَكَلَ مِنْهَا، فَدُعِيَ إِلَى الصَّلاَةِ، فَقَامَ فَطَرَحَ السِّكِّينَ فَصَلَّى، وَلَمْ يَتَوَضَّأْ. [ر: ٢٠٥]

[1]) زاد المعاد: ٤/ ١٢٠، فتح البارى: ٩/ ٦٨٧).

**قوله**: شَاةٍ مَسْمُوطَةٍ: ددې تعريف مخکښې تير شوې دې. (الْكَتِفِ) دلاس غوښهٔ، دا د نبی کريم ﷺ ډيره خوښه وه او (جَنْب) د اړخ د پښتئ غوښې ته وائی،
د باب ړومبی حديث مخکښې تير شوې دې.
دويم حديث پاك د عمر بن ضمری نه مروی دې، فرمائی چې ما نبی کريم ﷺ اوليدو چې چاړه ئې د (کتف شاة) غوښه پريکوله، او خوړله ئې چې په دې کښې نبی کريم ﷺ دمونځ دپاره اوبللې شو نبی کريم ﷺ چاړه غوزاره کړه، اودريدل او مونځ ئې ادا کړو اودس ئې او نه کړو.
ددې نه معلومه شوه چې (مامست النار) ناقض د اودس نه دې.
امام بخاری رحمه الله هم پدې سند اومتن سره په (کتاب الرقاق) کښې د باب د ړومبی حديث تخريج کړې دې. [1]

## ٢٧- بَابِ مَا كَانَ السَّلَفُ يَدَّخِرُونَ فِي بُيُوتِهِمْ وَأَسْفَارِهِمْ مِنَ الطَّعَامِ وَاللَّحْمِ وَغَيْرِهِ. (٢٧)

وَقَالَتْ عَائِشَةُ وَأَسْمَاءُ صَنَعْنَا لِلنَّبِيِّ ﷺ وَأَبِي بَكْرٍ سُفْرَةً

[٥١٠٧] حَدَّثَنَا خَلَّادُ بْنُ يَحْيَى حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَابِسٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ قُلْتُ لِعَائِشَةَ أَنَهَى النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - أَنْ تُؤْكَلَ لُحُومُ الأَضَاحِي فَوْقَ ثَلاَثٍ قَالَتْ مَا فَعَلَهُ إِلاَّ فِي عَامٍ جَاعَ النَّاسُ فِيهِ، فَأَرَادَ أَنْ يُطْعِمَ الْغَنِيُّ الْفَقِيرَ، وَإِنْ كُنَّا لَنَرْفَعُ الْكُرَاعَ فَنَأْكُلُهُ بَعْدَ خَمْسَ عَشْرَةَ. قِيلَ مَا اضْطَرَّكُمْ إِلَيْهِ فَضَحِكَتْ قَالَتْ مَا شَبِعَ آلُ مُحَمَّدٍ - صلى الله عليه وسلم - مِنْ خُبْزِ بُرٍّ مَأْدُومٍ ثَلاَثَةَ أَيَّامٍ حَتَّى لَحِقَ بِاللَّهِ. وَقَالَ ابْنُ كَثِيرٍ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَابِسٍ بِهَذَا. [ر: ٥١٠٠]

[٥١٠٨] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ عَطَاءٍ عَنْ جَابِرٍ قَالَ كُنَّا نَتَزَوَّدُ لُحُومَ الْهَدْيِ عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - إِلَى الْمَدِينَةِ. تَابَعَهُ مُحَمَّدٌ عَنِ ابْنِ عُيَيْنَةَ. وَقَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ قُلْتُ لِعَطَاءٍ أَقَالَ حَتَّى جِئْنَا الْمَدِينَةَ قَالَ لاَ. [ر: ١٦٣٢]

پدې باب کښې امام بخاری رحمه الله اوفرمائيل چې د نبی کريم ﷺ او حضرات صحابه کرامو رضی الله عنهم په زمانه کښې ذخيره جوړولې شوه او يو څيز به کيخودلې شو.
روايات باب کښې د غوښه ذخيره کولو ذکر دې. په ترجمة الباب کښې د طعام او لحم دواړو ذکر دې. امام بخاری رحمه الله طعام لره لحم سره لاحق کړې دې او روايات سره ددې اثبات کړې دې. ځکه چې لحم هم په هر حال کښې مطعومات کښې شامل دی.

[1]) اوګورئ: صحيح البخاری کتاب الرقاق باب کيف کان عيش النبی ﷺ و اصحابه رقم الحديث: ٦٤٥٧)

امام بخاری رحمه الله د تولو نه وړاندې عائشه صدیقه رضی الله عنها او اسماء رضی الله عنها روایت دلته تعلیقا ذکر کړې دې، په «باب الهجرة الى المدينة» کښې دا روایت تفصیل سره موصولا ذکر شوې دې.[1]

هغوئ دواړه فرمائی چې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم اود ابوبکر صدیق رضی الله عنه دپاره «سفره» توشه دان جوړ کړې وو.

د باب رومبې روایت د عابس بن ربیعه نه مروی دې، هغه فرمائی چې ما د عائشه صدیقه رضی الله عنها نه تپوس اوکړو چې آیا نبی کریم صلی الله علیه وسلم د قربانئ غوښه د دریو ورځو نه زیاته ایښودلو نه منع فرمائیلې ده، هغوئ اوفرمائیل چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم صرف په هغه کال منع اوفرمائیله چې په کوم کال خلق په اولږه کښې اخته وو، نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوغوښتل چې مالدار دې فقیرانو باندې اوخوروی. مونږ به دې ښکران ایښودل. او دې نه پس به مو پنځلس ورځې پس خوړل، چا تپوس اوکړو چې تاسو ته ددې څه ضرورت ولې راپیښ شوې وو. هغه په خندا شو او وې فرمائیل چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم هیڅ کله هم سالن سره تر دریو ورځو پورې د غنمو روټئ نه وه خوړلې، تر دې پورې چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفات شوت.

دا روایت دې تفصیل سره په رومبی ځل امام بخاری رحمه الله دلته ذکر کړې دې.[2]

**قوله**: وَقَالَ ابْنُ كَثِيرٍ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَابِسٍ بِهٰذَا: دا تعلیق دې، په دې کښې سفیان ثوری رحمه الله د تحدیث تصریح کړې ده، او «حدثنا عبد الرحمان» ئې وئیلی دی چې کله د خلاد بن یحیی روایت باب کښې سفیان بن عینیه «عن عبد الرحمٰن» اوئیل. طبرانی دا موصولا نقل کړې دې.[3]

د باب دویم روایت د جابر رضی الله عنه نه مروی دې، هغه فرمائی چې مونږ د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې د قربانئ غوښه مدینې ته راوړې وه.

**قوله**: تَابَعَهُ مُحَمَّدٌ عَنِ ابْنِ عُيَيْنَةَ: یعنی د امام بخاری رحمه الله د شیخ عبدالله بن محمد متابعت محمد بن سلام کړې دې، هغوئ هم د ا روایت دسفیان بن عینیه نه نقل کړې دې، متابعت لره محمد بن یحیی بن ابی عمر پخپل سند کښې موصولا نقل کړېدې.[4]

**قوله**: وَقَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ قُلْتُ لِعَطَاءٍ أَقَالَ حَتّٰى جِئْنَا الْمَدِينَةَ قَالَ لَا: ابن جریج چې ددۀ نوم عبدالملک بن عبدالعزیز دې د عطاء نه تپوس اوکړو چې جابر رضی الله عنه دخپل قول

---

[1] فتح الباری :۹/ ۲۹۰ فتح الباری :۹/ ۱۸۲).

[2] (۵۱۰۷) اخرجه البخاری إيضا فی الايمان والنذور، اخرجه مسلم فی کتاب الاضاحی الخ: ۱۵۶۲/۳، رقم الحدیث :۱۹۷۲، واخرجه الترمذی فی الاضاحی باب ماجاء فی الرخصة فی اکلها رقم الحدیث :۱۵۱۱، ۹۵/٤، واخرجه النسائی فی الاضاحی : باب النهی عن الاکل من لحوم الاضاحی :۲۰۶/۲، واخرجه ابن ماجه فی کتاب الاطعمة:۱۰۵۵/۲، باب ادخار لحوم الاضاحی رقم الحدیث :۳۱۶۰).

[3] فتح الباری :۹/ ۶۹۰ عمدة القاری:۲۱/ ۱۸۳).

[4] فتح الباری :۹/ ۶۹۰).

(كنا تتزود لحوم الهدى) نه پس (حتى جئنا الى المدينة) وئيلي وو. عطاء اووئيل نه مقصد دادي چي جابر رضي الله عنه (حتى جئنا المدينة) الفاظ نه دى وئيلى، بلكه (فتزود لحوم الهدى الى المدينة) الفاظ ئې وئيلى دى، مفهوم ددې هم هغه دې.

هم دې سند سره امام مسلم رحمه الله هم دا روايت نقل کړې دې او په هغې کښې د (لا) په ځائې د (نعم) الفاظ دى چې جابر رضي الله عنه دا الفاظ وئيلي وو. دواړو روايتونو کښې تعارض دې اوظاهر دى چې د امام بخارى رحمه الله او امام مسلم روايتونو کښې دې داسې تعارض راشى نو ترجيح به د بخارى روايت ته ورکولې شى، ددې نه علاوه د مسند احمد او نسائى په روايتونو کښې هم د (لا) الفاظ دى. (فتح البارى: ۹/۶۹۰)

## ۲۸- بَابُ الْحَيْسِ

[۵۱۰۹] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ أَبِي عَمْرٍو مَوْلَى الْمُطَّلِبِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ حَنْطَبٍ أَنَّهُ سَمِعَ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- لأَبِي طَلْحَةَ « الْتَمِسْ غُلاَمًا مِنْ غِلْمَانِكُمْ يَخْدُمُنِي ». فَخَرَجَ بِي أَبُو طَلْحَةَ، يُرْدِفُنِي وَرَاءَهُ، فَكُنْتُ أَخْدُمُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- كُلَّمَا نَزَلَ، فَكُنْتُ أَسْمَعُهُ يُكْثِرُ أَنْ يَقُولَ « اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْهَمِّ وَالْحَزَنِ، وَالْعَجْزِ وَالْكَسَلِ، وَالْبُخْلِ وَالْجُبْنِ وَضَلَعِ الدَّيْنِ، وَغَلَبَةِ الرِّجَالِ ». فَلَمْ أَزَلْ أَخْدُمُهُ حَتَّى أَقْبَلْنَا مِنْ خَيْبَرَ، وَأَقْبَلَ بِصَفِيَّةَ بِنْتِ حُيَيٍّ قَدْ حَازَهَا، فَكُنْتُ أَرَاهُ يُحَوِّي وَرَاءَهُ بِعَبَاءَةٍ أَوْ بِكِسَاءٍ، ثُمَّ يُرْدِفُهَا وَرَاءَهُ، حَتَّى إِذَا كُنَّا بِالصَّهْبَاءِ صَنَعَ حَيْسًا فِي نِطَعٍ، ثُمَّ أَرْسَلَنِي فَدَعَوْتُ رِجَالاً فَأَكَلُوا، وَكَانَ ذَلِكَ بِنَاءَهُ بِهَا، ثُمَّ أَقْبَلَ حَتَّى إِذَا بَدَا لَهُ أُحُدٌ قَالَ « هَذَا جَبَلٌ يُحِبُّنَا وَنُحِبُّهُ ». فَلَمَّا أَشْرَفَ عَلَى الْمَدِينَةِ قَالَ « اللَّهُمَّ إِنِّي أُحَرِّمُ مَا بَيْنَ جَبَلَيْهَا مِثْلَ مَا حَرَّمَ بِهِ إِبْرَاهِيمُ مَكَّةَ، اللَّهُمَّ بَارِكْ لَهُمْ فِي مُدِّهِمْ وَصَاعِهِمْ ». [ر: ۲۷۳۲]

د حيس متعلق تاسو ته معلوم دى چې دا پنير، كهجورې او غوړى يو ځائې کړې شى او يو خاص حلوه جوړيږى، مشهور شعر تاسو وئيلې دې چې:

و اذا تكون كريهة ادعى لها    واذا يحاس الحيس يدعى جندب

د باب لاندې چې کوم روايت ذکر شوې دې هغه په کتاب المغازى کښې تير شوې دې، او هلته په دې باندې بحث شوې دې.[1]

## ۲۸- بَابُ الأَكْلِ فِي إِنَاءٍ مُفَضَّضٍ.

[۵۱۱۰] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سَيْفُ بْنُ أَبِي سُلَيْمَانَ قَالَ سَمِعْتُ مُجَاهِدًا يَقُولُ حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي لَيْلَى أَنَّهُمْ كَانُوا عِنْدَ حُذَيْفَةَ فَاسْتَسْقَى فَسَقَاهُ مَجُوسِيٌّ. فَلَمَّا وَضَعَ

[1] اوګورئى : كشف البارى، كتاب المغازى: ۲۵۲، ۲۵۳.

الْقَدَحَ فِي يَدِهِ رَمَاهُ بِهِ وَقَالَ لَوْلَا أَنِّي نَهَيْتُهُ غَيْرَ مَرَّةٍ وَلَا مَرَّتَيْنِ. كَأَنَّهُ يَقُولُ لَمْ أَفْعَلْ هٰذَا، وَلَكِنِّي سَمِعْتُ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ «لَا تَلْبَسُوا الْحَرِيرَ وَلَا الدِّيبَاجَ وَلَا تَشْرَبُوا فِي آنِيَةِ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ، وَلَا تَأْكُلُوا فِي صِحَافِهَا، فَإِنَّهَا لَهُمْ فِي الدُّنْيَا وَلَنَا فِي الآخِرَةِ».
[۵۴۹۹، ۵۴۹۳، ۵۳۱۰، ۵۳۰۹]

داحديث پاك په رومبى ځل امام بخارى رحمه الله ذكر فرمائيلې دې، عبدالرحمان بن ابى ليلى فرمائى چې مونږ خلق حذيفه رضي الله عنه سره ناست وو. هغوئ اوبه اوغوښتلې يومجوسى ورته اوبه راوړې. كله چې پياله ئې ددوئ په لاس كښې كيخوده نو هغوئ دا غوزاره كړه او وې فرمائيل چې كه مادې يو يا دوه ځل منع كړې نو داسې به مې نه كولې. يعنى غصه كښې به مو پياله نه غوزاروله. ما د نبى كريم ﷺ نه آوريدلى دى چې ريښم او ديباج مه اغوندئى اونه دسرو او سپينو لوښو كښې اوبه څكئ اونه ددې په ركيبو كښې خوراك كوئى. ځكه چې په دنيا كښې دا دكافرو سامان دې. او زمونږ دپاره به په آخرت كښې وى.

**قوله:** (اناء مفضض): هغه لوښى ته وائى چې په هغې باندې د چاندئى اوبه خيژولې شوې وى دسرو په اوبه باندې ملمع شوى لوښى ته (مذهب) وائى.

**د حديث پاک د ترجمة الباب سره مناسبت:** دلته رومبې اشكال دا كيږى چې امام بخارى رحمه الله د باب تقديم تاخير اكل متعلق قائم كړې دې، او حديث پاك ئې كوم ذكر كړې دې هغه د شراب متعلق دې، حافظ ابن حجر رحمه الله ددې په جواب كښې ليكى چې: (وحديث حذيفة الذى ساقه فى الباب النهى عن الشرب فى انية الذهب والفضة ويؤخذ منه منع الاكل بطريق الالحاق) (1)

يعنى اګر چې حديث د شرب متعلق دې ليكن شرب سره اكل هم لاحق كوى او د اكل ممانعت هم ددې نه اخذ كولې شى. ځكه چې كوم علت د شرب دممانعت دې، هم هغه دا كل دممانعت هم دې.

دويم اشكال دادې چې ترجمة الاب كښې د (انا مفضض) ذكر كړې دې. حالانكه حديث پاك كښې (انية الذهب والفضة) ذكر دې. د چاندئى اوبه وركړې شوې لوښى او د چاندئى لوښى كښې فرق دې.

علامه كرمانى رحمه الله ددې جواب وركړې دې چې د (مفضض) لفظ اګر چې دهغه څيز دپاره استعماليږى چې د چاندئى ملمع شوې وى. بيا هم اګر كه يو لوښى پوره پوره د چاندئى جوړ شوې دې. نو په دې باندې هم د (مفضض) اطلاق كيدې شى، داشان په ترجمة الباب كښې مطابقت موجود دې. (2)

---

(1) فتح البارى: ۶۹۲/۹)
(2) شرح الكرمانى: ۴۹/۲۰).

دچاندئی او سرو لوښو کښې اکل شرب دائمه اربعه په نیز حرام او ناجائز. دی. (1)

البته «انا مفضض» او «سرېح مفضض» باره کښې اختلاف دې. د امام ابو حنیفه رحمه الله مذهب امام قدوری رحمه الله دا نقل کړې دې چې داسې لوښې او داسې زین استعمالول جائز دی، په دې شرط چې چرته د چاندئی کار شوې وی. دهغه ځائې نه دې اجتناب اوکړېشی، او نه ددې خې په هغه خوله اولګولې شی، اونه دې په هغې باندې کینی. (2)

صاحب هدایه فرمائی چې خوله دې د چاندئی نه بیله اوساتلې شی. او زین کښې ددې د کیناستو په ځائې چاندئی نه بیل پکار دې. (3)

دامام ابو یوسف رحمه الله په نیز «اناء مفضض» استعمالول مکره دی. د امام محمد رحمه الله باره کښې اختلاف نقل شوې دې، د ځینو په نیز ددوئ رائې امام ابو یوسف رحمه الله سره ده او د ځینو په نیز امام ابوحنیفه رحمه الله سره دې. (4) یعنی که د چاندئی ځائې نه پرهیز اوکړې شی نو په ا ستعمالول کښې هیڅ باك نشته دې.

## ۳۰- بَاب ذِكْرِ الطَّعَامِ.

[۵۱۱۱]. حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ عَنْ أَبِي مُوسَى الأَشْعَرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «مَثَلُ الْمُؤْمِنِ الَّذِي يَقْرَأُ الْقُرْآنَ كَمَثَلِ الأُتْرُجَّةِ، رِيحُهَا طَيِّبٌ وَطَعْمُهَا طَيِّبٌ، وَمَثَلُ الْمُؤْمِنِ الَّذِي لاَ يَقْرَأُ الْقُرْآنَ كَمَثَلِ التَّمْرَةِ لاَ رِيحَ لَهَا وَطَعْمُهَا حُلْوٌ، وَمَثَلُ الْمُنَافِقِ الَّذِي يَقْرَأُ الْقُرْآنَ مَثَلُ الرَّيْحَانَةِ، رِيحُهَا طَيِّبٌ وَطَعْمُهَا مُرٌّ، وَمَثَلُ الْمُنَافِقِ الَّذِي لاَ يَقْرَأُ الْقُرْآنَ كَمَثَلِ الْحَنْظَلَةِ، لَيْسَ لَهَا رِيحٌ وَطَعْمُهَا مُرٌّ». [ر: ۴۷۳۲]

[۵۱۱۲]. حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا خَالِدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «فَضْلُ عَائِشَةَ عَلَى النِّسَاءِ كَفَضْلِ الثَّرِيدِ عَلَى سَائِرِ الطَّعَامِ». [ر: ۳۵۵۹]

[۵۱۱۳] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ سُمَيٍّ عَنْ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «السَّفَرُ قِطْعَةٌ مِنَ الْعَذَابِ، يَمْنَعُ أَحَدَكُمْ نَوْمَهُ وَطَعَامَهُ، فَإِذَا قَضَى نَهْمَتَهُ مِنْ وَجْهِهِ فَلْيُعَجِّلْ إِلَى أَهْلِهِ».

ددې ترجمة الباب نه د امام بخاری رحمه الله مقصد څه دې ؟

شارح بخاری ابن بطال فرمائی چې د امام بخاری رحمه الله مقصد عمده خوراکونه اباحت خودل

---

1) عمدة القاری: (۶۰/۲۱)

2) اوګورئی: القدوری کتاب الحظر والاباحة: ۲۵۲).

3) الهدایة مع فتح القدیر کتاب الکراهیة: ۴۴۲/۸).

4) الهدایة مع فتح القدیر کتاب الکراهیة: ۴۴۲/۸).

دی چې عمده خوراك خوړلو كښې څه باك نشته ذې اودا دزهد منافي نه دى. [1]

**د ښه خوراكونو ذكر په حرص كښې داخل نه دى** شيخ الحديث مولانا محمد زكريا رحمه الله فرمائي چې زما په نيز د امام بخارى رحمه الله مقصد ددې باب نه دادې چې مختلفو او لذيذ خوراكونه ذكر كول حرص كښې داخل نه دى. [2]

اوداهم ممكن دى چې امام بخارى د سنن ابو داؤد روايت طرفته اشاره كوى، په دې كښې د نبى كريم ﷺ ارشاد نقل كړې شوې دې چې

«وددت ان عندى خبزة بيضاء من برة سمراء ملبقة بلبن وسمن» [3] يعنى څما زړه غواړى چې ما سره د شامى غنمو سپينه روټئ وې چې په غوړو او پئو كښې تروى.

نبى كريم ﷺ د ښه خوراك ذكر كولو خواهش اوكړو، ظاهر دى چې دې ته حرص نشى وئيلې. لهذا كه څوك سړې د خپلې خوښې عمده خوراك كله ذكر اوكړى نو په دې باندې د حرص الزام لګول نكير كولې نشى. د امام بخارى رحمه الله مقصد «باب ذكر الطعام» نه هم دادې.

دباب لاندې چې كوم درې احاديث ذكر كړې شوى دى، هغه وړاندې تير شوى دى، او په دريو دواړو كښې د طعام ذكر دې، په ړومبى كښې د «طعم» او باقى دواو كښې د طعام.

د باب آخرى روايت آخر كښې دى چې «فاذا قضى نهمته من وجهه فليعجل الى اهله» ددې مطلب دادې چې د كوم مقصد دپاره سفر كړې دې، كله چې هغه مقصد او ضرورت پوره شى نو واپس كور ته راتلل پكار دى.

## ۳۰- بَابُ الأُدْمِ

[۵۱۱۴] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ رَبِيعَةَ أَنَّهُ سَمِعَ الْقَاسِمَ بْنَ مُحَمَّدٍ يَقُولُ كَانَ فِي بَرِيرَةَ ثَلاَثُ سُنَنٍ، أَرَادَتْ عَائِشَةُ أَنْ تَشْتَرِيَهَا فَتُعْتِقَهَا، فَقَالَ أَهْلُهَا، وَلَنَا الْوَلاَءُ، فَذَكَرَتْ ذَلِكَ لِرَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ «لَوْ شِئْتِ شَرَطْتِيهِ لَهُمْ. فَإِنَّمَا الْوَلاَءُ لِمَنْ أَعْتَقَ». قَالَ وَأُعْتِقَتْ فَخُيِّرَتْ فِي أَنْ تَقِرَّ تَحْتَ زَوْجِهَا أَوْ تُفَارِقَهُ، وَدَخَلَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَوْمًا بَيْتَ عَائِشَةَ وَعَلَى النَّارِ بُرْمَةٌ تَفُورُ، فَدَعَا بِالْغَدَاءِ فَأُتِيَ بِخُبْزٍ وَأُدْمٍ مِنْ أُدْمِ الْبَيْتِ فَقَالَ «أَلَمْ أَرَ لَحْمًا». قَالُوا بَلَى يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَلَكِنَّهُ لَحْمٌ تُصُدِّقَ بِهِ عَلَى بَرِيرَةَ، فَأَهْدَتْهُ لَنَا. فَقَالَ «هُوَ صَدَقَةٌ عَلَيْهَا، وَهَدِيَّةٌ لَنَا». [ر: ۴۸۰۹]

«ادم» د همزه او دال په ضمه سره او دال په سكون سره هم لوستلې شى، «ادام» جمع ده، سالن ته وائى، امام بخارى رحمه الله ددې باب نه د سالن د استعمال جواز طرفته اشاره كړې ده.

---

[1] فتح البارى :۶۹۳/۹ عمدة القارى:(۶۰/۲۱).

[2] تعليقات لا مع الدرارى :۳۹۶/۹، الابواب والتراجم:۸۸/۲).

[3] سنن ابو داؤد كتاب الاطعمة باب فى الجمع بين لونين من الطعام:۳۵۹/۳) رقم الحديث :۳۸۱۸).

دټولو نه بهترين سالن غوښه ده، نو د ابوهريره رضي الله عنه يو روايت د امام ابن ماجه رحمه الله موصولا نقل کړې دې. (سيد الادام في الدنيا والاخرة اللحم). (۱) اسماعيلي روايت باب ته مرسل وئيلې دې او واقعتا هغه مرسل دې ځکه چې په دې کښې د قاسم بن محمد نه پس د عائشه صديقه رضي الله عنها ذکر نشته دې البته امام بخارى رحمه الله په کتاب النکاح او کتاب الطلاق کښې داموصولا نقل کړې دې. دلته ئې دا مرسلا ذکرکولو نه باندې په دې وجه اکتفا کيږي چې يو روايت هميشه تکرار سره يو شان مذکوره نه وی، ددې وجې دائي وړاندې موصولا ذکر کړو او دلته مرسلا (۲)

## ۳۱- بَاب الْحَلْوَاءِ وَالْعَسَلِ.

[۵۱۱۵] حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الْحَنْظَلِي عَنْ أَبِي أُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبِي عَنْ عَائِشَةَ - رضى الله عنها - قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يُحِبُّ الْحَلْوَاءَ وَالْعَسَلَ. [ر: ۴۹۱۸]

[۵۱۱۶] حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ شَيْبَةَ قَالَ أَخْبَرَنِي ابْنُ أَبِي الْفُدَيْكِ عَنِ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ عَنِ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ كُنْتُ أَلْزَمُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - لِشِبَعِ بَطْنِي حِينَ لاَ آكُلُ الْخَمِيرَ، وَلاَ أَلْبَسُ الْحَرِيرَ، وَلاَ يَخْدُمُنِي فُلاَنٌ وَلاَ فُلاَنَةُ، وَأُلْصِقُ بَطْنِي بِالْحَصْبَاءِ، وَأَسْتَقْرِئُ الرَّجُلَ الآيَةَ وَهْيَ مَعِي كَيْ يَنْقَلِبَ بِي فَيُطْعِمَنِي، وَخَيْرُ النَّاسِ لِلْمَسَاكِينِ جَعْفَرُ بْنُ أَبِي طَالِبٍ، يَنْقَلِبُ بِنَا فَيُطْعِمُنَا مَا كَانَ فِي بَيْتِهِ، حَتَّى إِنْ كَانَ لَيُخْرِجُ إِلَيْنَا الْعُكَّةَ لَيْسَ فِيهَا شَيْءٌ، فَنَشْتَقُّهَا فَنَلْعَقُ مَا فِيهَا. [ر: ۳۵۰۵]

حلوا هر خوږ څيز ته وائي، زمونږ په علاقو کښې چې د سوجئ کومه حلوه مشهوره ده، عربى ژبه کښې دحلوا لفظ ددې دپاره مخصوص نه دې. (۳)

د امام بخارى رحمه الله مقصد دادې چې د شرين او لذيذ څيزنو استعمال جائز دې، اودا د زهد خلاف نه دى.

د باب رومبى روايت مبارك کښې دى چې نبى کريم صلى الله عليه وسلم شرينى او شهد خوښ کړې وو.

علامه ثعلبى رحمه الله په (فقه اللغه) کښې ليکلى دى چې نبى کريم صلى الله عليه وسلم چې کومه حلوه خوښوله، هغه دکهجورو په پيښو کښې اغزلو سره جوړيده. (۴)

---

(۱) فتح البارى :۶۸۴/۹، سنن ابن ماجه :۱۰۹۹/۲، باب اللحم رقم الحديث :۳۳۰۵، ولفظه سيد طعام اهل الدنيا واهل الجنة للحم).

(۲) (فتح البارى :۶۹۴/۹)

(۳) وقال الخطابي اسم الحلوى لا يقع الا على مادخلته الصنعة وفى المخصص لابن سيده هى ما عولج من الطعام بحلاوة وقد تطلق على الفاكهة... فتح البارى :۶۹۵/۹)

(۴) فتح البارى :۶۹۶/۹، وفقه للثعالبى:۲۴۰).

**قوله**: كُنْتُ أَلْزَمُ النبي - لِشِبَعِ بَطْنِي: زه د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې د شکم سیرئی دپاره اوسیدم، ځما د شکم سیرئی انتظام بۀ هم کیدلو، لام تعلیل دپاره دې، (ای لاجل شبع بطنی شبعي) د شین په کسره او دباء په فتحه سره شکم سیرئی ته وائی. [1]

**قوله**: حِيْنَ لاَ آكُلُ الْخَمِيرَ، وَلاَ أَلْبَسُ الْحَرِيرَ: داد هغه وخت خبره ده چې کله ما نه خمیره روټئ خوړلې وه او نه مې د ریښمو جامې اچولې وې، دلته روایت کښې د (حریر) لفظ دې چې په هغه وخت کښې به ما حریر نه اچولو، چې ددې نه دا مفهوم راوځی چې ګویا اوس حریر استعمالیږی، حالانکه ددې استعمال ناجائز دې لکه څنګه چې مخکښې درست نه وو، ددې نه هم درست نه وو.

دکتاب المناقب روایت کښې (حرير) په ځائې د (الحبير) لفظ دې، چې ددې معنی منقش، دهاری دار او مزین څادر اوکپړه ده. په دې صورت کښې مطلب واضح دې چې په هغه وخت کښې ځما سره دهاری دار او منقش اوعمده لباس نه وو، دې نه پس الله تعالیٰ راته ټول هر څه راکړل نو ما خمیره روټئ خوړل هم شروع کړل او عمده لباس اچول مې هم شروع کړل.
قاضی عیاض دسیاق کلام موافقت په وجه هم دې روایت ته ترجیح ورکړې ده. [2]

**قوله**: وَأُلْصِقُ بَطْنِي بِالْحَصْبَاءِ: او ما خپله خیټه کاڼرو سره لګولې وه، (چې ددې د یخوالی په وجه د اولږې حرارت کښې کمې راشی).
وراندې فرمائی چې د مسکینانو دپاره دټولو نه ښه سړې جعفر بن ابی طالب وو، هغوئ به مونږ خپل ځان سره بوتلو او چې څه به دهغوئ په کور کښې وو هغه بۀ ئې مونږ باندې خوړل، تر دې پورې چې ځینې وخت کښې به ئې خالی لوښې هم راوړل او ما به دا څټل.

**قوله**: (عُكَّةَ): دعین په ضمه اوکاف په مفتوحه مشدد سره، د غوړو وغیره ایښودلو دپاره دچمړې لوښی ته وائی. جعفر رضی الله عنه بۀ هغه راوړو، په دې کښې په غوړی نه وو نودا ځیز به مو اوشلو او شلولو نه پس به چې په دې کښې دننه څه غوړی وو مونږ به هغه څټل. [3]

**قوله**: فَنَشْتَقُّهَا: په دې لفظ دوه روایتونه دی.

① قاضی عیاض شین او فاء سره (نشتفها) ضبط کړې دې، د اشتفاف معنی ده په لوښی کښې موجود ټول ځیزونه څکل.
په دې صورت کښې مطلب واضح دې چې مونږ په لوښی کښې موجود غوړی او تری وغیره صفا کول.

[1]) ارشاد الساری:۱۲/۱۹۱).
[2]) فتح الباری :۹/۶۹۶).
[3]) عمدة القاری:۲۱/۶۲).

② دويم روايت د (نشتفها) د شين او قاف سره دې چې ددې معنى شلول دی، هم دې روايت ته ابن التين ترجيح وركړه ده، پورته تشريح ددې مطابق كړې شوې ده. (١)
خو په دې باندې اشكال كيږى چې داسې دظرف شلول اوضائع كول څنګه بې مقصده ضائع كول خو يقينا درست نه دى ليكن دلته خو تطيب قلب مسلم او ددې د تسلئ دپاره داسې اوكړې شو، ځكه چې دې ته په اضاعت نشي وئيلې.
دويم جواب دادې چې ممكن دى چې دا شان شلوى چې دې نه پس قابل انتفاع وی(٢) والله اعلم

## ۳۲- باب الدُّبَّاءِ

[۵۱۱۷] حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا أَزْهَرُ بْنُ سَعْدٍ عَنِ ابْنِ عَوْنٍ عَنْ ثُمَامَةَ بْنِ أَنَسٍ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - أَتَى مَوْلًى لَهُ خَيَّاطًا، فَأُتِيَ بِدُبَّاءٍ، فَجَعَلَ يَأْكُلُهُ، فَلَمْ أَزَلْ أُحِبُّهُ مُنْذُ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَأْكُلُهُ. [ر: ۱۹۸۶]

(دباء) د ال ضمه اود باء مشدده سره، كدو ته وائى، ددې دپاره د قرع لفظ هم استعماليږى، ددې ډيرې فائدې دى، د طبرانى روايت كښې نقل دى چې (عليكم بالقرع فانه يزيد فى الدماغ).(٣)
تاسو دكدو استعمال زيات كوئى او دا په دماغى قوت كې اضافه كوى.
خو دا روايت صحيح نه دې، ددې په سند كښې عمرو بن حسين يو راوى دې او هغه متهم دې، علامه ابن الجوزى په (كتاب الموضات) كښې ذكر كړې دې (٤) هسې دكدو فضيلت دپاره روايت باب كافى دې، په دې كښې دى چې نبى كريم ﷺ به دبا شوق سره خوړلو، او انس رضي الله عنه وائى چې كله نه ما نبى كريم ﷺ ليدلې دې چې دوئ دباء په شوق سره خورى نو څما هم دې سره محبت پيدا شوې دې.

## ۳۳- باب الرَّجُلِ يَتَكَلَّفُ الطَّعَامَ لِإِخْوَانِهِ.

[۵۱۱۸] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الأَعْمَشِ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الأَنْصَارِيِّ قَالَ كَانَ مِنَ الأَنْصَارِ رَجُلٌ يُقَالُ لَهُ أَبُو شُعَيْبٍ، وَكَانَ لَهُ غُلاَمٌ لَحَّامٌ فَقَالَ اصْنَعْ لِي طَعَامًا أَدْعُو رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - خَامِسَ خَمْسَةٍ، فَدَعَا رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - خَامِسَ خَمْسَةٍ، فَتَبِعَهُمْ رَجُلٌ فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «إِنَّكَ دَعَوْتَنَا خَامِسَ خَمْسَةٍ وَهَذَا رَجُلٌ قَدْ تَبِعَنَا، فَإِنْ شِئْتَ أَذِنْتَ لَهُ، وَإِنْ شِئْتَ تَرَكْتَهُ».

---

(١) اوګورئى : عمدة القارى:۲۱/۶۲، فتح البارى :۹/۶۹۷).
(٢) لا مع الدرارى:۹/۳۹۸).
(٣) عمدة القارى:۲۱/ ۶۲)
(٤) (كتاب الموضوعات لابن الجوزى :۲/۲۹۰، اللالى المصنوعة كتاب الاطعمة :۲/۱۸۰ ليكن دې د عمرو ن حصين نوم ذكر شوې دې، وتنزيه الشريعة المرفوعة كتاب الاطعمة الفصل الثانى:۲/۲۴۴)

قَالَ بَلْ أَذِنْتُ لَهُ.

قال محمد بن يوسف: سمعت محمد بن اسماعيل يقول: اذا كان القوم على المائدة، ليس لهم ان يناولوا من مائدة الى مائدة اخرى، ولكن يناول بعضهم بعضا فى تلك المائدة أويدعوا. [ر: ۱۹۷۵]

د امام بخاری رحمه الله مقصد دادې چې يو سړې د خپل رور دپاره ډير لوئې دعوت كوى او خوراك انتظام كوى نودا درست دى او سنت كښې ددې اصل موجود دې.

ابو مسعود انصاری رضی الله عنه نه روايت دې، فرمائى چې يو انصارى صحابى چې هغه ته به اوب شعيب وئيلې شو، د هغه يو لحام غلام وو يعنى غوښه به ئې خرڅوله، هغه خپل غلام ته اووئيل چې خوراك تيارك كړه، څه به نبى كريم ﷺ سره پنځو كسانو لره دعوت كوم، هغوئ نبى كريم ﷺ سره پنځه كسان راؤبلل، دوئ سره يو سړې بل هم وو، نبى كريم ﷺ چې كله هلته اورسيدو نو وې فرمائيل چې تاسو مونږ پنځه كسان بللى يو، دا سړې هم مونږ سره راغلې دې، كه ته غواړې نو ته ده ته هم اجازت وركړه، او كه نه غواړې نو دې پريږده چې ځى. هغه اووئيل چې ده ته هم اجازت دې.

حافظ ابن حجر رحمه الله اوفرمائيل چې ددعوت كوؤنكى انصارى صحابى نوم اودده د غلام نوم ماته معلوم نشو، دلته د غلام دپاره د (لحام) صفت راؤړې شوې دې. او په كتاب البيوع كښې د قصاب لفظ راغلې دې. (۱)

**قوله: خامس خمسة)**: د پنځو سړو پنځم يعنى نبى كريم ﷺ نه سوا څلور روو، نبى كريم ﷺ سره پنځه وو، داتركيب اعداد كښې شميرلې كيږى، په قرآن پاك كښې دى چې (ثانى اثنين) (ثالث ثلاثة)

نبى كريم ﷺ سره دعوت كښې دشريكو او دې نه پس يو ځائې كيدونكو سړو نومونو باره كښې حافظ ابن حجر رحمه الله د لاعلمئ اظهار كړې دې. (۲)

**د ترجمة الباب ثبوت:** اوس دا خبره پاتې كيږى چې د حديث باب نه به د ترجمة الباب ثبوت څنګه وى ؟

① حافظ ابن حجر رحمه الله اوعلامه قسطلانى رحمه الله فرمائى چې دعوت كولو والا صحابى چونكه عدد په پنځو باندې منحصر كړو، چې ددې نه ظاهريږى چې هغوئ پرتكلف طعام تيار كړې وو، كه ساده دعوت وې او عام خوراك وې نو بيا حصر عدد به ئې نه كولو. (۳)

② ګنګوهى رحمه الله فرمائى چې د روايت نه معلوميږى چې د عوت كښې دغوښې اهتمام وو،

---

(۱) فتح البارى :۹/۶۹۸).

(۲) فتح البارى :۹/۶۹۸).

(۳) اوګورئى: فتح البارى :۹/۶۹۸، ارشاد السارى:۱۲/۱۹۴، وقال العينى فى عمدة القارى:۲۱/ ۶۳.انه حصر ا لعدد والحاصر متكلف لانه الزم نفسه بعدد معين وهذا تكلف لاحتمال الزيادة والنقصان).

(ځکه دغوښې کاروبار کوؤنکی غلام ته ئې د خوراك تیارولو دپاره اووئیل) او ظاهر دی چې په کوم خوراك کښې غوښه وی هغه پرتکلف وی. [1]

③ شیخ الحدیث مولانا محمدزکریا رحمه الله فرمائی چې د حدیث طرز او صنیع پخپله معلومیږی چې هغه خپل غلام ته خاص طور سره وئیلی وو چې څه نبی کریم ﷺ سره پنځو کسانو دپاره دعوت کوم ته خوراك تیار کړه. دې سره به یقینا پرتکلف خوراك مراد دې. [2]

**د طفیلی حکم:** دلته په حدیث پاك کښې دی چې نبی کریم ﷺ سره یو سړی د طفیلی په طور د دعوت نه بغیر لاړو، نبی کریم ﷺ د کور خاوند نه اجازت اوغوښتلو او هغه ورته اجازت ورکړو.

طفیلی دپاره حکم دادې که په خاص دعوت کښې هغه بغیر د اجازته لاړ شی او داعی ده ته په اجازت ورکولو باندې راضی نو ددهٔ دپاره خوراك خوړل جائز دی. [3]

خوکه دعوت داسې وی چې په هغې کښې صلاتی عام وی نو پدې کښې د خصوصی دعوت نه بغیر هم تلې شی.

امام ابوداؤد رحمه الله یو روایت نقل کړې دې چې (من دخل بغیر دعوة دخل سارقا وخرج مغیرا) چې کوم سړی بغیردعوت نه رازی نوهغه غل دې اوچې کله واپس لاړشی نولوټ کوؤنکی دې. [4]

دلته په کراچئ کښې داسې ډیر کیږی چې تا دولیمې دعوت د پنځو سوؤ یا سلو کسانو دپاره کړې دې لیکن پنځوس شپیته نور هم داخل شو، او مدعو میلمنو دپاره خوراك کمیږی، نو داسې دعوتونو کښې بغیر دعوت نه داخلیدل جائز نه دی.

البته که مدعو ته یقین وی که دې خپل ځان سره یو کس دو بوځی نو داعی به ددې شرکت محسوس نه کړې نو داسې صورت کښې بوتلې شی،اوکه دوئ بوځی نو ددوئ دپاره به مستقل اجازت اخلی. لکه څنگه چې نبی کریم ﷺ کړې وو، که او قرائنو نه داجازت او طیب نفس علم وی نو بیاصراحتا د اجازت اخستلو ضرورت نشته دی.

داسې صورت کښې که داعی اجازت ورنکړی نو مدعو ته اختیار حاصل نه دې چې هغه دعوت ته د بوتلو یا ددې د قبلیدو نه پس رد کړی.

البته ددعوت قبلولو په وخت کښې شرط لګولې شی چې ما سره به د فلانی دعوت کوی، نو قبول دې ګڼی نه، نبی کریم ﷺ یو ځل عائشه صدیقه رضی الله عنها دپاره داسې شرط لګولې وو، که د عائشه رضی الله عنها دعوت نشته دې نو بیا ماته قبول نه دې. [5]

---

[1] لا مع الدراری:۹/۳۹۸).

[2] تعلیقات لا مع الدراری:۹/۳۹۸).

[3] طفیلی طفیل طرفته منسوب دې، دا د کوفې دیو سړی نوم وو چې اکثرو دعوتونو کښې به بغیر د دعوت نه شاملیدو، دې نه پس د هر هغه سړی دپاره د طفیلی لفظ استعمال کړې شو چې بغیر دعوت نه رازی، خطیب بغدادی د طفیلیانو په ښکلی واقعاتو باندې یو کتاب لیکلې دې، اوګورئی : ارشاد الساری:۱۲/ ۱۹۳).

[4] دا روایت ضعیف دې، فتح الباری :۹/ ۷۰۰ ارشاد الساری:۱۲/۱۹۳).

[5] مذکوره تفصیل دپاره اوګورئی : فتح الباری :۹/ ۷۰۰، ۷۰۱)

**قوله**: قال محمد بن يوسف سمعت محمد بن اسماعيل البخاري يقول: اذا كان القوم على المائدة: داتعليق صرف د ابوزر عن المستملي په نسخه کښې دې.([1])
محمد بن يوسف فرمائی چې ما د امام بخاری رحمه الله نه دا آوريدلی دی چې کله څوکسان په يو دسترخوان کينی نو دوئ ته دا حق حاصل نه دې چې يو دسترخوان والا په بل دسترخوان باندې ناستو خلقوته ورکړی، اوکه په يو دسترخوان باندې ناست وی نو په خپلو کښې يو بل لره ورکولو کښې اختيار دې.

**قوله**: ولكن يناول بعضهم بعضا في تلك المائدة اويدعوا......اى يتركوا: يعنى يو دسترخوان والا يو بل كه وركوی يائې پرېږدی.
ګنګوهی رحمه الله فرمائی چې داحکم په دې صورت کښې دې چې کله د صاحب طعام طرفته صراحتا يا دلالتا اجازت نه وی ليکن که صراحتا يا دلالتا اجازت وی نو بيا څيزونه د يو دسترخوان نه بل دسترخوان طرفته منتقل کولې شی، نو فرمائی چې:

«**قوله**: ولايناول من هذه المائدة الى مائدة اى اذا لم ياذن بذالك صاحب الطعام صراحة اودلالة، ودلالة الاذان موجودة فيما اذا كان طعامان على مائدتين واحدا من غير فرق وتكفل صاحب الطعام باشباعهم جملة: فانه لاباس حينئذ فى المناولة»([2])
امام بخاری رحمه الله پخپل قول کښې بيان شوې حکم د حديث پاك نه اخذ کړې دې چې نبی کريم ﷺ د دعوت نه پس يو بل سړی دپاره اجازت غوښتلو، نودعوت نه پس د تصرف فی الطعام يو عام اجازت حاصل شو، او ددې په بنياد باندې د يو بل سړی دپاره اجازت غوښتلې شی، ددې برخلاف که څوك سړې بالکل مدعو نه وی نو ظاهر دی چې هغه نورو دپاره به څه اجازت حاصلولې شی.
هم دا حال په يو دسترخوان باندې د ناستو خلقو دې، په دې دسترخوان باندې هغه ته د تصرف حق حاصل دې، نو دوئ څيزونه يو بل طرفته منتقل کولې شی. ليکن بل دسترخوان باندې موجود څيزونو طرفته چونکه هغه مدعو نه دې ددې وجې نه په هغه دسترخوان باندې موجود څيزونو نه هغه څيزونه نشی اخستې. نو حافظ ابن حجر رحمه الله ليکی چې:
«وكانه استنبط ذالك من استئذان النبى ﷺ الداعى فى الرجل الطارى ووجه اخذه منه ان الذين دعوا صار لهم بالدعوة عموم اذن بالتصرف فى الطعام المدعوا اليه بخلاف من لم يدع فيتنزل من وضع بين يديه الشئ منزلة من دعى له اوينزل الشئ الذى وضع بين يدى غيره منزلة من لم يدع اليه»([3])

---
[1]) فتح البارى: ۹/۷۰۱)
[2]) لا مع الدرارى: ۹/۳۹۹).
[3]) فتح البارى: ۹/۷۰۱).

## ۳۴- باب مَنْ أَضَافَ رَجُلاً إِلَى طَعَامٍ، وَأَقْبَلَ هُوَ عَلَى عَمَلِهِ.

[۵۱۱۹] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُنِيرٍ سَمِعَ النَّضْرَ أَخْبَرَنَا ابْنُ عَوْنٍ قَالَ أَخْبَرَنِي ثُمَامَةُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَنَسٍ عَنْ أَنَسٍ - رضي الله عنه - قَالَ كُنْتُ غُلاَمًا أَمْشِي مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَدَخَلَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - عَلَى غُلاَمٍ لَهُ خَيَّاطٍ، فَأَتَاهُ بِقَصْعَةٍ فِيهَا طَعَامٌ وَعَلَيْهِ دُبَّاءٌ، فَجَعَلَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَتَتَبَّعُ الدُّبَّاءَ - قَالَ - فَلَمَّا رَأَيْتُ ذَلِكَ جَعَلْتُ أَجْمَعُهُ بَيْنَ يَدَيْهِ - قَالَ - فَأَقْبَلَ الْغُلاَمُ عَلَى عَمَلِهِ. قَالَ أَنَسٌ لاَ أَزَالُ أُحِبُّ الدُّبَّاءَ بَعْدَ مَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - صَنَعَ مَا صَنَعَ. [ر: ۱۹۸۶]

که يو سړي بل چا ته دخوراك دعوت وركوى، مليمه راغلو او خوراك ئې ددهٔ مخكښې كيخودلو او پخپله پخپل كار كښې مشغول شو نو په دې كښې هيڅ باق نشته دې، حديث باب كښې ددې تصريح شته دې چې غلام خوراك د نبى كريم ﷺ مخكښې كيخودو او پخپله په كار كښې مشغول شو.

## ۳۵- باب الْمَرَقِ

[۵۱۲۰] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ أَنَّهُ سَمِعَ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ أَنَّ خَيَّاطًا دَعَا النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - لِطَعَامٍ صَنَعَهُ، فَذَهَبْتُ مَعَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فَقَرَّبَ خُبْزَ شَعِيرٍ وَمَرَقًا فِيهِ دُبَّاءٌ وَقَدِيدٌ، فَرَأَيْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - يَتَتَبَّعُ الدُّبَّاءَ مِنْ حَوَالَيِ الْقَصْعَةِ، فَلَمْ أَزَلْ أُحِبُّ الدُّبَّاءَ بَعْدَ يَوْمِئِذٍ. [ر: ۱۹۸۶]

«مرق» خوروه ته وائى، امام بخارى رحمه الله په كتاب الاطعمة كښې د مطعوماتو تذكره كوى او معطوماتو كښې خوروه هم داخله ده. ددې وجې ئې ددې ذكر هم اوكړو.

## ۳۶- باب الْقَدِيدِ

[۵۱۲۱] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ أَنَسٍ - رضى الله عنه - قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - أُتِيَ بِمَرَقَةٍ فِيهَا دُبَّاءٌ وَقَدِيدٌ، فَرَأَيْتُهُ يَتَتَبَّعُ الدُّبَّاءَ يَأْكُلُهَا. [ر: ۱۹۸۶]

[۵۱۲۲] حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَابِسٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ - رضى الله عنها - قَالَتْ مَا فَعَلَهُ إِلاَّ فِي عَامٍ جَاعَ النَّاسُ، أَرَادَ أَنْ يُطْعِمَ الْغَنِيُّ الْفَقِيرَ، وَإِنْ كُنَّا لَنَرْفَعُ الْكُرَاعَ بَعْدَ خَمْسَ عَشْرَةَ، وَمَا شَبِعَ آلُ مُحَمَّدٍ - صلى الله عليه وسلم - مِنْ خُبْزِ بُرٍّ مَأْدُومٍ ثَلاَثًا. [ر: ۵۱۰۰]

**قوله**: قديد: په اصل كښې هغه غوښې ته وائى چې په هغې باندې مالګه اولړولې شى او

په نمر کښې ئې اوچولو ته کيخودلې شي. اوبيا د ضرورت مطابق استعمالولې شي.

د باب په دواړو حديثونو کښې د غوښې ذکر دې. ړومبی روايت کښې د «قديد» او دويم کښې د «کراع» په دواړو روايتونو باندې کلام تير شوې دې.

## ۳۷- باب مَنْ نَاوَلَ أَوْقَدَّمَ إِلَى صَاحِبِهِ عَلَى الْمَائِدَةِ شَيْئًا.

قَالَ وَقَالَ ابْنُ الْمُبَارَكِ لَا بَأْسَ أَنْ يُنَاوِلَ بَعْضُهُمْ بَعْضًا، وَلَا يُنَاوِلُ مِنْ هَذِهِ الْمَائِدَةِ إِلَى مَائِدَةٍ أُخْرَى.

[۵۱۲۳] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ أَنَّهُ سَمِعَ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَقُولُ إِنَّ خَيَّاطًا دَعَا رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - لِطَعَامٍ صَنَعَهُ - قَالَ أَنَسٌ - فَذَهَبْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - إِلَى ذَلِكَ الطَّعَامِ، فَقَرَّبَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - خُبْزًا مِنْ شَعِيرٍ وَمَرَقًا فِيهِ دُبَّاءٌ وَقَدِيدٌ - قَالَ أَنَسٌ - فَرَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَتَتَبَّعُ الدُّبَّاءَ مِنْ حَوْلِ الصَّحْفَةِ، فَلَمْ أَزَلْ أُحِبُّ الدُّبَّاءَ مِنْ يَوْمِئِذٍ. وَقَالَ ثُمَامَةُ عَنْ أَنَسٍ، فَجَعَلْتُ أَجْمَعُ الدُّبَّاءَ بَيْنَ يَدَيْهِ. [ر: ۱۹۸۶]

په دې باب کښې د امام بخارى رحمه الله سابقه کلام، د ابن مبارک رحمه الله د قول په طور راغلى دې، په يو دسترخوان باندې کيناستونکو دپاره يو بل طرفته خيزونه ورکول جائز دى. لکه څنګه چې حديث پاک کښې تصريح ده چې انس رضی الله عنه د کدو ټکړې نبى کريم ﷺ ته وړاندې کړې.

## ۳۸- باب الرُّطَبِ بِالْقِثَّاءِ.

[۵۱۲۴] حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ جَعْفَرِ بْنِ أَبِي طَالِبٍ - رضى الله عنهما - قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - يَأْكُلُ الرُّطَبَ بِالْقِثَّاءِ. [۵۱۳۲، ۵۱۳۴]

«رطب» تازه کهجورې ته وائى. «او قثاء» بادرنګ ته وائى. نبى کريم ﷺ به تازه کهجورې بادرنګ سره استعمالولې. او مقصد په دې کښې دا وو چې کهجوره کښې موجود حرارت بادرنګ بردوت سره کم شي او اعتدال پيدا شي.

## باب

[۵۱۲۵] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ عَبَّاسٍ الْجُرَيْرِيِّ عَنْ أَبِي عُثْمَانَ قَالَ تَضَيَّفْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ سَبْعًا، فَكَانَ هُوَ وَامْرَأَتُهُ وَخَادِمُهُ يَعْتَقِبُونَ اللَّيْلَ أَثْلَاثًا، يُصَلِّي هَذَا، ثُمَّ يُوقِظُ هَذَا. وَسَمِعْتُهُ يَقُولُ قَسَمَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - بَيْنَ أَصْحَابِهِ تَمْرًا، فَأَصَابَنِي سَبْعُ تَمَرَاتٍ إِحْدَاهُنَّ حَشَفَةٌ.

[٥١٢٢] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ زَكَرِيَّاءَ عَنْ عَاصِمٍ عَنْ أَبِي عُثْمَانَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضي الله عنه - قَسَمَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - بَيْنَنَا تَمْرًا فَأَصَابَنِي مِنْهُ خَمْسٌ أَرْبَعُ تَمَرَاتٍ وَحَشَفَةٌ، ثُمَّ رَأَيْتُ الْحَشَفَةَ هِيَ أَشَدُّهُنَّ لِضِرْسِي. [ر: ٥٠٩٥]

د حافظ ابن حجر رحمه الله، علامه عينى رحمه الله او علامه قسطلانى رحمه الله په نسخو كښې دا باب بلاترجمه دې ليكن زمونږ په هندوستانى نسخو كښې ددې ترجمه «باب الحشف» موجود دې.

«حشف» «حشفة» جمع ده، خرابې كهجورې ته وائى.

شيخ الحديث مولانا محمد زكريا رحمه الله فرمائى چې دې نه مخكښې امام بخارى رحمه الله يو ترجمه قائمه كړې وه چې په دعوت كښې پرتكلف خوراك اهتمام كول جائز دى، دلته د «باب الحشف» ترجمه قائموى او وائى چې هغه تكلف ضرورى نه دې. اوشى خو صحيح ګڼى نه، او ماحضر كه ميلمنو ته پيش كړې شى نو دا هم صحيح ده. (١)

**تعارض د رواياتو او دهغې حل**: دلته د باب په ړومبى روايت كښې ابوهريره رضي الله عنه فرمائى چې ماته اووۀ كهجورې راكړې او په بل روايت كښې د پنځو ذكر دې.

① ابن التين فرمائى چې په دې كښې خو دې يو روايت په وهم باندې محمول كړې شى او يا دې دا په تعدد د واقعاتو باندې محمول كړې شى.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چې داتحاد مخرج په وجه تعدد واقعاتو باندې محمول كول يو بعيده غوندې خبره ده. (٢)

② علامه كرمانى رحمه الله مشهور جواب وركړې دې چې د «عدد اقل اكثر» ته نفى كوى، لهذا په دواړو كښې تعارض نشته دې. (٣)

③ حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چې دا يو مجلس كښې د تقسيم د دوؤ مراحلو بيان دې، په ړومبى ځل دوئ پنځه كهجورې تقسيم كړې وى، په دويم روايت كښې هم ددې ذكر دې. بياځه كهجورې پاتې شوې نو دوئ دوباره تقسيم كړې، په ړومبى روايت كښې د كل و مجموعې ذكر دې.

**قوله**: تضيّفتُ اباهريرة اي نزلت به ضيفا... اي سبع ليال: يعنى ځه اووۀ ورځو پورې د ابوهريره رضي الله عنه سره ميلمه اوم، او ددوئ خادم او ددوئ بى بى يو يو حصه دشپې به په وار وار پاسيدل. د شپې يوه حصه به يو عبادت كولو، بيا به هغه آرام دپاره ځملاستو، بل به ئې راپاسولو. بيا به هغه يو حصه عبادت كولو نه پس دريم به يې پاسولو، داشان تو له شپه به په كور كښې د عبادت سلسله جارى وه.

يَعْتَقِبُونَ: بالقاف أي: يتناوبون قيام الليل_

---

(١) الابواب والتراجم:٢/٨٩).

(٢) فتح البارى :٩/٧٠٥).

(٣) شرح الكرمانى:٢٠/٥٦).

# ٣٩- باب الرُّطَبِ وَالتَّمْرِ.

وَقَوْلِ اللّهِ تَعَالَى: وَهُزِّي إِلَيْكِ بِجِذْعِ النَّخْلَةِ تُسَاقِطْ عَلَيْكِ رُطَبًا جَنِيًّا

[٥١٢٧] وَقَالَ مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ مَنْصُورِ ابْنِ صَفِيَّةَ حَدَّثَتْنِي أُمِّي عَنْ عَائِشَةَ - رضي الله عنها - قَالَتْ تُوُفِّيَ رَسُولُ اللّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَقَدْ شَبِعْنَا مِنَ الأَسْوَدَيْنِ التَّمْرِ وَالْمَاءِ. [ر: ٥٠٦٨]

د ترو او اوچو كهجورو باره كښې امام بخاري رحمه الله دا ترجمه قائم كړې ده ، اودې نه پس د قرآن كريم آيت ئې نقل كړې دې، چې په هغې كښې د ترو كهجورو ذكر دې
لوندې كهجورې د نفاس والا ښځې دپاره ډير مفيد دى، عبد بن حميد د ربيع بن خيثم طريق سره روايت نقل كړې دې چې «ليس للنفساء مثل الرطب ولا المريض مثل العسل»[1]

[٥١٢٨] [2] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ حَدَّثَنَا أَبُو غَسَّانَ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو حَازِمٍ عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَبْدِ اللّهِ بْنِ أَبِي رَبِيعَةَ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّهِ رضى الله عنهما قَالَ كَانَ بِالْمَدِينَةِ يَهُودِيٌّ وَكَانَ يُسْلِفُنِي فِي تَمْرِي إِلَى الْجِدَادِ، وَكَانَتْ لِجَابِرٍ الأَرْضُ الَّتِي بِطَرِيقِ رُومَةَ فَجَلَسَتْ، فَخَلاَ عَامًا فَجَاءَنِي الْيَهُودِيُّ عِنْدَ الْجَدَادِ، وَلَمْ أَجُدَّ مِنْهَا شَيْئًا، فَجَعَلْتُ أَسْتَنْظِرُهُ إِلَى قَابِلٍ فَيَأْبَى، فَأُخْبِرَ بِذَلِكَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ لأَصْحَابِهِ «امْشُوا نَسْتَنْظِرْ لِجَابِرٍ مِنَ الْيَهُودِيِّ». فَجَاءُونِي فِي نَخْلِي فَجَعَلَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - يُكَلِّمُ الْيَهُودِيَّ فَيَقُولُ أَبَا الْقَاسِمِ لاَ أُنْظِرُهُ. فَلَمَّا رَأَى النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - قَامَ فَطَافَ فِي النَّخْلِ، ثُمَّ جَاءَهُ فَكَلَّمَهُ فَأَبَى فَقُمْتُ فَجِئْتُ بِقَلِيلِ رُطَبٍ فَوَضَعْتُهُ بَيْنَ يَدَيِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فَأَكَلَ ثُمَّ قَالَ «أَيْنَ عَرِيشُكَ يَا جَابِرُ». فَأَخْبَرْتُهُ فَقَالَ «افْرُشْ لِي فِيهِ». فَفَرَشْتُهُ فَدَخَلَ فَرَقَدَ، ثُمَّ اسْتَيْقَظَ فَجِئْتُهُ بِقَبْضَةٍ أُخْرَى فَأَكَلَ مِنْهَا، ثُمَّ قَامَ فَكَلَّمَ الْيَهُودِيَّ فَأَبَى

---

[1] فتح البارى :٩/٧٠٧)

[2] (يسلفى من السلف اى يدفع له الثمن قبل الثمر واستلام (الجداد) زمن قطع قطع النخل، (رومة) اسم موضع قرب المدينة (فجلست) بقيت الارض نخلا بدون ثمر وفى رواية (فخاست) يعنى خالفت معهود هامن الجمل، (فخلا) من التخلية اى تاخر وفاء السلف وفى رواية (نخلا) اى بقيت الارض نخلا (استنظره) اطلب منه ان يمهلنى (قابل) عام ثان، (رطب) ثمر النخل قبل ان يصبح تمرا (عريشک) المكان الذى اتخذته من بستانک به و تقيل فيه والعريش ما يستظل به عند الجلوس تحته، وقيل: النساء (قام فى الرطاب) طاف بين النخل وعليه ثمره، الثانية) المرة الثانية، (فوقف فى الجداد) اى حال قطع الثمر واثناء ه، (محمدبن يوسف) هو انفريرى الراوى، عن البخارى (ابو جعفر) هو محمد بن ابى حاتم وراق البخارى، (محمد بن اسماعيل) هو البخارى نفسه (محلاليس عندى مقيدا) اى مضبوطا (فخلا ليس فيه شک) اى هذا هوالذى يظهره والله اعلم.

عَلَيْهِ فَقَامَ فِي الرِّطَابِ فِي النَّخْلِ الثَّانِيَةَ ثُمَّ قَالَ «يَا جَابِرُ جُدَّ وَاقْضِ». فَوَقَفَ فِي الْجَدَادِ فَجَدَدْتُ مِنْهَا مَا قَضَيْتُهُ وَفَضَلَ مِنْهُ فَخَرَجْتُ حَتَّى جِئْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - فَبَشَّرْتُهُ فَقَالَ «أَشْهَدُ أَنِّي رَسُولُ اللَّهِ».

عرش\النمل: ۲۳\وعريش: بناء، وقال ابن عباس: معروشات:\الانعام: ۱۴۱\ما يعرش من الكروم وغير ذلك، يقال: عروشها\البقرة: ۲۵۹\أبنيتها.

قال محمد بن يوسف قال ابوجعفر قال محمد بن اسماعيل فخلا ليس عندى مقيدا ثم قال فخلا ليس فيه شك

**د جابر رضي الله عنه د قرض واقعه:** د باب دويم روايت كښې جابر رضي الله عنه فرمائى چې مدينه منوره كښې يو يهودى وو، اوهغه به ماسره زما د كهجورو د شوكولو په وخت كښې بيع سلم كوله، زما څه زمكه د بئر رومه په لار كښې وه، يو كال په دې زمكه كښې هيڅ پيداوار اونشو. نو مالره هغه يهودى د پيداوار په وخت كښې راغلو او ما ددې نه هيڅ نه وو شوكولى، نو ماده سره د راتلونكى كال دپاره مهلت اوغوښتلو ليكن ده انكار اوكړو.

نبى كريم صلى الله عليه وسلم ته ددې خبر وركړې شو. نبى كريم صلى الله عليه وسلم خپلو صحابه كرامو رضي الله عنهم ته اوفرمائيل چې ځئ چې د جابر رضي الله عنه دپاره ددې يهودى نه مهلت واخلو. نو داخلق زما باغ ته راغلل، نبى كريم صلى الله عليه وسلم دې يهودى ته دمهلت دپاره اوفرمائيل. نو هغه يهودى اووئيل چې ائې ابوالقاسم صلى الله عليه وسلم! څه ده ته مهلت نشم وركولې، هر كله چې نبى كيم صلى الله عليه وسلم دا صورت اوكتلو نو اودريدل او په باغ كښې اوګرزيدل. بيا دې يهودى ته راغلل او خبرې اترې ئې ورسره اوكړې. ليكن هغه او نه منل. څه پورته شوم څه رطب كهجورې مې راوړې. او نبى كريم صلى الله عليه وسلم ته مې پيش كړې. نبى كريم صلى الله عليه وسلم هغه اوخوړلې. بيا نبى كريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چې ائې جابر رضي الله عنه! ستا جونګړه چرته ده. ما ورته اوخودله، زما دپاره دې څه د څملاستو ځائې جوړ كړه، ما ورته جوړ كړو. نبى كريم صلى الله عليه وسلم دننه تشريف يوړو او آرام ئې اوكړو. د بيداريدو نه پس ما څه نورې كهجورې هغه ته پيش كړې. نبى كريم صلى الله عليه وسلم هغه اوخوړلې. بيائې يهودى سره خبرې اترې شروع كړې خو هغه اونه منل او مهلت وركولو نه ئې انكار اوكړو. نو په دريم ځل نبى كريم صلى الله عليه وسلم كهجورو لره راغلل او وې فرمائيل چې ائې جابره رضي الله عنه! ته شوكوه. او دې يهودى ته ئې وركوه. نبى كريم صلى الله عليه وسلم د كهجورو د شوكولو په ځائې كښې تشريف كيخودو. نو ما هغه هومره كهجورې اوشوكولې او دې يهودى ته مې دهغه قرض اداكړو، څه باقى پاتې شوې، څه بهر راووتلم او نبى كريم صلى الله عليه وسلم ته مې د قرض ادا كيدو زيرې وركړو، نبى كريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چې څه ګواهى وركوم چې څه دالله جل جلاله رسول يم.

**دعروش او عريش نه مراد مكان دې:** په سند كښې د ابوغسان نوم محمد بن مطرف دې او دابوحازم نوم سلمه بن دينار دې، دې نه پس ابراهيم بن عبدالرحمان بن ابى ربيعه دې، د ابوربيعه نوم عمرو يا حذيفه دې، دده ځوئې عبدالله دفتح مكه په موقع اسلام قبول كړې وو، ددهٔ د جاهليت په زمانه كښې نوم بحير وو، نبى كريم صلى الله عليه وسلم دده نوم بدل كړو او عبدالله

ئې دده نوم كيخودو. د عبدالله شمير په اشراف قريش كښې كيدلو. (۱)

**ابراهيم بن عبدالرحمان:** د ابراهيم بن عبدالرحمان په بخاري شريف كښې صرف دا يو حديث دې. (۲)

دا د ام كلثوم بنت ابوبكر صديق رضي الله عنها خوئې دې. عائشه صديقه رضي الله عنها دده ترور ده.

دې د جابر بن عبدالله، عائشه صديقه رضي الله عنها او د خپل نيكه عبدالله بن ابى ربيعه رضي الله عنه نه روايت نقل كوى. (۳)

اګر چې ابن القطان (يعنى بن سعيد) ددوئ باره كښې اووئيل چې (**لايعرف له حال**) (۴)

ليكن نورو ائمه د جرح وتعديل دوئ ته ثقه وائى، ابن خلفون فرمائى چې (**هو ثقه مشهور**) او په حاكم كښې ئې ددوئ د حديث تصحيح كړې ده. (۵)

ابن حبان په كتاب الثقات كښې ددوئ ذكر كړې دې. (۶)

امام بخاري رحمه الله په تاريخ كبير كښې دد تذكره كړې ده. (۷)

**قوله:** وَكَانَ يُسْلِفُنِي فِي تَمْرِي إِلَى الْجِدَادِ: هغه يهودى به په دې وعده چې دكهجورو شوكلو باندې ئې ادا كوى، ماته ئې قرض راكړې وو.

(**جداد**) د جيم په كسره او فتحه دواړه رنګ وئيلې كيږى، شوكول ته وائى. يعنى د كهجورو شوكولو زمانې پورې ئې ماته قرض راكړې وو.

په دې باندې اشكال كيږى چې (**سلف الى الجداد**) د شولووخته پورې قرض وركول، د امام بخاري رحمه الله په نيز دا جائز نه دى. (۸)

دويم اشكال دادې چې نورو ثقه راويانو داقصه نقل كړې ده، په هغې كښې دى چې قرض په جابر رضي الله عنه باندې نه وو بلكه دهغه په والد باندې وو، او دلته دى چې قرض په جابر رضي الله عنه باندې وو، نودا حديث پاك شاذ دې. ځكه چې د شاذ تعريف دې چې (**ما رواه الثقه مخالفا لما رواه احفظ منه واضبط**) (۹)

---

(۱) الاستيعاب لابن عبدالبر:۳/۸۹۶، والتجريد للذهبي:۱/۳۱۰).
(۲) فتح الباري :۹/۷۰۸ عمدة القاري:۲۱/۶۹)
(۳) اوګورئى تهذيب الكمال:۲/۱۳۳، رقم الترجمه:۲۰۲).
(۴) تهذيب الكمال:۲/۱۳٤).
(۵) تعليقات تهذيب الكمال للدكتور بشار عواد:۲/۱۳٤).
(۶) كتاب الثقات لابن حبان:٤/۱۰، اول كتاب التابعين).
(۷) تاريخ البخاري الكبير:۱/۲۹۶، ۲۶۷، اوګورئى الجرح والتعديل لابن ابى حاتم: ۱/۱۱۱، والجمع لابن القيسرانى:۱/۲۰).
(۸) فتح الباري :۹/۷۰۸)
(۹) (ظفر الامانى بشرح السيد الشريف الجرجانى: ۲/۳۶۹، وعلوم الحديث لابن الصلاح النوع الثالث معرفة الشاذ: ۷۶ - ۷۹، وتيسير مصطلح الحديث :۱۱۶، الشاذ والمحفوظ.)

د ړومبی اشکال جواب دادې چې سلف الی الجذاذ هغه وخت کښې جائز نه دې کله چې عقد بیع کښې وخت متعین شوې نه وی، لیکن که وخت متعین شوې وی، نو په دې صورت کښې جائز دی، دلته داختصار په وجه صرف سلف الی الجذاذ ذکر دې، ګنی اصل عقد کښې وخت متعین وو. (۱)

د دویم اشکال جواب دادې چې دشنذوذ تعدد واقعې په وجه لرې کیدیشی یعنی ډیر ممکن دی چې قرض دجابر رضي الله عنه په پلار هم وو او جابر رضي الله عنه باندې هم، نورو ثقه راویانو د جابر رضي الله عنه دپلار قصه ذکر کړې ده او روایت باب کښې پخپله د جابر رضي الله عنه دقرض واقعه ذکر شوې ده، نو داشان داحدیث پاك د تعدد واقعات په وجه شاذ نه دی، شاذ به هلته وې چې واقعه یو وه او یو ثقه راوی ددې په بیان کښې دخپل نه زیات ثقه راویانو نه مخالفت کړې وی، دلته داسې نه دی. (۲)

**قوله: فَجَلَسَتْ، فَخَلاَ عَامًا:** ددې جملې شراح حدیث مختلف تشریحات کړی دی.

① ابو مروان ابن سراج فرمائی چې (جَلَسْتُ) د مفرد متکلم صیغه ده، جابر رضي الله عنه فرمائی چې څه کیناستم یعنی دقرض د اداکولو نه څه روستو شوم، او (خلی) یا باب تفعیل نه د (تخلیة) نه دې، په معنی د (تاخر) په دې کښې ضمیر فاعل (سلف) په معنی د قرض طرفته راجع کول دی، (ای تاخر السلف عاما) یعنی هغه قرض یو کال پورې مؤخر شو یا (خلا) مجرد کښې د (خلو) هم ددې تاخر په معنی کښې ده. (۳)

② دویم مطلب ددې دا بیان شوېدې چې دا لفظ (جَلَسَتْ) دې، د مفرد مؤنث غائب صیغه ده، او د ضمیر فاعل (ارض) طرفته راجع دې او مخکښې لفظ (فخلا) نه بلکه (نخلا) دې او صحیح عبارت دې (فَجَلَسَتْ، فَخَلاَ عَامًا.... ای تاخرت الارض عن الاثمار من جهة النخل) یعنی زمکه د کهجورې فصل ورکولو نه یو کال پورې کیناستله، روایت کښې دی چې (نخلا) کښې تصحیف اوکړې شو او دا (فخلا) کړې شو. (۴)

③ د اصیلی په روایت کښې دی چې د (جلست) په ځائې (حبست) په معنی د منع کولو ده، او د ابونعیم په روایت کښې دی چې (خنست) په معنی د (تاخرت) دې (۵) په دې دواړو صورتونو کښې معنی واضح ده.

---

(۱) (فتح الباری :۹/۷۰۸، وعمدة القاری :۲۱/۶۹).

(۲) عمدة القاری:۲۱/، فتح الباری :۹/).

(۳) فتح الباری :۹/۷۰۹).

(۴) فتح الباری :۹/۷۰۹، عمدة القاری:۲۱/۶۹).

(۵) فتح الباری :۹/۷۰۹، عمدة القاری:۲۱/۶۹).

④ د اسماعیلی په روایت کښې دی چې د ا پوره جمله داشان ده چې (فخنست علی عاما) یعنی هغه زمکه په مابانډې یو کال مؤخره شوه (علی) کښې تصحیف کړې شوې دې. چا دا (فخلی) جوړ کړې دې. او چا (نخلا) جوړ کړې دې. (۱)

⑤ د کشمهینی رحمه الله روایت کښې دی چې دا (فخاست) دې، چې ددې معنی خلاف ورزوی کوؤنکې ده. (ای خالفت الارض معهودها وحملها) (۲)

**قوله**: وَلَمْ أَجُدَّ مِنْهَا شَيْئًا: (لَمْ أَجُدَّ) دهمزه په فتحه او د جیم ضمه او دال په تشدید سره، د باب نصر نه د واحد متکلم صیغه ده، (جدا لشئ...... جدا وجداد) شول کول. (فهو مجدود) دحضرت جابر رضی الله عنه مطلب دا وو چې تر اوسه ما په باغ کښې هیڅ نه وو شوکولې.

**قوله**: أَيْنَ عَرِيشُكَ: (العريش، المكان الذى اتخذنه فى البستان لستطيل به و تقيل فيه) (۳) په باغ کښې د ارام دپاره چې کوم چپر یا جونګړه جوړولې شی هغې ته عریش وائی.

**قوله**: ثُمَّ قَالَ «يَا جَابِرُ جُدَّ: (جد) د (جداد) نه دې، یعنی ائې جابر رضی الله عنه اوشوکوه، (واقض ای اوف) یعنې قرض ادا کړه.

**قوله**: فَقَالَ «أَشْهَدُ أَنِّي رَسُولُ اللَّهِ: دې کښې چونکه د خرق عادت په طور ډیر کم خیزونه په طور د معجزې کافی شو ددې وجې نبی کریم صلی الله علیه وسلم دا جمله اوفرمائیله.
د باب آخر کښې د ابن عباس رضی الله عنه تعلیق په کتاب التفسیر کښې موصولا تیر شوې دې. (۴)

## ۴۲- باب أَكْلِ الْجُمَّارِ

[۵۱۲۹] حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِي مُجَاهِدٌ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ - رضى الله عنهما - قَالَ بَيْنَا نَحْنُ عِنْدَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - جُلُوسٌ إِذْ أُتِيَ بِجُمَّارِ نَخْلَةٍ فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «إِنَّ مِنَ الشَّجَرِ لَمَا بَرَكَتُهُ كَبَرَكَةِ الْمُسْلِمِ». فَظَنَنْتُ أَنَّهُ يَعْنِي النَّخْلَةَ، فَأَرَدْتُ أَنْ أَقُولَ هِيَ النَّخْلَةُ يَا رَسُولَ اللَّهِ. ثُمَّ الْتَفَتُّ فَإِذَا أَنَا عَاشِرُ عَشَرَةٍ أَنَا أَحْدَثُهُمْ فَسَكَتُّ، فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «هِيَ النَّخْلَةُ». [ر: ۶۱]

امام بخاری رحمه الله مقصد جمار یعنی دکهجورې د ګابهې جواز خودلې دی چې داخوړل جائز

(۱) فتح الباری :۷۰۹/۹ عمدة القاری:۶۹/۲۱).
(۲) فتح الباری :۷۰۹/۹ عمدة القاری:۶۹/۲۱).
(۳) فتح الباری :۷۰۹/۹).
(۴) کشف الباری :(کتاب التفسیر):۲۰۲).

دی، په روایت باندې تفصیلی کلام په کتاب العلم کښې تیر شوې دې. [1]

## ۴۱-باب العَجْوَةِ. [2]

[۵۱۳۰] حَدَّثَنَا جُمُعَةُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا مَرْوَانُ أَخْبَرَنَا هَاشِمُ بْنُ هَاشِمٍ أَخْبَرَنَا عَامِرُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «مَنْ تَصَبَّحَ كُلَّ يَوْمٍ سَبْعَ تَمَرَاتٍ عَجْوَةً لَمْ يَضُرَّهُ فِي ذَلِكَ الْيَوْمِ سُمٌّ وَلاَ سِحْرٌ». [۵۴۳۵، ۵۴۳۶، ۵۴۴۳]

**قوله: عجوة:** د مدینې منورې یو خاص قسم مشهورې کهجورې دی، کتاب الطب کښې ددې تفصیل رازی.

حدیث پاک کښې نبی کریم ﷺ ددې فضیلت بیان کړېدې چې سړې که د سحر په وخت کښې اووهٔ عجوه کهجورې اوخوری نو په دغه ورځ به ده ته زهر نقصان نه اورسوی اونه به ورته جادو.

**قوله: جمعه بن عبدالله:** حدیث پاك امام بخاری رحمه الله په رومبی خل ذکر کړې دې، په دې کښې امام بخاری رحمه الله شیخ جمعه بن عبدالله بلخی دې، د جمعه د جیم په ضمه او د میم په سکون سره دې. ځینو وئیلی دی چې دده نوم یحیی دې، جمعه ددهٔ لقب دې. [3]

ابن حبان په کتاب الثقات کښې ددې ذکر کړېدې، او دوئ ته ئې مستیقم الحدیث وئیلی دی. [4]

دوئ په کال ۲۳۳ هجرئی کښې وفات شو. [5]

(وماله فی البخاری بل ولافی الکتب الستة سوی هذا الحدیث) [6]

## ۴۲-باب القِرَانِ فِى التَّمْرِ

د دوؤ کهجورو په یو ځائې خوړلو کښې اختلاف دې.

دظاهر یه په نیز دوه کهجورې یو ځائې خوړل جائز نه دی. [7]

---

[1]) کشف الباری :(کتاب التفسیر)

[2]) (۵۱۳۰) الحدیث اخرجه البخاری ایضا فی کتاب الطب باب الدواء بالعجوه للسحر رقم الحدیث:۶۵۳۵. وفی باب ما یذکر فی اسم النبی ﷺ :رقم الحدیث :۵۴۴۳. واخرجه مسلم فی کتاب الاطعمة: باب فضل تمر المدینة رقم الحدیث:۲۰۴۷. اخرجه ابوداؤد فی کتاب الطب باب فی تمر العجوة :۴/فتح الباری:۹/رقم الحدیث:۳۸۷۶).

[3]) تهذیب الاکمال :۵/۱۲۰. رقم الترجمة:۹۶۲).

[4]) کتاب الثقات لابن حبان:۸/۱۶۵).

[5]) تهذیب الکمال :۵/۱۲۱. تهذیب الکمال :۲/۱۱۱، ۱/رقم الترجمة:۱۰۹۰).

[6]) فتح الباری :۹/۷۱۱).

[7]) شرح مسلم للنووی:۲/۱۸۱).

جمهور وائي چې دا مکروه دی. (۱)
امام نووی رحمه الله فرمائی چې په دې کښې تفصیل دې. که کهجورې د ډیرو سړو په مینځ کښې مشترك وی او یو ځائې خوراك دپاره ناست وی نو دهغوئ د اجازت نه بغیر دوه یو ځائې خوړل جائز نه دی. البته دا جازت په صورت کښې هیڅ باك نشته دې. که صراحتا اجازت ملاؤ شی او یا دلالة، چونکه پهدې کښې دټولو برابر حق دې، اوس که څوك دوه دوه خوری نو د نورو په مقابله کښې به زیات وصول کوونکې وی، چې دهغې د اجازت نه بغیر دې مستحق نه دې. (۲)
البته که مشترك کهجورې نه وی، ذاتی دی نو ددې نه دخپلې خوښې اخستلې شی او خوړلې شی، خو په دې کښې ذکر شوې علت نشته دې.
عائشه صدیقه رضی الله عنها او جابر رضی الله عنه نه منقول دی چې دوه کهجورې یو ځائې کول او خوړل ددې وجې مکروه دی چې په دې کښې د حرص د هوس شائبه موندې شی. (۳)
عائشه صدیقه رضی الله عنها او جابر نه منقول دی چې دوه دوه کهجورې یو ځائې خوړل ځکه مکروه دی چی په دې کښې د حرص وهوس شائبه موند شی. (۴)
د امام محمد رحمه الله او دنورو ډیرو عالمانو رائې ذاده چې د اسلام په شروع کښې د قران فی التمر منع کړې شوې وه، دې نه پس ددې اجازت ورکړې شو. (۵)
بریده رضی الله عنه ته یو مرفوع روایت هم په مسند بزار کښې دې دوئ اوفرمائیل چې (کنت نهيتكم عن القران فی التمر وان الله وسع عليكم فاقرنوا) (۶) ما تاسو مخکښې د قران فی التمر نه منع کړې وی. ددې وجې چې عسرت او قتلت زمانه وه، او الله جل جلاله وسعت راوستو، ددې وجې اوس په دې کښې هیڅ حرج نشته دې.

[۵۱۳۱] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا جَبَلَةُ بْنُ سُحَيْمٍ قَالَ أَصَابَنَا عَامُ سَنَةٍ مَعَ ابْنِ الزُّبَيْرِ فَرَزَقَنَا تَمْرًا، فَكَانَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ يَمُرُّ بِنَا وَنَحْنُ نَأْكُلُ وَيَقُولُ لاَ تُقَارِنُوا فَإِنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - نَهَى عَنِ الْقِرَانِ. ثُمَّ يَقُولُ إِلاَّ أَنْ يَسْتَأْذِنَ الرَّجُلُ أَخَاهُ. قَالَ شُعْبَةُ الإِذْنُ مِنْ قَوْلِ ابْنِ عُمَرَ. [ر: ۲۳۲۳]

جبله بن سحیم د کوفی اوسیدونکې دې او تابعی دې، بخاری شریف کښې ددوئ روایتونه صرف د عبدالله بن عمر رضی الله عنه نه دی، فرمائی چې مونږ د عبدالله بن زبیر رضی الله عنه په زمانه کښې قحط کښې اخته شو، هغوئ مونږ ته کهجورې راکړې، هغه مونږ سره تیریدو او مونږ

---

(۱) شرح مسلم للنووی:۱۸۱/۲،باب نهی الاکل مع جماعة عن قران تمرتین ونحوهما فی لقمة الا باذن اصحابه)
(۲) شرح مسلم للنووی:۱۸۱/۲).
(۳) فتح الباری :۸۱٤/۹، باب القران فی التمر).
(٤) (فتح الباری: ۷۱٤/۹ باب القران فی التمر)
(۵) مرقات شرح مشکوة کتاب الاطعمة:۱۷۳/۸).
(۶) فتح الباری :۹/ ۷۰٤)

كهجورې خوړلې. نو وې فرمائيل چې دوه كهجورې په يو ځائې مه خورئې ځكه چې نبي كريم ﷺ ددې نه منع فرمائيلې ده. بيا فرمائي چې مگر دا چې سرې د خپل رور نه اجازت واخلي. نو په دې صورت كښې دوه يو ځائې خوړلې شي.

**قوله**: قال شعبة: الاذن من قول ابن عمر: دا تعليق نه دې بلكه ماقبل سند سره متصل دې. شعبة فرمائي چې «الا ان يستاذن الرجل اخاه» دحديث پاك مرفوع حصه نه ده بلكه داد عبدالله رضي الله عنه قول دې، نوخطيب ددې روايت تخريج كړې دې، په دې كښې تصريح ده چې «وقال ابن عمر الاذن ان يستاذن الرجل اخاه» (١)

ليكن حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چې د شعبه په اصحابو كښې ځينې دې لره مرفوع كوي، ځينې دا په تردد سره نقل كوي چې دا مرفوع دې يا موقوف دې او ځينو جزم سره وئيلي دي دا موقوف دې يعني شعبة نه روايت كوؤنكو كښې تعارض دې.

نورو تابعينو كښې سفيان رحمه الله، ابن اسحاق رحمه الله، شيباني رحمه الله، مسعر رحمه الله او زيد بن ابي انيسه رحمه الله دا روايت نقل كړې دې.

د سفيان ثوري روايت په كتاب الشركة كښې تير شوې دې، ددې الفاظ دي چې «نهى ان يقرن الرجل بين التمرتين جميعا يستاذن اصحابه» (٢)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چې «وهذا ظاهره الرفع مع احتمال الادراج» (٣)

د شيباني رحمه الله روايت ابوداؤد نقل كړې دې چې «نهى عن الاقران الا ان تستاذن اصحابه» (٤) دا هم ظاهرا مرفوع دې ليكن ادراج احتمال په دې كښې هم دې.

د زيد بن ابي انيسه روايت ابن ابي حبان نقل كړې دې، ددې الفاظ دې چې «من اكل مع قوم من تمر فلا يقرن فان اراد ان يفعل ذالك فليستاذنهم فان اذنوا فليفعل» (٥)

ددې وجې حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چې «فالذى ترجح عندى ان لا ادراج» يعني د ټولو روايتونو مخكښې ايخودو نه پس دا معلوميږي چې اذن قول دحديث مرفوع حصه ده، موقوف نه. (٦)

## ٤٣- باب بِالْقِثَّاءِ.

[٥١٣٢] حَدَّثَنِي إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ

---

(١) فتح الباري: ٧١٢/٩).
(٢) صحيح بخاري كتاب الشركة باب القران فى التمرتين الشركاء رقم الحديث: ٢٤٩٠).
(٣) فتح الباري: ٧١٢/٩).
(٤) سنن ابوداؤد كتاب الاطعمة باب الاقران فى التمرعندالاكل: رقم الحديث: ٣٦٢/٣ : ٣٨٣٤).
(٥) دا هم ظاهرا مرفوع دې د ادراج احتمال نه بهر حال دا هم خالى نه دې)
(٦) فتح الباري: ٧١٣/٩).

سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ جَعْفَرٍ قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم يَأْكُلُ الرُّطَبَ بِالْقِثَّاءِ. [ر: ٥١٢٤]

د (قثاء) ترجمه بادرنګ او د (خيار) ککړۍ کړې شوې دې ده، د نبي کريم ﷺ عادت مبارک د دواړو په باره کښې دا وو چې نبي کريم ﷺ به رطب يعنى لمدې کهجورو سره به دا يو ځائې اوخوړل ، ځکه چې د بادرنګ تاثير يخ وى، اود کهجورې ګرم، دواړه يو ځائې کول او استعمالول سره اعتدال پيدا کيږى.(بطيخ) خربوزه، به هم نبي کريم ﷺ کهجورې سره خوړله، نو د ابوداؤد په روايت کښې دى چې (کان رسول الله ﷺ ياکل البطيخ بالرطب فيقول يکسر حر هذا ببرد هذا، وبرد هذا بحر هذا) ([1])

## ۴۴- بَاب بَرَكَةِ النَّخْلِ.

[٥١٣٣] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ طَلْحَةَ عَنْ زُبَيْدٍ عَنْ مُجَاهِدٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم قَالَ مِنَ الشَّجَرِ شَجَرَةٌ تَكُونُ مِثْلَ الْمُسْلِمِ، وَهِيَ النَّخْلَةُ [ر: ٦١]

په دې کښې څه شك نشته دې چې د کهجورې ونه ډيره برکتناکه وى، ددې ګټکی ماتولو نه پس څناورو لره ورکولې شى، ددې دپاڼړو پکۍ جوړيږى، ددې ښاخونه د چتونو دپاسه خلق استعمالوى، ددې تنا هم په تعمير کښې دستنې او شهتير په ځائې استعماليږى، غرض دا چې هر څيز دې کار آمد دې.

حديث باب باندې تفصيلى بحث په کتاب العلم کښې تير شوې دې. ([2])

## ۴۵- بَاب جَمْعِ اللَّوْنَيْنِ أَوِ الطَّعَامَيْنِ بِمَرَّةٍ.

[٥١٣۴] حَدَّثَنَا ابْنُ مُقَاتِلٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ جَعْفَرٍ - رضى الله عنهما - قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَأْكُلُ الرُّطَبَ بِالْقِثَّاءِ. [ر: ٥١٢٤]

نبي کريم ﷺ بهٔ ترلمدې کهجورې بادرنګ سره خوړلې، ددې نه معلوم شو چې جمع اللونين يا جمع طعامين يعنى دوه مختلف قسمونه ميوې يا خوراك جمع کولې شى

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چې ددې باب نه شائد امام بخارى رحمه الله د انس رضى الله عنه نه مروى دهغه حديث تضعيف طرفته اشاره کړې ده، چې په هغې کښې وارد شوى دى چې د نبي کريم ﷺ په خدمت کښې يو لوښى پيش کړې شو چې په هغې کښې پئ او شهد وو، نو نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چې :(ادمان فى اناء..... لا اکله ولا احرمه) ([3])دوه پخکړى په يو لوښى کښې دى ؟ څه به نه دا اوخوروم او نه به دا حرام ګنړم، په دې روايت کښې چونکه يو

---

[1]) سنن ابوداؤد کتاب الاطعمة فى الجمع بين لونين لى الاکل:۳/۳۶۳ رقم الحديث :۳۸۳۶).

[2]) اوګورئى کشف البارى کتاب العلم)

[3]) فتح البارى :۹/ ۷۱۵).

مجهول راوى دې ددې وجې دا ضعيف دې.

## ٤٦- باب مَنْ أَدْخَلَ الضِّيفَانَ عَشَرَةً عَشَرَةً.

[٥١٣٥] حَدَّثَنَا الصَّلْتُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنِ الْجَعْدِ أَبِي عُثْمَانَ عَنْ أَنَسٍ. وَعَنْ هِشَامٍ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ أَنَسٍ. وَعَنْ سِنَانٍ أَبِي رَبِيعَةَ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ أُمَّ سُلَيْمٍ أُمَّهُ عَمَدَتْ إِلَى مُدٍّ مِنْ شَعِيرٍ، جَشَّتْهُ وَجَعَلَتْ مِنْهُ خَطِيفَةً، وَعَصَرَتْ عُكَّةً عِنْدَهَا، ثُمَّ بَعَثَتْنِي إِلَى النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فَأَتَيْتُهُ وَهُوَ فِي أَصْحَابِهِ فَدَعَوْتُهُ قَالَ «وَمَنْ مَعِي». فَجِئْتُ فَقُلْتُ إِنَّهُ يَقُولُ، وَمَنْ مَعِي، فَخَرَجَ إِلَيْهِ أَبُو طَلْحَةَ قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّمَا هُوَ شَيْءٌ صَنَعَتْهُ أُمُّ سُلَيْمٍ، فَدَخَلَ فَجِيءَ بِهِ وَقَالَ «أَدْخِلْ عَلَيَّ عَشَرَةً». فَدَخَلُوا فَأَكَلُوا حَتَّى شَبِعُوا، ثُمَّ قَالَ «أَدْخِلْ عَلَيَّ عَشَرَةً». فَدَخَلُوا فَأَكَلُوا حَتَّى شَبِعُوا، ثُمَّ قَالَ «أَدْخِلْ عَلَيَّ عَشَرَةً». حَتَّى عَدَّ أَرْبَعِينَ، ثُمَّ أَكَلَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - ثُمَّ قَامَ، فَجَعَلْتُ أَنْظُرُ هَلْ نَقَصَ مِنْهَا شَيْءٌ. [ر: ٤١٢]

د امام بخارى رحمه الله مقصد دادې چې كه ميلمانه كه ډير زيات وى او ځائې تنګ وى نو دوئ لره تقسمولې شى او لړ لړ كينول او دوئ ته خوراك وركولې شى،

ترجمة الباب كښې د (عشرة) قيد احترازى نه دې چونكه حديث كښې ذكر وو چې (ادخل على عشرة ادخل على عشرة) نو ددوئ رعايت سره امام بخارى رحمه الله په ترجمة الباب كښې د (عشرة) قيد لګولې دې، ګنى د موقع او محل اعتبار سره كه ته پنځوس پنځوس كينول غواړې نو هم په دې كښې ځه باك نشته دې، دځائې مطابق ميلمانه كينولې شى.

انس رضي الله عنه فرمائى چې دده مور بى بى ام سليم يو مد اوربشې دليا كړې وى او په دې باندې هغې د خپل لوښى نه غوړى واچول، بيا ئې د نبى كريم صلى الله عليه وسلم پسې اوليږلم، ځه نبى كريم صلى الله عليه وسلم لره راغلم نو په دغه وخت كښې نبى كريم صلى الله عليه وسلم حضرات صحابه كرام رضي الله عنهم سره ناست وو، ما ورته دعوت وركړو، نو نبى كريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چې ماسره كوم ملګرى دى او دا هم لاړ شى؟ ځه واپس راغلم او دا اطلاع مې وركړه چې نبى كريم صلى الله عليه وسلم فرمائى چې آيا هغه خلق ماسره راشى چې ماسره ناست دى؟ نو ابوطلحه د نبى كريم صلى الله عليه وسلم په خدمت كښې حاضر شو او عرض ئې اوكړو چې يارسول الله صلى الله عليه وسلم! چې ځه مو تيار كړى دى هغه كم دى. نبى كريمو صلى الله عليه وسلم تشريف راوړو، هغه خوراك نبى كريم صلى الله عليه وسلم لره راوړې شو، نبى كريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چې لس لس كسان دننه راوبلئ، هغه خلق راغلل او ټولو په مړه خيټه خوراك اوفرمائيلو. تر دې پورې څلويښت كسان شمار كړې شو، بيا نبى كريم صلى الله عليه وسلم خوراك اوفرمائيلو، او اته اودريدل، مادې خوراك ته كتل په دې كښې هيڅ نه وو كم شوى.

**قوله** حبشته اى جعلته جشيشا، والجيش دقيق غيرناعم: يعنى ددې نه ئې دليا جوړه كړه، د (جش) معنى دل كول او نيم كوفته جوړول دى، د (خطيفة) او (عصيدة) يو معنى ده هغه

خوراك چې اوره ګډوډ کړې شی او جوړولې شی، په دې کښې غوړی هم شامولولې شی (١)
ابن بطال رحمه الله فرمائی چې په یو ځائې خوراك کولو کښې برکت دې. امام ابوداؤد رحمه الله په دې سلسله کښې یوروایت هم نقل کړې دې (فاجتمعوا علی طعامکم واذکروا اسم الله یبارك لکم فیه) (٢)

## ٤٧-باب مَا يُكْرَهُ مِنَ الثُّومِ وَالْبُقُولِ.

فِيهِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم

[٥١٣٦] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ قَالَ قِيلَ لأَنَسٍ مَا سَمِعْتَ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم فِي الثُّومِ فَقَالَ «مَنْ أَكَلَ فَلاَ يَقْرَبَنَّ مَسْجِدَنَا». [ر: ٨١٨]

[٥١٣٧] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا أَبُو صَفْوَانَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَعِيدٍ أَخْبَرَنَا يُونُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ حَدَّثَنِي عَطَاءٌ أَنَّ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ -رضي الله عنهما- زَعَمَ عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم قَالَ «مَنْ أَكَلَ ثُومًا أَوْ بَصَلاً فَلْيَعْتَزِلْنَا، أَوْ لِيَعْتَزِلْ مَسْجِدَنَا». [ر: ٨١٦]

امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې ئې هغه سبزیانې مکروه اوګرزولې چې په هغې کښې دننه بوئی وی، لکه اوره، پیاز، مولئ او ګندنا وغیره.
د اورې وغیره متعلق د جمهورو علماء مسلك دادې چې دا مکروه تنزیهی ده. دظاهریو په نیز مکروه تحریمی ده ځکه چې ددې بدبوئی سره فرښتو او خلقو ته تکلیف رسی.
البته حرام نه دی ځکه چې ابوایوب انصاری رضی الله عنه چې کله دا سبزیانې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې پیش کړې نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم دااونه خوړلې، هغوئ تپوس اوکړو چې یارسول الله صلی الله علیه وسلم آیا دا حرام دی څه؟ نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چې حرام نه دی، (لکنی اکرهه من اجل ریحه) ددې دبدبوئی په وجه ځما دانه دی خوښې.
امام ترمذی دې حدیث پاك ته حسن وئیلی دی.
او بل روایت کښې دی چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائی چې (کل فانی اناجی من لاتناجی) (٣)
ددې نه دعامو خلقو حق کښې ددې سبزیانو استعمالولو اباحت معلومیږی لیکن دا اباحت به هله وی چې کله نورو ته تکلیف نه وی.
د بدبوئی په وجه دا خوښ کړې شوی نه دی لیکن چونکه په دې کښې نورې فائدې هم دی، ددې وجې دا پخول او په نورو طریقو سره ددې بوئی ختمول او دا خوړل بهر حال د فائدې نه خالی نه دې نو یو حدیث پاك کښې دی چې (ان کنتم لابدا کلیهما فامیتوهما طبخا) (٤)

---

(١) فتح الباری :٩/٧١٧)
(٢) فتح الباری :٩/٧١٧)
(٣) اوګورئی سنن الترمذی کتاب الاطعمة باب ماجاء فی کراهیة اکل الثوم والبصل: ٢٦١/٤،رقم الحدیث :١٨٠٧).
(٤) اوګورئی سنن ابو داؤد کتاب الاطعمة باب اکل الثوم : ٢٦١/٤،رقم الحدیث:٣٧٢٧، ٣٢١/٣).

البته د نبی کریم ﷺ په حق کښې د دې استعمال د ځينې عالمانو په نيز حرام وو او د ځينو په نيز مکروه وو. (۱)

روايت باب کښې دی چې کوم سړې اوږه يا پياز اوخوري، نو هغه دې زمونږ نه بيل وی يا ئې اوفرمائيل چې هغه دې زمونږ د مسجد نه بيل وی، د (مسجدنا) نه مطلقا مساجد مراد دی، د مسجد نبوی ﷺ تخصيص نشته دې، نو ځينو روايتونو کښې (فلا يقربن المساجد) الفاظ راغلی دی، ددې وجې دا حکم ټولو مسجدونو لره شامل دې. (۲)

## ۴۸- باب الْكَبَاثِ، وَهُوَ ثَمَرُ الأَرَاكِ.

[۵۱۳۸] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عُفَيْرٍ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ عَنْ يُونُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبُو سَلَمَةَ قَالَ أَخْبَرَنِي جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - بِمَرِّ الظَّهْرَانِ نَجْنِي الْكَبَاثَ فَقَالَ «عَلَيْكُمْ بِالأَسْوَدِ مِنْهُ، فَإِنَّهُ أَيْطَبُ». فَقَالَ أَكُنْتَ تَرْعَى الْغَنَمَ قَالَ «نَعَمْ، وَهَلْ مِنْ نَبِيٍّ إِلاَّ رَعَاهَا». [ر: ۳۲۲۵]

ځينو نسخو کښې د (کباث) تشريح ورق والا سره کړې شوې ده. دا سهوه ده، د پيلو ونې ته (کباث) نه وائی، بلکه د پيلو ميوې ته کباث وائی.

جابر ﷺ فرمائی چې مونږ نبی کريم ﷺ سره مقام مرالظهران کښې وو، مونږ د پيلو د ونې ميوې شوکولې، نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې د تور رنګ والا اوشوکوئی، ځکه چې هغه ښه وی، نبی کريم ﷺ نه تپوس اوکړې شو چې آيا نبی کريم ﷺ چيلئ څرولې دی څه؟ ځکه چې دا چيلو څرولو والا عموما پيژنی، نبی کريم اوفرمائيل چې آو يو نبی کريم ﷺ به هم داسې نه وی تير شوی چې هغه چيلئ څروليې نه وی.

(ايطب: اطيب) معنی ده او ددې مقلوب دې لکه جذب، جبذ.

## ۴۹- باب الْمَضْمَضَةِ بَعْدَ الطَّعَامِ.

[۵۱۳۹] حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ سَمِعْتُ يَحْيَى بْنَ سَعِيدٍ عَنْ بُشَيْرِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ سُوَيْدِ بْنِ النُّعْمَانِ قَالَ:

خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - إِلَى خَيْبَرَ، فَلَمَّا كُنَّا بِالصَّهْبَاءِ دَعَا بِطَعَامٍ فَمَا أُتِيَ إِلاَّ بِسَوِيقٍ، فَأَكَلْنَا فَقَامَ إِلَى الصَّلاَةِ، فَتَمَضْمَضَ وَمَضْمَضْنَا.

قَالَ يَحْيَى سَمِعْتُ بُشَيْرًا يَقُولُ حَدَّثَنَا سُوَيْدٌ: خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - إِلَى خَيْبَرَ، فَلَمَّا كُنَّا بِالصَّهْبَاءِ - قَالَ يَحْيَى وَهْيَ مِنْ خَيْبَرَ عَلَى رَوْحَةٍ - دَعَا بِطَعَامٍ فَمَا أُتِيَ إِلاَّ

---

[۱] فتح الباری :۹/۳۱۸).

[۲] فتح الباری :۹/۳۱۸)

بِسَوِيقٍ، فَلُكْنَاهُ فَأَكَلْنَا مَعَهُ، ثُمَّ دَعَا بِمَاءٍ فَمَضْمَضَ وَمَضْمَضْنَا مَعَهُ، ثُمَّ صَلَّى بِنَا الْمَغْرِبَ وَلَمْ يَتَوَضَّأْ. وَقَالَ سُفْيَانُ كَأَنَّكَ تَسْمَعُهُ مِنْ يَحْيَى. [ر: ٢٠٦]

خوراك كولو نه پس خوله كنبې اوبه اچول، يعنى خوله ګنګالول، مستحب دى چونكه په غاښونو او اورو وغيره كنبې د خوراك خنښوكى پاتې شى نو ددې وجې خوله كنبې اوبه اچول او خوله صفا كول پكار دى.

د باب دواړو روايتونو كنبې د مضمضمه ذكر دې.

**قوله**: وَقَالَ سُفْيَانُ كَأَنَّكَ تَسْمَعُهُ مِنْ يَحْيَى: سفيان رحمه الله خپل شاګرد على بن عبدالله ته اوفرمائيل چې ته دا حديث څما نه اؤرې، دا داسې اوګڼړه چې ته دا څما نه نه اؤرې، بلكه څما استاد د يحيى بن سعيد انصارى نه آؤرې، يعنى دا ما ته دومره ياد دې چې لفظ بلفظ ئې بيا نوم لكه څنګه چې ما د يحيى نه آؤريدلې وو، دا اوګڼړه چې ګويا ته ئې د يحيى بن سعيد نه آؤرې.

## ٥٢- باب لَعْقِ الأَصَابِعِ وَمَصِّهَا قَبْلَ أَنْ تُمْسَحَ بِالْمِنْدِيلِ.

[٥١٤٠] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ عَنْ عَطَاءٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ: «إِذَا أَكَلَ أَحَدُكُمْ فَلاَ يَمْسَحْ يَدَهُ حَتَّى يَلْعَقَهَا أَوْ يُلْعِقَهَا».

د خوراك كولو نه پس لاسونه په رومال وغيره سره اوچولو نه مخكنبې هغه دې اوڅټلې شى، او دې نه پس دې بيا لاسونه اوچ كړې شى، نو رومال به زيات نه ګنده كيږى، امام بخارى رحمه الله په ترجمة الباب كنبې (مسح بالمنديل) سره غالبا دې روايت طرفته اشاره كړې ده چې كوم امام مسلم رحمه الله ذكر فرمائيلې دې، په هغې كنبې دى چې (فلا يمسح يده بالمنديل حتى يلعق اصابعه) (١) يعنى ګوتې دې رومال سره اوچولو نه مخكنبې اوڅټلې شى.

**په څو ګوتو خوراک کول پکا ردی**: (فلا يمسح يده.....)، (يد) پورا لاس نه بلكه دې نه ګوتې مراد دى. څكه چې د مسلم شريف په روايت كنبې دى چې (ان رسول الله ﷺ كان ياكل بثلاث اصابع فاذا فرغ لعقها) (٢) يعنى نبى كريم ﷺ به په دريو ګوتو سره خوراك كولو او د فارغيدو نه پس به ئېې ګوتې څټلې.

طبرانى د كعب بن عجره نه روايت نقل كړېدې چې په هغې كنبې د دريو ګوتو تفصيل دې، هغه فرمائى چې (رايت رسول الله ﷺ ياكل باصابعه الثلاث بالابهام، والتى تليها والوسطى ويلعق الوسطى ثم التى تليها ثم الابهام) يعنى كتبه ګوته د شهادت ګوته، او مينځنئ ګوته.. دې دريو

(١) صحيح مسلم كتاب الاطعمة باب استحباب لعق الاصابع: ١٦٠٦/٣، رقم الحديث: ٢٠٣٣).
(٢) صحيح البخارى كتاب الاطعمة باب استحباب لعق الاصابع: ١٦٠٦/٣، رقم الحديث: ٢٠٣٣).

وارو ګوتو سره به ئې خوراك كولواو د ټولو نه مخكښې مينځئ ګوته، بيا د شهادت ګوته او په آخر كښې به ئې مته ګوته څټله.

ددې نه هم دا خبره معلومه شوه چې دريو ګوتو سره خوراك كول مستحب دى، اګر چې په پنځو ګوتو سره خوراك جائز دې، او د ابن شهاب زهرى رحمه الله په يو مرسل روايت كښې د نبى كريم ﷺ نه هم ثابت دى په هغې كښې دى چې «ان النبى ﷺ كان اذا اكل اكل بخمس» [1]

قاضى عياض رحمه الله فرمائى چې د دريو ګوتو نه زياتو ګوتو سره خوراك كولو دپاره استعمالولو كښې يو د حرص او هوس شائبه داده چې ضرورت دريو ګوتو سره پوره كيږى او كه خوراك داشان وى چې په دريو ګوتو سره نمړئى نه صحيح جوړيږى نو بيا څلورمه او پنځمه ګوته دې سره بلاكراهت استعمالولې شى. [2]

**قوله**: حَتّٰى يَلْعَقَهَا أَوْ يُلْعِقَهَا: تر دې پورې چې خپله ئې اوڅټى او يا ئې بل اوڅټى. ړومبئ مجرد باب سمع دې، په معنى د څټلو او دويم باب د افعال نه دې په معنى د بل باندې څټل.

**د ګوتو په څټلو كښې مصلحتونه**: دګوتو په څټلو كښې درې علتونه يا مصلحتونه بيان شوى دى. ① يو دا چې د څټلو نه پس رومال وغيره زيات ګنده نشى اوتلويت به هم نه وى.

② دويم علت د مسلم شريف يو روايت بيان كړې شوې دې «اذا سقطت لقمة احدكم فليمط ما اصابها من اذى وليأكلها ولا يدعها للشيطان ولا يمسح يده بالمنديل حتى يلعقها او يلعقها فانه لا يدرى فى اى طعامه البركة» [3]

او د طبرانى د روايت الفاظ دى چې «فانه لا يدرى فى اى طعامه يبارك له» [4]

د بركت اصلى معنى زياتې دې، دلته ددې نه مراد څه دې؟ امام نووى رحمه الله فرمائى چې «والمراد بالبركة ما تحصل به التغذية وتسلم عاقبته من الاذى ويقوى على الطاعة» [5]

③ قاضى عياض رحمه الله په يو دريم روايت كښې بيان فرمائى چې هغوئ فرمائى چې ددې حكم په دې وجه وركړې شوچې دطعام اوغذا قليل مقدارهم سپك اوحقيراونه ګڼړلې شى. [6]

البته بل باندې څټلو كښې ددې خبرې اهتمام دې وى چې په چا باندې ګوتې څټې چې هغه كراهت اوكركه نه محسوسوى، لكه ښځه، خادم، بچې وغيره. [7]

---

[1] مجمع الزوائد :۲۸/۳، وطبقات ابن سعد:۳۸۱/۱).
[2] فتح البارى :۷۲۱/۹)
[3] صحيح مسلم كتاب الاطعمة باب استحباب لعق الاصابع:۱۶۰۶/۳، رقم الحديث: ۲۰۳۳).
[4] فتح البارى :۹/ ۷۲۲).
[5] شرح مسلم للنووى كتاب الاطعمة باب استحباب لعق الاصابع:۱۷۵/۲)
[6] فتح البارى :۷۲۲/۹)
[7] فتح البارى :۷۲۲/۹)

ځینو خلقو اعتراض کړې دې چې ګوتې څټل څه خوښ عمل نه دې، علامه خطابی رحمه الله ددې اعتراض او ددې جواب ذکر کوی او فرمائی چې:

(عاب قوم افسد عقلهم الترفه فزعموا ان لعق الاصابع مستقبح كانهم لم يعلموا ان الطعام الذی علق بالاصابع اوالصحفة جزء من اجزاء ما اكلوه واذا لم يكن سائر اجزائه مستقذرا لم يكن الجزء اليسير بالاصابع منه مستقذرا وليس فی ذلك اكبر من مصه اصابعه بباطن شفتيه ولا يشك عاقل فی ان لا باس بذالك فقد يمضمض الانسان فيدخل اصبعه فی فيه فيدلك اسنانه و باطن فمه ثم لم يقل احمد ان ذالك قذارة او سوء ادب)[1]

حدیث باب نه یو دا خبره هم معلوم شوه چې خوراك كولو نه پس لاس اوچول مستحب دی. قاضی عیاض رحمه الله فرمائی چې دا په هغه وخت کښې دی چې کله د لاسونو د وینځلو ضرورت نه وی، لکه لاسونو ته څه غوړوالې وغیره نه دې لګیدلې، لیکن که په لاسونو باندې غوړوالې وی او صرف لاسونه اوچولو سره هغه نه زائل کیږی نو داسې صورت کښې لاسونه وینځل پکار دی.[2]

**لاسونه د خوراک نه مخکښې او روستو وینځل پکار دی:** امام ابوداؤد رحمه الله په صحیح سند سره یو روایت نقل فرمائی چې (من نام و فی يده غمر ولم يغسله فاصابه شئ فلا يلومن الا نفسه)[3] یعنی د شپې یو سړې په دې حالت کښې اوده شی چې دده په لاس کښې څه غوړوالې او څه بوئی وی او په دې باندې څه زهریله خیز ورشی. یعنی څه چینجې وغیره او چیچې نو بس هغه دې خپل ځان ملامت کړی او دا دې د خپل غفلت نتیجه اوګڼړی.

امام ترمذی رحمه الله د سلمان فارسی رضی الله عنه یو روایت نقل کړې دې چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائی چې (بركة الطعام الوضوء قبله والوضوء بعده)[4] یعنی د خوراك نه مخکښې او خوراك نه پس لاسونه او خوله وینځل دبرکت باعث دی، په دې حدیث پاك کښې د اودس نه مراد وضوء نه دې کوم چې مونځ دپاره کولې شی، بلکه لاسونه وینځل او خوله وینځل مراد دی.

سفیان ثوری رحمه الله دخوراك نه مخکښې لاسونه وینځلو ته مکروه وائی، امام ابو داؤد دا ضعیف ګڼړلې دې.[5]

## ۵۳- باب المِنْدِیلِ

[۵۱۴۱] [6] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ قَالَ حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ فُلَيْحٍ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي عَنْ

---

[1] فتح الباری :۷۲۲/۹)
[2] فتح الباری :۷۲۲/۹)
[3] (سنن ابی داؤد کتاب الاطعمة باب فی غسل الیدین من الطعام رقم الحدیث:۳۸۵۲، ۳۶۶/۳)
[4] فتح الباری :۷۲۲/۹)
[5] سنن الترمذی کتاب الاطعمة باب ماجاء فی الوضوء قبل الطعام وبعده رقم الحدیث :۴۶، ۱، ۳۸۲/۴).
[6] (الحدیث اخرجه ابن ماجه کتاب الاطعمة باب مسح الید بعد الطعام:۱۰۹۲/۲، رقم الحدیث:۳۲۸۲)

سَعِيدِ بْنِ الْحَارِثِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ رضى الله عنهما أَنَّهُ سَأَلَهُ عَنِ الْوُضُوءِ مِمَّا مَسَّتِ النَّارُ، فَقَالَ لاَ قَدْ كُنَّا زَمَانَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - لاَ نَجِدُ مِثْلَ ذَلِكَ مِنَ الطَّعَامِ إِلاَّ قَلِيلاً، فَإِذَا نَحْنُ وَجَدْنَاهُ لَمْ يَكُنْ لَنَا مَنَادِيلُ، إِلاَّ أَكُفَّنَا وَسَوَاعِدَنَا وَأَقْدَامَنَا، ثُمَّ نُصَلِّي وَلاَ نَتَوَضَّأُ.

امام بخارى رحمه الله په دي باب كښې د خوراك كولو نه پس رومال سره لاسونه داوچولو جواز ثابت كړې دې، جابر رضي الله عنه فرمائى چې اور باندې پخ شوې خوراك مونږ ته د نبى كريم ﷺ په زمانه كښې ډير كم نصيب شوې وو او كله چې به مونږ ته دا قسمه خوراك ملاؤ شو نو مونږ سره د لاسونو، پښو او تلو نه سوا رومالونه نه وو. يعنى مونږ خلقو به خپل لاسونه د بدن په دې حصو باندې اوچول، بيا به مونږ مونځ كولو او دخوراك كولو په وجه به مونږ اودس نه كولو ځكه چې ما مست النار ناقض وضو نه دې.

ددې حديث پاك د مفهوم نه معلوميږى چې امام بخارى رحمه الله په ترجمة الباب كښې ثابت كړې دى چې مونږ سره رومال نه وو، ددې وجې قدمونه او لاسونو وغيره سره به مو لاسونه اوچول، ددې مفهوم دا راؤزى كه رومال مونږ سره وې نو مونږ به پددې باندې لاسونه اوچول.

امام قفال په (محاسن الشريعة) كښې ليكلى دى چې منديل يعنى رومال نه هغه رومال مراد دې چې اودس يا غسل نه پس استعماليږى بلكه هغه توليه هم مراد ده چې خوراك كولو نه پس چې دلاسونو لوندوالئ اوغوړوالئ وغيره د صفا كولو دپاره استعماليږى. (١)

## ٥٢- باب مَا يَقُولُ إِذَا فَرَغَ مِنْ طَعَامِهِ.

[٥١٤٢] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ ثَوْرٍ عَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - كَانَ إِذَا رَفَعَ مَائِدَتَهُ قَالَ « الْحَمْدُ لِلَّهِ كَثِيرًا طَيِّبًا مُبَارَكًا فِيهِ، غَيْرَ مَكْفِيٍّ، وَلاَ مُوَدَّعٍ وَلاَ مُسْتَغْنًى عَنْهُ، رَبَّنَا ».

[٥١٤٣] حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ عَنْ ثَوْرِ بْنِ يَزِيدَ عَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - كَانَ إِذَا فَرَغَ مِنْ طَعَامِهِ - وَقَالَ مَرَّةً إِذَا رَفَعَ مَائِدَتَهُ - قَالَ « الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِى كَفَانَا وَأَرْوَانَا، غَيْرَ مَكْفِيٍّ، وَلاَ مَكْفُورٍ - وَقَالَ مَرَّةً الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّنَا، غَيْرَ مَكْفِيٍّ، وَلاَ مُوَدَّعٍ - وَلاَ مُسْتَغْنًى، رَبَّنَا ».

د خوراك كولو نه پس د الله جل جلاله حمدوثناء بيانول او شكر كول مستحب او مسنون دى، احاديثو كښې مختلف ادعيه منقول دى، امام بخارى رحمه الله دلته درې دعاګانې نقل كړې دى.

① رومبئ دعا داده : (الْحَمْدُ لِلَّهِ كَثِيرًا طَيِّبًا مُبَارَكًا فِيهِ، غَيْرَ مَكْفِيٍّ، وَلاَ مُوَدَّعٍ وَلاَ مُسْتَغْنًى عَنْهُ، رَبَّنَا) يعنى زيات د الله جل جلاله ښه شكر او بركت دې كوم چې كفايت به نشى كولې. يعنى د شكر حق مونږ نشو ادا كولې او دا نه پريښودې شى اونه دهغه د پاك ذات نه استغنا اوبې نيازى اختيا ورلې شى، ائې زمونږه ربه!

---

(١) فتح البارى: ٩/٧٢٠.

**قوله**: غَيْرَ مَكْفِيٍّ: د «مكفي» په تشريح كښې شارحينو مختلف اقوال ليكلي دى، داد حمد صفت هم جوړولې شى. (۱)پورته ترجمه هم ددې مطابق كړې شوې ده چې زمونږ د طرفنه كوم حمد او شكر دې هغه هر گز كافى نه دې ليكن دا پريښودې هم نشى، لهذا مونږ د خپل استعداد مطابق ددوئ حمد وشكر ادا كوؤ، او دا د طعام صفت هم كيدلې شى نو علامه عينى رحمه الله ليكى چې:

«لفظ مكفى من الكفاية وهو اسم مفعول اصله مكفوى على وزن مفعول ولما اجتمعت الواؤ والياء قلبت الواؤ ياء وادغمت الياء ثم ابدلت ضمة الياء كسرة لاجل الياء والمعنى هذا الذى اكلنا ليس فيه كفاية لما بعده بحيث انه ينقطع ويكون هذا الاكل بل هو وغير منقطع عنا بعد هذا بل تستمر هذه النعمة لنا طول اعمارنا ولا تنقطع» (۲)

ددې حاصل دادې چې «لفظ مكفى» د اسم مفعول صيغه ده، د «مرمى» په وزن باندې دې، د «مرمى» قاعده په دې كښې جارى شوې ده او دا د «طعام» صفت دې او مطلب دادې چې دا كوم خوراك مونږ اوكړو، د بعد دپاره داكافى نه دې. گويا په دې كښې ضمناً ددې خبرې درخواست دې چې دا نعمت مونږ نه دې منقطع نه وى اودادې مسلسل جارى وى.

**قوله**: ولا مودع: «مودع» د ميم په ضمه او د واؤ او د دال په فتح او تشديد سره دباب تفعيل نه صيغه د اسم مفعول ده. په معنى د متروك چې هغې ته الوداع وئيلې شوى وى. دا خو د حمد صفت دې چې هغه شكر پرنښودې شو او يا د طعام صفت دې چې په دې طعام رغبت او ددې طلب متروك نه دې يا دې طعام ته «مودع» دا دال په كسره سره د اسم فاعل صيغه هم كيدې شى يعنى مونږ خو دې طعام ته الوداع او رخصت والا نه يو. (۳)

«ربنا»: دا منادى منصوب دې، حرف ندا محذوف دې يعنى «ياربنا» او دې لره «هو» مبتدا محذوف خبر هم جوړولې شو. (۴)

② دويمه دعا ده: «اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِى كَفَانَا وَأَرْوَانَا، غَيْرَ مَكْفِيٍّ وَلَا مَكْفُورٍ»: شكر دهغه الله تعالى دپاره دې چې هغه پاك ذات زمونږ كفايت اوكړو، مونږ ئې سيراب كړو، نه دهغه بې نيازى كولې شى اونه دهغه ناشكرى كولې شى.

③ دريمه دعا داده: «اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّنَا، غَيْرَ مَكْفِيٍّ وَلَا مُوَدَّعٍ - وَلَا مُسْتَغْنًى، رَبَّنَا» په دې كښې رومبې «ربنا» د الله تعالى صفت او دويم «ربنا» منادى دې.

④ يو دعا امام ابوداؤد رحمه الله هم نقل كړې ده:

---

(۱) فتح البارى :۹/ ۷۲۵)

(۲) عمدة القارى:۲۱/ ۷۸)

(۳) عمدة القارى:۲۱/ ۷۸، فتح البارى :۹/)۷۲۵

(۴) عمدة القارى:۲۱/ ۷۸)

(الحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِی اطعمنا وسقانا وجعلنا من المسلمین) ([1])

⑤ یو دعا امام ابوداؤد رحمه الله دې الفاظو سره نقل کړې ده چې:

(الحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِی اطعم وسقی وسوغه وجعل له مخرجا) ([2])

⑥ یو دعا امام نسائی رحمه الله نقل فرمائیلې ده، دهغې الفاظ دادی چې:

(اللهم اطعمت وسقیت واغنیت واقنیت وهدیت واحییت فلك الحمد علی ما اعطیت) ([3])

⑦ یوه بله دعا هم امام ترمذی رحمه الله نقل کړې ده چې:

(الحمد لله الذی اطعمنی هذا ورزقنیه من غیر حول منی ولا قوة) ([4])

## ۵۵- باب الأَكْلِ مَعَ الْخَادِمِ.

[۵۱۴۴] حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُحَمَّدٍ - هُوَ ابْنُ زِيَادٍ - قَالَ سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ: «إِذَا أَتَى أَحَدَكُمْ خَادِمُهُ بِطَعَامِهِ، فَإِنْ لَمْ يُجْلِسْهُ مَعَهُ فَلْيُنَاوِلْهُ أُكْلَةً أَوْ أُكْلَتَيْنِ، أَوْ لُقْمَةً أَوْ لُقْمَتَيْنِ، فَإِنَّهُ وَلِيَ حَرَّهُ وَعِلَاجَهُ». [ر: ۲۴۱۸]

دامام بخاری رحمه الله مقصددادې چې یو خادم خوراك تیار کړې دې، کله چې خوړلو دپاره کینې او هغه خوراك راوړی نو هغه دې هم ځان سره کینوی، او که مصلحت اجازت نه ورکوی یا خوراك کم وی نو هغه ته دې کم از کم یو نمړئی دوه ورکړې شی ځکه چې د خوراك په وخت کښې هغه ګرمی او سختی برداشت کړې ده، ددې دپاره ئې په انتظامات کولو کښې تکلیف اوچت کړې وو. نو دا مناسبه نه دی چې تاسو هغه بالکل نظر انداز کړئی.

په دې کښې دا هم مصلحت دې که دې طریقې سره نظر انداز کړې شو نو ددې نتیجه به دا وی چې هغه بهٔ بیا دپاره کوم خوراکونه تیاروی نو هغې کښې به خیانت نه کوی.

روایت کښې علاج نه مراد خوراك تیارول او جوړول دی.

د مسلم شریف روایت کښې دی چې: (فان کان الطعام مشفوها قلیلا فلیضع فی یده منه اکله او اکلتین) ([5]) یعنی خادم دې ځان سره کینولې شی، لیکن که خوراك مشفوه یعنی ددې خوراك والا زیات وی او خوراك کم وی نو ده ته دې یو لقمه دوه ورکړې شی.

او د ترمذی شریف په روایت کښې دی چې (اذا کفی احدکم خادمه طعامه حره ودخانه فلیاخذه بیده فلیقعده معه فان ابی فلیاخذ لقمة فلیطعمها ایاه) ([6]).

---

[1] ابوداؤد کتاب الاطعمة باب ما یقول الرجل اذا طعم رقم الحدیث :۵۰۳۸، ۳/۳۶۶).

[2] ابوداؤد کتاب الاطعمة باب ما یقول الرجل اذا طعم رقم الحدیث :۵۰۳۸، ۳/۳۶۶).

[3] فتح الباری :۹/ ۷۲۵)

[4] ابوداؤد کتاب الاطعمة باب ما یقول اذا فرغ من الطعام رقم الحدیث :۵۰۵۶، ۵/۵۰۸).

[5] صحیح مسلم کتاب الایمان باب الطعام المملوک مما یاکل : ۳/ ۱۲۸۴، رقم الحدیث :۱۶۶۳).

[6] سنن الترمذی کتاب الاطعمة باب ماجاء فی الاکل مع المملوک والعیال : ۴/ ۲۸۶، رقم الحدیث :۱۸۵۳)

## ٥٤- باب الطَّاعِمُ الشَّاكِرُ مِثْلُ الصَّائِمِ الصَّابِرِ.

فِيهِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم

خپل ځان لره د مفطراتو ثلاثه نه منع كول او صبر كولو والا د روژه درا اجر تولو ته معلوم دې ليكن خوراك باندې د الله تعالى شكر كوونكی د هغه پاك ذات په نعمت باندې هم د روژه دار په شان مستحق د اجروثواب.

د شارح بخارى ابن بطال رحمه الله بيان دې چې دا هم د الله تعالى فضل او احسان دې چې په خوراك باندې د الله تعالى شكر كوونكى ته اجر وركوى، لكه څنګه چې روژه دار ته په صبر كولو باندې وركوى. (1)

علامه طيبى رحمه الله د دواړو په مينځ كښې وجه تشبه بيانوى او فرمائى چې دصائم او شاكر دواړو په مينځ كښې حبس نفس موندې شى، صائم كښې ظاهر دى اوشاكر كښې داشان چې هغه خپل نفس لره د منعم حقيقى د محبت او تعظيم پابند جوړه وى. (2)

بيا ځينو حضراتو اوفرمائيل چې دشاكر او صائم دواړو ثواب برابر دې. نو علامه طيبى ليكى چې: «ورد الايمان نصفان نصف صبر و نصف شكر وربما يتوهم متوهم ان ثواب الشكر يقصر عن ثواب الصبر فازيل توهمه به يعنى هما متساويان فى الثواب» (3)

ليكن د علامه كرمانى رحمه الله كلام نه معلوميږى چې د صائم اجر دشاكر نه زيات دې او دلته تشبيه په نفس استحقاق كښې وركړې شوې دې، كميت و كيفيت كښې نه دې، نوهغه فرمائى چې: «الشتبيه هنا فى اصل الثواب لا فى الكمية ولا الكفية والتشبيه لا يستلزم المماثلة من جميع الاوجه» (4)

ددوئ يو دليل دا هم دې چې صائم مشبه به دې او مشبه به د مشبه مقابله كښې اعلىٰ و ارفع وى. (5)

**قوله**: فِيهِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم: امام بخارى رحمه الله دابوهريره رضى الله عنه دا روايت چرته هم په صحيح بخارى كښې موصولا نه دې ذكر فرمائيلې. (6)

ابن حبان رحمه الله په خپل صحيح كښې دا روايت ذكر كړې دې چې «قال رسول الله صلى الله عليه وسلم الطاعم الشاكر بمنزلة الصائم الصابر» (7)

---

1) فتح البارى :٧٢٨/٩)

2) عمدة القارى:٨٠/٢١، وشرح طيبى كتاب الاطعمة:١٥٦/٨).

3) عمدة القارى:٨٠/٢١، وشرح طيبى كتاب الاطعمة:١٥٦/٨).

4) شرح كرمانى :٦٦/٢٠، فتح البارى :٧٣٨/٩)

5) فتح البارى :٧٢٨/٩)

6) فتح البارى :٧٢٧/٩)

7) عمدة القارى:٨٠/٢١)

## ۵۵- بَابُ الرَّجُلِ يُدْعَى إِلَى طَعَامٍ فَيَقُولُ وَهٰذَا مَعِي.

وَقَالَ أَنَسٌ إِذَا دَخَلْتَ عَلَى مُسْلِمٍ لَا يُتَّهَمُ فَكُلْ مِنْ طَعَامِهِ، وَاشْرَبْ مِنْ شَرَابِهِ.۷/۱۰۷

[۵۱۴۵] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي الأَسْوَدِ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ حَدَّثَنَا شَقِيقٌ حَدَّثَنَا أَبُو مَسْعُودٍ الأَنْصَارِيُّ قَالَ كَانَ رَجُلٌ مِنَ الأَنْصَارِ يُكْنَى أَبَا شُعَيْبٍ، وَكَانَ لَهُ غُلَامٌ لَحَّامٌ، فَأَتَى النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - وَهُوَ فِي أَصْحَابِهِ، فَعَرَفَ الْجُوعَ فِي وَجْهِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فَذَهَبَ إِلَى غُلَامِهِ اللَّحَّامِ فَقَالَ اصْنَعْ لِي طَعَامًا يَكْفِي خَمْسَةً، لَعَلِّي أَدْعُو النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - خَامِسَ خَمْسَةٍ. فَصَنَعَ لَهُ طُعَيِّمًا، ثُمَّ أَتَاهُ فَدَعَاهُ، فَتَبِعَهُمْ رَجُلٌ فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «يَا أَبَا شُعَيْبٍ إِنَّ رَجُلاً تَبِعَنَا فَإِنْ شِئْتَ أَذِنْتَ لَهُ، وَإِنْ شِئْتَ تَرَكْتَهُ». قَالَ لَا بَلْ أَذِنْتُ لَهُ.

که چرې د يو سړي دپاره دعوت اوکړې شو، په دې دعوت کښې ده سره يو بل سړې بغير دعوت نه راغلو، نو هه دې هغه ځائې کښې اووائی چې ماسره دې هم دې. که اجازت ملاؤ شو نو صحيح ده ګنی دده دپاره دعوت کښې شريکيدل جائز نه دی، حديث باب مخکښې تير شوې دې او د طفيلي مسئله هم هلته بيان کړې شوې ده.

**قوله** وَقَالَ أَنَسٌ إِذَا دَخَلْتَ عَلَى مُسْلِمٍ لَا يُتَّهَمُ فَكُلْ مِنْ طَعَامِهِ، وَاشْرَبْ مِنْ شَرَابِهِ: انس رضي الله عنه فرمائی چې کله تاسو يو داسې مسلمان له ورشئ چې متهم نه وی نو هغه سره ته هم خوراک کولې شې.

طبرانی او حاکم د ابوهريره رضي الله عنه نه ددې مفهوم يو مرفوع حديث هم نقل کړې دې. «اذا دخل احدكم على اخيه المسلم فاطعمه طعاما فلياكل من طعامه ولايساله عنه» [۱]

د انس رضي الله عنه ددې تعليق مناسبت ترجمة الباب سره بيانوی او علامه عينی رحمه الله فرمائی چې: «مطابقة هذا التعليق للترجمة من حيث ان الرجل اذا دخل على رجل مسلم سواء بدعوة او بغيرها فوجد عندها اكلا اوشربا هل يتناول من ذالك شيئا فقال انس ياكل ويشرب اذا لم يكن الرجل المدخول عليه لايتهم فى دينه ولافى ماله»

حاصل دادې چې باب کښې د طفيلی مسئله بيان کړې شوې ده او انس رضي الله عنه ددې تعليق «اذا دخلت على مسلم» کښې رابللی او نه رابللی دواړو صورتونو ته داخل دی، که څوک بغير بللو نه لاړو نو هغه طفيلی دې، چې ددې ترجمة الباب کښې ذکر دې، تعليق او ترجمة خاص دې، امام د عام نه د خاص حکم ثابت کړې دې.

او ددې تعليق حديث باب سره مناسبت بيانوی، حافظ ابن حجر رحمه الله ليکی چې:

---

[۱] المستدرک للامام الحاکم کتاب الاطعمة: ۴/۱۲۶، عمدة القاری: ۲۱/ ۸۰)

(و مطابقة الاثر للحديث من جهة كون الحاكم لم يكن منهما واكل النبى ﷺ من طعام ولم يسأله) (١)
دانس ﷺ دا تعليق ابن ابى شيبة موصولا نقل كړې دې. (٢)

## ٥٦- باب إِذَا حَضَرَ الْعَشَاءُ فَلَا يَعْجَلْ عَنْ عَشَائِهِ.

[٥١٤٦] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِي. وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِي يُونُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي جَعْفَرُ بْنُ عَمْرِو بْنِ أُمَيَّةَ أَنَّ أَبَاهُ عَمْرَو بْنَ أُمَيَّةَ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ رَأَى رَسُولَ اللَّهِ- صلى الله عليه وسلم- يَحْتَزُّ مِنْ كَتِفِ شَاةٍ فِي يَدِهِ، فَدُعِيَ إِلَى الصَّلَاةِ فَأَلْقَاهَا وَالسِّكِّينَ الَّتِي كَانَ يَحْتَزُّ بِهَا، ثُمَّ قَامَ فَصَلَّى، وَلَمْ يَتَوَضَّأْ.[ر: ٢٠٥]

[٥١٤٧] حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ أَسَدٍ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ أَبِي قِلَابَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رضى الله عنه- عَنِ النَّبِيِّ- صلى الله عليه وسلم- قَالَ: «إِذَا وُضِعَ الْعَشَاءُ وَأُقِيمَتِ الصَّلَاةُ فَابْدَءُوا بِالْعَشَاءِ». وَعَنْ أَيُّوبَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ- صلى الله عليه وسلم- نَحْوَهُ. وَعَنْ أَيُّوبَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّهُ تَعَشَّى مَرَّةً وَهُوَ يَسْمَعُ قِرَاءَةَ الإِمَامِ.

[٥١٤٨] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ- صلى الله عليه وسلم- قَالَ: «إِذَا أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ وَحَضَرَ الْعَشَاءُ فَابْدَءُوا بِالْعَشَاءِ». قَالَ وُهَيْبٌ وَيَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ عَنْ هِشَامٍ «إِذَا وُضِعَ الْعَشَاءُ».

ترجمة الباب (عشائه) بفتح العين، نه مراد د ماښام ډوډئی مراد ده، او وړاندې (العشاء) کښې دوه احتماله دی.

① (العشاء) د عین کسره سره، تیرې نه مراد د ماسختن مونځ دې، او مطلب دادې که دماسختن ډوډئی راغلی ده او دسترخوان باندې خوره شوې ده نو ډوډئی خوړونکی باندې به تیزی نه شی کولې، ده ته به ددې اجازت ورکولې شی چې ښه په آرام سره خوراك اوکړی.

② دويم احتمال دادې چې (العشاء) د عين په فتحه سره دې، (ضد الغدا) مراد ترې نه د ماښام ډوډئی ده او مطلب دادې چې د ماښام ډوډئی چې کله کیخودې شی نو خوړونکی باندې به عجلت نه کوی، بلکه هغه به په اطمینان سره خوراك کوی، بیابه مونځ کوی.
حافظ ابن حجر رحمه الله دا روايت راجع گرزولې دې او فرمائی چې حديث کښې دمازيگر ذکر دې د ماسختن دمونځ نه دې. ددې وجې (عشاء) بفتح العين دې او مراد ترې نه ډوډئی ده مونځ نه دې. (٣)

---

(١) عمدة القارى: ٧٢٨/٢١)
(٢) فتح البارى: ٧٢٩/٩ عمدة القارى: ٨٠/٢١)
(٣) فتح البارى: ٧٢٩/٩)

د باب په رومبی روایت کښې دی چې د نبی کریم ﷺ په لاس مبارك کښې د چیلئ د شا غوښهٔ وه، نبی کریم ﷺ هغه په چاړه پرېکوله، اذان اوشو نو نبی کریم ﷺ هغه غوښه او چاړه دواړه کیخودل او اودریدل مونځ کښې مشغول شو.

(فالقاها) په دې کښې ضمیر مؤنث (قطعة اللحم) طرفته راجع دې، یا (کشف) طرفته راجع دې اوهغه مؤنث سماعی دې. (1)

ترجمة الباب سره دحدیث پاك مناسبت بیانوی چې علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چې ددې حدیث پاك نه چونکه د مونځ وخت کښې د نبی کریم ﷺ په ډوډئی مشغولیدل معلومیږی، ددې وجې امام بخاری رحمه الله دا په دې ځائې کښې ذکر کوی چې دمونځ په وخت کښې اشتغال بالکل جائز دې. (2)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې باب کښې ذکر شوې وړاندې د عمر فاروق رضی الله عنه ا و عائشه صدیقه رضی الله عنها روایاتو کښې (فابدءوا بالعشاء) د امر صیغه راغلې ده، چې مونځ اودریږی او ډوډئی هم تیاره وه نو ډوډئ وړاندې کوئی امام بخاری دعمرو بن امیه روایت مخکښې ذکر کړو او دې خبرې طرفته اشاره ئې اوکړه چې (فابدءوا بالعشاء) کښې امر وجوب دپاره نه دې.

د رومبې روایت سند کښې (وقال اللیث) تعلیق دې دا اسماعیلی موصولا نقل کړې دې. (3)

**قوله**: (وعن ایوب عن نافع.......): دا تعلیق نه دې، ماقبل سند سره متصل دې (قال رهیب ویحیی بن سعید.......) دا دواړه تعلیقات دی د وهیب روایت اسماعیلی او د یحیی بن سعید روایت لره امام احمد موصولا نقل کړې دې. (4)

**مونځ مقدم دې اوکه ډوډئی**: اکثرو روایتونو کښې د (اذا وضع العشاء) الفاظ راغلی دی ددې وجې چې په کومو روایتونو کښې (اذا حضر العشاء) الفاظ راغلی دی، هلته (حضر) نه (وضع) مراد دی، اګرچې (حضر) عام دې، مطلب دادې چې کله ډوډئی حاضره شی او په دسترخوان باندې کیخودې شی نو خوراك مقدم کول پکار دی.

دا مسئله په کتاب الصلوة کښې تیره شوې ده.

دظاهریه په نیزد داسې صورت کښې تقدیم طعام واجب دې. هغوئ حدیث پاك کښې وارد صیغې لره وجوب باندې محمول کوی.

د ائمه اربعه او جمهور علماء کرامو مسلك دادې که ډوډئی حاضره شی او اولږه وی نو داسې صورت کښې دې ډوډئ مقدم کړې شی، لیکن که ډوډئی لا نه وی کیخودلې شوې او

(1) فتح الباری :۹/ ۷۳۰)

(2) شرح الکرمانی :۲۰/ ۶۷).

(3) فتح الباری :۹/ ۷۳۰).

(4) فتح الباری :۹/ ۷۳۰)

اولړه هم نه وي نو بيا مونځ مقدم كول پكار دي. د اولړې په صورت كښې تقديم د طعام وجه داده چې مونځ به د دوډئي نه پس په اطيمنان سره اوكړي كه مونځ ئې مقدم كړو نو خيال به په دوډئي كښې وي. د امام ابو حنيفه رحمه الله مشهوره مقوله ده چې (ان اجعل الطعام صلاة خير من ان أجعل الصلاة طعاما) د دوډئي په وخت كښې د مونځ فكر كول ددې نه بهتر ددي چې مونځ كولو كښې د خوراك خيال وي. [1]

## ۵۷-باب قَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى (فَإِذَا طَعِمْتُمْ فَانْتَشِرُوا)

[۵۱۴۹] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ أَنَّ أَنَسًا قَالَ أَنَا أَعْلَمُ النَّاسِ بِالْحِجَابِ كَانَ أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ يَسْأَلُنِي عَنْهُ، أَصْبَحَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - عَرُوسًا بِزَيْنَبَ ابْنَةِ جَحْشٍ وَكَانَ تَزَوَّجَهَا بِالْمَدِينَةِ، فَدَعَا النَّاسَ لِلطَّعَامِ بَعْدَ ارْتِفَاعِ النَّهَارِ، فَجَلَسَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَجَلَسَ مَعَهُ رِجَالٌ بَعْدَ مَا قَامَ الْقَوْمُ، حَتَّى قَامَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَمَشَى وَمَشَيْتُ مَعَهُ، حَتَّى بَلَغَ بَابَ حُجْرَةِ عَائِشَةَ، ثُمَّ ظَنَّ أَنَّهُمْ خَرَجُوا فَرَجَعْتُ مَعَهُ، فَإِذَا هُمْ جُلُوسٌ مَكَانَهُمْ، فَرَجَعَ وَرَجَعْتُ مَعَهُ الثَّانِيَةَ، حَتَّى بَلَغَ بَابَ حُجْرَةِ عَائِشَةَ فَرَجَعَ وَرَجَعْتُ مَعَهُ، فَإِذَا هُمْ قَامُوا، فَضَرَبَ بَيْنِي وَبَيْنَهُ سِتْرًا، وَأُنْزِلَ الْحِجَابُ. [ر: ۴۵۱۳]

د امام بخارى رحمه الله مقصد دادې چې دعوت وغيره كښې د خوراك نه فارغيدو نه پس واپس راتلل پكار دي هلته ناسته اوخبرې اترې كول او كوربه دپاره بوج جوړيدل صحيح نه دي.

امير خسرو يو ځل د چا يو دعوت كښې شريك وو، د دوډئي نه د فارغيدو نه پس په خبرو كښې مشغول شو، يو جولا مالوچ ډانډچ كول شروع كړل. د ډانډچ په مخصوص آواز وي، چا تپوس اوكړو چې دا ډانډچ څه وائي، نو امير خسرو اووئيل چې دا وائي چې:

نان كه خوردى خانه برو _ (خوراك نه پس كور ته لاړشئ)

* * *

[1] (معارف السنن ابواب الصلاة باب ماجاء اذا حضر العشاء واقيمت الصلاة:۳۹۸/۳، و مرقاة المفاتيح كتاب الصلاة باب الجماعة وفضلها:۵۳/۳، وحاشية الطحطاوى على الدر المختار:۲۴۱/۱ والجوهرة النير:۶۹، والبحر الرائق:۳۶۷/۱).

# ۷۴- كتاب العقيقة

(الاحاديث: ۵۱۵۰-۵۱۵۷)

كتاب العقيقه كښې څلور بابونه ادولس احاديث دى، په دې كښې درې معلق او باقى موصول دى، اته احاديث مكرر دى اوته دڅلورو احاديثو تخريج امام بخارى په دې كښې په اول ځل كړې دې په دغه څلورو كښې دوه متفق عليه دى.

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

## ۷۴- كتاب العقيقة

**د عقيقه لغوى او اصطلاحى معنى**: عقيقه هغه ځناور ته وائى چې دنومولود طرفنه ذبح كولې شى. ([1])

ابوعبيده رحمه الله، اصمعى رحمه الله او زمحشرى رحمه الله فرمائى چې عقيقه اصل كښې هغه ويښتو ته وائى چې د نوى پيدا شوى بچى په سر باندې وې. د (عق) معنى ده پريكول چونكه هغه ويښته خرئيلې شې، ددې وجې هغه ته (عقيقه) وائى بيا په دې حالت كښې ذبح شوې چيلئ ته (عقيقه) وائى. ([2])

علامه خطابى رحمه الله فرمائى چې (لعقيقة اسم الشاة المذبوحة عن الولد سميت بذالك لانها تعق مذابحها اى تشق وتقطع.....) ([3])يعنى عقيقه د هغه چيلئ نوم دې چې دبچى د طرفنه ذبح كولې شى ددې وجې هغې ته عقيقه وائى چې د هغې رګونه پريكولې شى.

يو حديث پاك كښې هم چيلئ باندې دعقيقه اطلاق كيږى. (**للغلام عقيقتان وللجارية عقيقة**)([4])

علامه ابن فارس رحمه الله فرمائى چې عقيقه د بچى ويښتو او دهغه د طرفنه ذبح شوې چيلئ دواړو ته وائى. ([5])

**د عقيقې حكم**: ① داؤد ظاهرى رحمه الله، ابن حزم رحمه الله او دا ظاهريه په نيز عقيقه واجب ده، د امام احمد بن حنبل رحمه الله يو روايت هم ددې مطابق دې. ([6])

② د امام شافعى رحمه الله په نيز عقيقه سنت مؤكده ده، د امام احمد رحمه الله دويم روايت هم ددې

---

[1]) فتح البارى :۹/ ۷۳۲، ارشاد السارى:۲۱۹/۱۲، والنهاية لابن الاثير:۲۷۶/۳).
[2]) فتح البارى :۷۳۲/۹، والفائق للزمحشرى:۱۱/۳ باب العين مع القاف).
[3]) فتح البارى :۷۳۲/۹ عمدة القارى:۸۲/۲۱)
[4]) فتح البارى :۷۳۲/۹).
[5]) اوګورئى معجم مقايس اللغة لابن الفارس:۴/۴، كتاب العين باب العين وما بعدها فى المضاعف).
[6]) اوګورئى المحلى لابن حزم، كتاب العقيقة، :۲۳۴/۶، و اوجزالمسالک:۲۱۹/۹).

مطابق دي. (١) ③ د حضرات مالكينو په نزد عقيقه مندوب او مستحب ده.(٢) -

④ د حضرات احنافو په مسلك كښې روايات او نقول مختلف دی.

امام ابو حنيفه رحمه الله، امام ابو يوسف رحمه الله او د امام محمد رحمه الله ظاهر الروايت دادې چې عقيقه مشروع نه ده بلكه مكروه ده، نو امام احمد رحمه الله مؤطا كښې فرمائی چې:

(اما العقيقة فبلغنا انها كانت فى الجاهلية وقد فعلت فى اول الاسلام ثم نسخ الاضحى كل ذبح كان قبله ونسخ صوم شهر رمضان كل يوم قبله ونسخ غسل الجنابة كل غسل كان قبله ونسخت الزكوة كل صدقة كان قبلها كذالك بلغنا) (٣)

ددې روايت حاصل دادې چې عُقيقه د جاهليت په زمانه كښې رائج وه، او ابتدائی اسلام كښې هم ددې رواج وو ليكن بيا د اضحيه يعنى قربانئ مشروعيت نه پس منسوخ شوې ده، لهذا اوس ددې مشروعيت باقى پاتې نشو، نو هغوئ په جامع الصغير كښې تصريح كړې ده چې (ولا يعق عن الغلام ولا عن الجارية)

**د امام محمد رحمه الله ذكر شوى دلايل**: امام محمد رحمه الله دلته (بلغنا) وائى او دوه روايتونه ئې جمع كړی دی، د ړومبى روايت تخريج هغوئ په كتاب الاثار كښې د ابراهيم نخعى رحمه الله او محمد بن الحنفية نه كړې دې.

① (عن ابى حنيفة رحمه الله عن حماد عن ابراهيم قال: كانت العقيقة فى الجاهلية فلما جاء الاسلام رفضت) (٤)

(وعنه عن رجل عن محمد بن الحنيفة ان العقيقة كانت فى الجاهلية فلما جاء الاسلام رفضت) (٥)

امام محمد رحمه الله په كتاب الاثار كښې د يومفهوم دوه روايتونه ذكر كړې وى او دې نه پس فرمائی چې: (به ناخذ وهو قول ابى حنيفة رحمه الله)

② او د دويم روايت تخريج دار قطنى د مسيب بن شريك طريق سره د على رضي الله عنه نه موصولا كړې دې. (قال رسول الله ﷺ! نسخت الزكوة كل صدقة ونسخ صوم رمضان كل صوم ونسخ غسل الجنابة كل غسل نسخت الاضحى كل ذبح) (٦)

داشان دار قطنى دحارث بن نبهان طريق سره هم دا روايت دعلى رضي الله عنه نه مرفوعا نقل كړې دې، دهغې الفاظ دى چې (محا ذبح الاضاحى كل ذبح كا قبله) (٧)

---

١) (المجموع شرع التهذيب باب العقيقة:٤٢٦/٨، و ارشاد السارى:٢١٩/١٢، واوجز المسالك:٢٠٥/٩، والمغنى لابن قدامة كتاب الاضاحى:٣٦٢/٩، ٣٦٣).

٢) اوګورئ: مؤطا الامام مالک کتاب العقيقه، باب العمل فى العقيقة : ٥٠٢/٢ و أوجز المسالک: ٢٠٥/٩

٣) مؤطا امام محمد كتاب الضحايا: باب العقيقة:٢٩١، ٢٩٠.)

٤) كتاب الاثار:١٦٦).

٥) كتاب الاثار:١٦٦).

٦) (سنن الدار قطنى، باب الصيد والذبائح: ٢٨١/٤ (رقحم الحديث:٣٩)

٧) (اعلاء السنن كتاب الذبائح كشف الحقيقة عن احكام العقيقة:١٠٩/١٧)

عبدالرزاق په خپل مصنف کښې دا روایت د علي رضي الله عنه نه موقوفا هم نقل کړې دې. (۱)

او علامه ابن حزم په (المحلی) کښې د ابو جعفر محمد بن بن علي بن حسین نه هم موقوفا دا روایت نقل کړې دې. (۲)

او د اصول حدیث کتابونو کښې محدثینو تصریح کړې ده چې غیر مدرك بالقیاس امورو کښې حدیث موقوف هم دمرفوع په حکم کښې دې. (۳)

د امام محمد رحمه الله ذکر شوي دواړه روایتونه او مذکوره ددې دواړو روایتونو نه دومره خبره واضحه کیږي چې علي رضي الله عنه، محمد بن علي بن الحسین، محمد بن الحنفیه او ابراهیم نخعي د عقیقې متعلق وضاحت کړې دې چې دا د جاهلیت د زمانې او د اسلام په شروع کښې وو، لیکن بیا منسوخ شو.

البته علي رضي الله عنه نه منقول روایت لره ضعیف ګرزولې شوې دې.

دار قطني دا روایت د مسیب بن شریك او حارث بن نبهان په طریق نقل کړې دې او د مسیب باره کښې هغوئ اووئیل چې متروك دې، ددوئ شیخ عتبه بن یقظان دې. دوئ هم دارقطني متروك ګرزولې دې. (۴)

ترکومې چې تعلق دې د حارث بن نبهان نو هغه صالحینو نه وو، البته ددوئ د حافظې دکمزورئ په وجه دوئ ضعیف ګڼړلې شوې وو. (۵) بیا هم د مسیب روایت ددې تابع دې، مسیب هم داتهام بالکذب په وجه ضعیف ګروزلې شوې نه دې بلکه د سوء حفظ په وجه هغوئ ته ضعیف وئیلې شوی دی. (۶)

اود عتبه بن یقطان خو د څینو محدثیونو توثیق کړې دې. (۷) ابن حبان رحمه الله ددوئ ذکر په کتاب الثقات کښې کړې دې. (۸)

لهذا دا حدیث بالکل بې اصل او باطل نه شی ګرولې کیدې.

شمس الحق عظیم آبادی دارقطني شرح کښې په دې حدیث پاك باندې یو اشکال داهم کړې دې چې د ابن اثیر د روایت مطابق اضحیه یعنی قربانۍ مشروعیت په کال دویمه هجرئ کښې شوې دی. ابن اثیر رحمه الله د تصریح مطابق اضحیه یعنی قربانۍ مشروعیت په کال دویمه هجرئ کښې شوې دې او نبی کریم صلی الله علیه وسلم د حسن رضي الله عنه عقیقه په دریمه هجرئ اود حسین رضي الله عنه عقیقه په څلورمه هجرئ کښې کړې ده. او حدیث دام کرز چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم په

۱) سنن الدار قطني باب الصید والذبائح: ۲۸۱/۴، رقم الحدیث: ۳۹).

۲) المحلی بالاثار لابن حزم کتاب العقیقة: ۲۴۱/۶).

۳) اوګورئ شرح نخبة الفکر: ۹۴).

۴) اوګورئ الدار قطني باب الصید: ۲۸۰/۴، ۲۸۱).

۵) اعلاء السنن کتاب الذبائح: ۱۰۸/۱۷).

۶) اعلاء السنن کتاب الذبائح: ۱۰۸/۱۷).

۷) اوګورئ :میزان الاعتدال: ۳۰/۳، رقم الترجمه: ۵۴۸۰).

۸) تهذیب التهذیب: ۱۰۴/۷).

څلورمه هجرئی کښې دحدیبیه په موقع باندې ارشاد کښې اضحیه لره د عقیقه دپاره ناسخ ګرزولې شی. کله چې دا اضحیه مشروعیت مخکښې او دعقیقه واقعات روستو شوی دی، ناسخ دپاره خو مؤخر کیدل ضروری دی. [1]

ددې جواب ورکوی او علامه احمد عثمانی رحمه الله په اعلاء السنن کښې فرمائی چې ابن اثیر په کال دویمه هجرئی کښې د اضحیه د مشروعیت چې کومه خبره کړې ده، هغه غیر مستند ده. هغوئ ددې څۀ سند نه دې ذکر کړې. اوکه هغه صحیح تسلیم کړې شی نو زیات نه زیات به دا اووئیلی شی چې دا اضحیه ددې متعلق هغوئ هیڅ نه دی وئیلی او د «محاذبح الاضحی کل ذبح» معنی دا کیدې شی چې وجوب اضحیه د هر ذبح دپاره ناسخ ده، او د وجوب اضحیه فرضیت صرف د حج په موقع باندې شوې دې چې په کال نهمه هجرئی کښې واقعه شوې ده.

د ام کرزئی حدیث او د حسن رضي الله عنه او حسین رضي الله عنه د عقیقی والا روایت مولانا احمد عثمانی رحمه الله مضطر ګرزولې دې او فرمائی چې «فلاحجة له فیهما» [2]

③ د حضرات حنفیه یو دریم دلیل د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د آزاد شوی غلام ابو رافع رضي الله عنه هغه حدیث دې چې کوم امام احمد رحمه الله نقل فرمائیلې دې، په هغې کښې دی چې:

«ان الحسن بن علی لما ولد ارادت امه فاطمة ان تعق بکبش عنه فقال لا تعقی عنه ولکن احلقی شعر راسه ثم تصدقی بوزنه من الورق فی سبیل الله ثم ولد حسین بعد ذالك فصنعت مثل ذالك» [3]

حقیقت دادې چې دا حدیث پاك د حضرات حنفیه د ټولو نه قوی دلیل دې، په دې کښې صفا تصریح ده چې فاطمه رضي الله عنها دحسن رضي الله عنه د ولادت په وخت کښې هغې د ګډ د ذبح کولو اراده کړې وه لیکن نبی کریم صلی الله علیه وسلم «لا تعقی» اوفرمائیل او هغه ئې منع کړه او وې فرمائیل چې ددوئ د سر ویښته او خرئیه. اوددوئ د ویښتو د وزن برابر چاندی صدقه کړه. دې نه پس د حسین رضي الله عنه ولادت باندې هم هغوئ داشان اوکړل. معلوم شو چې د جاهلیت په زمانه کښې اود اسلام په شروع کښې چې کومه عقیقه وه هغه روستو منسوخ شوې ده.

ددې تائید سعید بن منصور ددې روایت نه کیږی چې هغوئ په صحیح سند سره د محمد بن علی نه مرسلا نقل کړې دې، دهغې الفاظ دادی چې:

«ان فاطمة اذا ولدت ولدا حلقت شعره وتصدقت بزنته ورقا»

البته د ابو رافع دې حدیث پاك سره هغه احادیث متعارض دی چې په هغې کښې تصریح راغلی ده چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم د حسن رضي الله عنه او حسین رضي الله عنه د طرفنه ګډ عقیقه کړو.

ددې جواب دادې چې حسن رضي الله عنه او حسین رضي الله عنه د عقیقی په دې روایتونو کښې اضطراب موندې شی.

---

[1] التعلیق المغنی علی سن الدار قطنی: ۴/۲۸۰).
[2] اعلاء السنن کتاب الذبائح: ۱۷/۱۰۷ - ۱۱۰).
[3] اعلاء السنن کتاب الذبائح: ۱۷/۱۰۸).

نو امام حاکم رحمه الله په مستدرك کښې د محمد بن عمرو یافعی په طریق سره د عائشه صدیقه رضی الله عنها نه روایت نقل کړېدې.

«عق رسول الله صلی الله علیه وسلم عن الحسن والحسین یوم السابع وسماهما وامران یماط عن رووسها الاذی»

حاکم دې حدیث پاك ته صحیح الاسناد وئیلی دی. (۱) او علامه ذهبی رحمه الله دده تائید کړې دې. (۲) په دې روایت کښې د «شاة» یا د «کبش» ذکر نشته دې.

حاکم بل روایت د محمد بن اسحاق رحمه الله په طریق سره د علی رضی الله عنه نه نقل کړې دې په هغې کښې دی چې:

«عن رسول الله صلی الله علیه وسلم بشاة وقال یا فاطمة احلقی راسه وتصدق بزنة شعره فوزناه فکان درهما» (۳)

لیکن په دې روایت کښې محمد بن اسحاق متکلم فیه هم دې، او مدلس هم اود مدلس عنعنه قبوله نه ده او دا روایت هغوئ «عن» سره بیان کړې دې. (۴)

البته ددې تائید د ابوداؤد روایت سره کیږی چې کوم عکرمه د عن ابن عباس رضی الله عنهما طریق سره نقل کړې دې، په هغې کښې دی چې «انه صلی الله علیه وسلم عق عن الحسن والحسین کبشا کبشا.....واسناده صحیح» (۵)

لیکن امام نسائی عکرمة عن ابن عباس رضی الله عنهما په طریق سره دا روایت نقل کړې دې، په هغې کښې دی چې عق عنهما کبیشن کبشین، داسناده صحیح (۶)

اوحاکم ء عمرو بن شعیب عن ابیه عن جده په طریق سره روایت نقل کړې دې، په دې هم د «کبشین کبشین» ذکر دې. (۷)

علامه ذهبی رحمه الله اګر چې دې ضعیف ګرزولې دې او فرمائی چې په دې کښې یو راوی «سوار» ضعیف دې. (۸)

حاصل دا دې چې د ابوداؤد په صحیح روایت کښې یو دکبش ذکر دې، او ددې تائید محمد بن اسحاق ددې ضعیف روایت نه کیږی او د نسائی په صحیح روایت کښې د «کبشین» ذکر دې. او ددې تائید د سوار ضعیف حدیث نه کیږی داشان د دواړوپه مینځ کښې دا اضطراب

---

(۱) المستدرک علی الصحیحین للامام الحاکم کتاب الذبائح: ۴/ ۲۳۷).

(۲) التلخیص للذهبی مع المستدرک: ۴/ ۲۳۷).

(۳) المستدرک علی الصحیحین للامام الحاکم کتاب الذبائح: ۴/ ۲۳۷).

(۴) اعلاء السنن: ۱۷/ ۱۰۳).

(۵) سنن د ابوداؤد کتاب الاضاحی باب فی العقیقة: ۳/ ۱۰۷، رقم الحدیث: ۲۷۴۱).

(۶) (المستدرک للامام الحاکم: ۴/ ۲۳۷).

(۷) المستدرک للامام الحاکم: ۴/ ۲۳۷).

(۸) التلخیص للذهبی: ۴/ ۲۳۷).

موندې شي، البته دومره خبره په څلورو روایتونو کښې دی چې نبی کریم ﷺ عقیقه کړې ده.
**تعارض د روایاتو او دهغې حل:** اوس په ظاهره ددې روایتونو او د ابو رافع رضی الله عنه روایت کښې تعارض دې، ځکه چې په دې کښې نبی کریم ﷺ فاطمه رضی الله عنها د عقیقې نه منع کړې وه.
حافظ ابن حجر رحمه الله او ددوئ شیخ ابن الملقن د دواړو روایاتو په مینځ کښې تطبیق کوی او فرمائی چې په هغه وخت کښې د فاطمه رضی الله عنها غریبی وه، ددې وجې نبی کریم ﷺ ورته د ویښتو برابر د چاندئی حکم اوفرمائیلو، او دذبح کولو نه ئې منع کړه. او داهم وئیلې شوی دی چونکه نبی کریم ددې د طرفنه پخپله ګډ ذبح کړې وو. ددې وجې ئې منع کړه. [1]
خودا خبره زیاته قوی نه ده ځکه چې د فاطمه رضی الله عنها د ګډ د ذبح کولو اراده خو پخپله ددې خبرې قرینه ده چې په هغه وخت کښې دهغوئ غریبی نه وه، داشان نبی کریم ﷺ خپله دهغوئ د طرفنه ګډ ذبح کړې وو.
بیا فاطمه رضی الله عنها ته څه ضرورت وو چې هغې د ذبح اراده کړې وه. [2]
مولانا ظفرا احمد عثمانی رحمه الله دواړو روایتونو کښې تطبیق کوی او فرمائی چې اصل روایت دادې چې «عق رسول الله ﷺ عن الحسن والحسین» چې نبی کریم ﷺ د حسن رضی الله عنه او حسین رضی الله عنه د طرفنه عقیقه اوکړه. اود عقیقه نه مراد دې چې نبی کریم ﷺ ددوئ د سر ویښته مبارك د خرئیلو او ددې د وزن برابر د چاندئی صدقه کولو حکم اوفرمائیلو، لکه څنګه چې د ابو رافع رضی الله عنه په روایت کښې دی. بیا مخکښې راویانو ته وهم اوشو او هغوئ «عق» نه اهراق دم مراد واخستو، او دخپل طرفنه ئې د «کبیش یاکبشین» اضافه اوکړه.
ددې تائید د یحیی بن سعید او دبریده رضی الله عنه روایتونو نه هم کیږی چې په دوئ کښې صرف «عن الحسن والحسین» الفاظ دی، د «کبش» وغیره ذکر نشته دې. [3]
داشان د ابو رافع رضی الله عنه روایت او د نور قسمه روایتونو کښې تطبیق هم کیدې شی، لیکن په دې باندې د ام کرز حدیث نه اشکال کیږی، چې ددې تخریج امام نسائی رحمه الله کړې دې، هغوئی فرمائی چې: «اتیت النبی ﷺ بالحدیبیة اساله عن لحوم الهدی فسمعه یقول علی الغلام شاتان وعلی الجاریة شاة لایضرکم ذکرانا کن اواناثا» [4]
دا روایت هغوئ په حدیبیه کښې واؤریدو چې په شپږمه هجرئی کښې دا واقعه شوې وه، حالانکه حسن رضی الله عنه او حسین رضی الله عنه د عقیقی واقعه په کال دویمه هجرئی کښې شوې ده، لهذا فاطمه رضی الله عنها لره منع کول ممکن دی چې څه دبل مصلحت په وجه وو، ددې وجې نه عقیقه منسوخ شوې ده، ګنی د حدیبیه په موقع باندې نبی کریم ﷺ دا ارشادات ولې فرمائیلو.

[1] فتح الباری :۹/ ۷۴۳)
[2] اعلاء السنن :۱۰۵/۱۷).
[3] اعلاء السنن :۱۰۵/۱۷ وسنن النسائی کتاب العقیقة:۱۸۷/۲).
[4] سنن النسائی:۱۸۷/۲. کتاب الاطعمة).

ددې اشکال څه ناقابل اطمینان جواب چا نه دې ورکړې. او دا تسلیم کوی او مولانا احمد عثمانی رحمه الله فرمائی چې:

«فالاولی ان یقال: ان العقیقة باراقة الدم کانت مشروعة الی زمن الحدیبیة ثم نسخت بدلیل انه ﷺ لم یعق عن ابنه ابراهیم ولوکانت واجبة اوسنة لعق عنه فانما یؤخذ بالاخر فالاخر من فعل رسول الله ﷺ»[1]

یعنی عقیقه بالذبح د حدیبیه زمانې پورې مشروع وه بیا منسوخ شوه، ددې وجې نبی کریم ﷺ د خپل زوئی ابراهیم رضی الله عنه عقیقه اونه کړه. «د ابراهیم رضی الله عنه ولادت په کال نهمه هجرئی کښې شوې و.»

خو دا څه قوی دلیل نه دې اول خو ددې وجې چې د نبی کریم ﷺ د ابراهیم رضی الله عنه د طرفه عقیقه کول د څینو روایتونو نه ثابت دی. او دویم دا که دا تسلیم کړې شی چې نبی کریم ﷺ د ابراهیم رضی الله عنه عقیقه نه وه کړې نو ددې نه د عقیقې د استحباب یا اباحت نفی اونشوه، څینې مستحب څیزونه نبی کریم ﷺ ترکړی وو، نو ترک عقیقه دلیل د کراهت نشی جوړیدلې، او ددې نه د عقیقې د عدم مشروعیت یا نسخ باندې څنګه استدلال کولې شی.

**د عقیقې د کراهت قول مرجوح دې:** ① حقیقت دادی چې جمهورو فقهاء حنفیه په دې سلسله کښې د کراهت قول اختیار کړې نه دې، چې کومو حضراتو دا اختیار کړې دې، ډیرو حنفی علماء کرامو ددې تردید کړې دې، لکه صاحب بدائع د کراهت قول اختیار کړې دې، لیکن ملاعلی قاری رحمه الله ددوئ قول رد کړې دې، نو بدائع کښې دی چې:

«والایعق عن الغلام والجاریة عندنا..... ولنا ماروی عن سیدنا رسول الله ﷺ انه قال: نسخت الاضحیة کل دم کان قبلها.... والعقیقة کانت قبل الاضحیة فصارت منسوخة بها کالعتیرة والعقیقة ماکانت قبلها فرضا بل کانت فضلا ولیس بعد نسخ الفضل الا الکراهیة»

یعنی عقیقه مخکښې مستحب وه، بیا منسوخ شوه، لهذا کله چې ددې فضیلت منسوخ شو نو صرف کراهت باقی پاتې شو.

لیکن ملا علی قاری رحمه الله ددې تردید فرمائی چې د فضیلت انتفاء سره د اباحت انتفاء نه لازم کیږی. ددې وجې چې نسخ زیاتی طرفنه متوجه کیږی. لهذا فضیلت چې یو امر زائد دې نو هغه منسوخ شو. بیا هم ددې نه د اباحت منسوخ کیدل نه لازمیږی.[2]

② د مرجوح کیدو دویمه وجه داده چې دا روایت ضعیف دې، چې ددې تفصیل تیر شوې دې، اوکه دا روایت صحیح اومنلې شی نو بیا هم ددې توجیه دا کیدې شی چې اضحیه د هر سابقه ذبح وجوب منسوخ کړې دې، او د وجوب د منسوخ کیدو سره د استحباب او مشروعیت منسوخ کیدل نه لازمیږی. لکه څنګه چې صوم رمضان صوم عاشورا وغیره منسوخ کړل لیکن ددې مشروعیت اواستحباب خواوس هم باقی دې، نو مولانا عبد الحی رحمه الله

---

[1]) اعلاء السنن :۱۷/۱۰۷).

[2]) التعلیق المسجد:۲۹۱)

په «التعليق الممجد» كښې ليكى چې : «بعد تسليم ثبوته ظاهره يدل على منسوخية وجوب العقيقة ونحوها فان معناه نسخ الاضحى لزوم كل ذبح كان قبله..... ويدل عليه ضمه بنسخ شهر رمضان كل صوم كان قبله فانه كان صوم يوم عاشورا او ايام البيض فلما لما قبله لم يدل الا على عدم لزوم لا على عدم مشروعيته وانتفاء فضيلته كذالك نسخ الاضحى كل ذبح قبله لايدل على انتفاء استحبابه ومشروعيته» [1]

③ امام محمد رحمه الله په كتاب الاثار كښې محمد بن الحنفية او ابراهيم نخعى نه چې كوم آثار نقل شوى دى هغه اګرچې غيرمدرك بالقياس كيدوپه وجه دمرفوع په حكم كښې كيدې شى. ليكن ددې په مقابله كښې احاديث مرفوعه صريحه كښې د عقيقه مشروعيت ثابت دې، او ظاهرى دى چې مرفوع حكمى مقابله كښې به مرفوع صريح ته ترجيح وركولې شى.
دحنفيه دويم قول د اباحت دې، نو فتاوى عالمګيرى كښې دى چې عقيقه واجب نه ده ، نه سنت ده بلكه مباح ده. [2]

**د احنافو مختار قول:** اكثر فقهاء عقيقه ته مستحب وائى، نو امام طحاوى رحمه الله، علامه عينى رحمه الله، ملا على قارى رحمه الله، وغير علماحنفيه د استحباب قول ته ترجيح وركړې ده.
امام طحاوى رحمه الله په مشكل الاثار كښې په دې باندې بحث كړې دې اوقاضى ابوالمحاسن يوسف بن موسى رحمه الله د امام طحاوى رحمه الله ددې بحث په «المعتصر من المختصر» كښې دننه تلخيص كړې دې.
ددې ټول بحث حاصل دادې چې د اسلام په شروع كښې عقيقه واجب وه، بيا ددې وجوب منسوخ شو، او استحباب باقى پاتې شو، هغوئ په مشكل الاثار كښې دې الفاظو سره په دې باندې عنوان قائم كړې دې، **باب بيان مشكل ما روى عن رسول الله ﷺ فى العقيقة وهل هو على الوجوب اوعلى الاختيار** [3]

**دعقيقې مشروعيت باندې دلالت كوونكى احاديث:** كومو احاديثو كښې د عقيقې مشروعيت يا استحباب او وجوب ثابتيږى، په دې كښې څو خو دا دى چې :
① حضرت سمره رضى الله عنه نه مرفوع حديث كښې دى چې :
**كل غلام مرتهن بعقيقة تذبح عنه يوم سابعه ويسمى فيه، ويحلق راسه** [4]
د حضرت سلمان بن عامر ضحاك نه يو مرفوع حديث پاك كښې دى چې :

---

[1] التعليق الممجد:٢٩١).
[2] فتاوى عالمګيرى كتاب الاضحية باب العقيقة:٣٦٤/٥، الفقة الاسلامى وادلته:٦٣٦/٣ وحلية العلماء فى معرفة مذاهب الفقاء: ٣٨٣/٣).
[3] (اوګورئى مشكل الاثار للطحاوى:٨١/٣)
[4] (الحديث اخرجه ابوداؤد فى كتاب الضحايا باب فى العقيقة (رقم الحديث:٢٨٣٨)، واخرجه الترمذى فى كتاب الاضاحى باب فى العقيقة (رقم الحديث :١٥٢٢) وابن ماجه فى كتاب الذبائح باب العقيقة (رقم الحديث :٣١٦٥)واخرجه الدارمى فى كتاب الاضاحى باب السنة فى العقيقة : ١١١/٢،رقم الحديث :١٩٦٩)

④ مع الغلام عقيقة فاهرعنه يقواعنه دما واميطواعنه الاذى [1]

عائشه صديقه رضي الله عنها نه روايت دې چې «امرنا رسول الله ﷺ ان تعق عن الجارة شاة وعن الغلام شاتين» [2]

بريده اسلمى رضي الله عنه نه روايت دې چې:

④ «ان الناس يعرضون على العقيقة يوم القيامة كما يعرضون على الصلوات الخمس» [3]

ظاهريه او امام احمد رحمه الله داشان احاديثو نه د عقيقه وجوب باندې استدلال کړېدې.

⑤ طبرانى په معجم اوسط كښې د ابن عباس رضي الله عنه روايت ذكر كړې دې هغوئ فرمائى چې:

«سبعة من السنة فى الصبى يوم السابع يسمى و يختن ويماط عنه الاذى و يثقب اذنه ويعق عنه ويخلق راسه،،،،،،، يتصدق بشعروزنه ذهبا او فضة»

د جمهور علماء په نيز عقيقه مستحب ده او هغه د عمران بن شعيب روايت نه استدلال کوى په هغې كښې دى چې: «سئل النبى ﷺ عن العقيقة فقال: لا احب العقوق من احب منكم ان ينسك عن ولده فليفعل عن الغلام شاتان مكافئتان وعن الجارية شاة» [4]

داشان د زيد بن اسلم روايت امام مالك رحمه الله په مؤطا كښې نقل كړ بدې چې نبى كريم ﷺ نه د عقيقه باره كښې تپوس اوشو نو نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چې:

«لا احب العقوق، كانه انما كره الاسم، وقال: من ولدله ولد فاحب ان ينسك عن ولده فليفعل» [5]

په دې روايت كښې تصريح ده چې كوم سړې غواړى نو عقيقه كولې شى. «خو واجب او ضرورى نه ده» اوددې روايت څېنې طريق كښې تصريح ده چې نبى كريم ﷺ نه دا سوال د حجة الوداع په موقع باندې شوې وو. [6] ددې وجې طحاوى رحمه الله فرمائى چې سابقه روايتونو نه چې كوم وجوب ثابت شوې دې هغه روستو منسوخ شوې وو، او اوس صرف استحباب باقى پاتې شوې دې. مولانا عبد الحئ فرنګى محلى رحمه الله فرمائى چې:

«وبالجملة الحكم بنفى مشروعيتها فى الاسلام مطلقا غير صحيح وترك الاحاديث الصريحة المرفوعة الموقوفة

---

[1] (الحديث اخرجه ابوداؤد فى كتاب الضحايا باب فى العقيقة (رقم الحديث:۲۸۳۹). واخرجه الترمذى فى كتاب الاضاحى باب الاذان فى اذن المولود (رقم الحديث: ۹۷/٤) وابن ماجه فى كتاب الذبائح باب العقيقة (رقم الحديث :۳۱٦٤) واخرجه الدارمى فى كتاب الاضاحى باب السنة فى العقيقة : ۱۲۱/۲، رقم الحديث :۱۹٦۷)

[2] (الحديث اخرجه الترمذى فى الاضاحى باب ماجاء فى العقيقه رقم الحديث :۱۵۱۳، واخرجه ابن ماجه فى الذبائح باب العقيقة :۱۰۵٦/۲، رقم الحديث :۳۲٦۳).

[3] المحلى بالاثار لابن حزم كتاب العقيقة:۲۳۷/٦).

[4] فتح البارى :۷۳۵/۹)

[5] مؤطا امام مالک كتاب العقيقة، باب ماجاء فى العقيقة : ۸۰۰/۲، رقم الحديث : ۱).

[6] اوجز المسالک:۲۰۷/۹).

الواردة فی هذا الباب) (۱)
ځینې حضراتو امام ابو حنیفه رحمه الله طرفته نسبت کړې دې چې هغوئ عقیقې ته بدعت وئیلې دې، علامه عینی رحمه الله ددې تردید کوی او تحریر فرمائی چې:
(هذا افتراء فلا یجوز نسبته الی ابی حنیفة وحاشاه ان یقول مثل هذا و انما قال: لیس بسنة فمراده اما لیست بسنة ثابتة واما لیس بسنة مؤکدة وحدیث عمرو بن عن جده گ. یدل علی الاستحباب). (۲)
اردو فتاوی هم عموما د استحباب قول اختیار کړې دې. (۳)

## ۱- باب تَسْمِيَةِ الْمَوْلُودِ غَدَاةَ يُولَدُ، لِمَنْ لَمْ يُعَقَّ عَنْهُ، وَتَحْنِيكِهِ.

امام بخاری رحمه الله په دې ترجمة الباب کښې جمع بن الروایات طرفته اشاره کړې ده.
اصل کښې ځینو روایتونو کښې راځی چې د بچی نوم دې دده د پیدائش په ورځ کیخودلې شی، اوځینو روایتونو کښې دی چې د پیدائش په اوومه ورځ دې کیخودې شی، امام بخاری رحمه الله د دواړو په مینځ کښې تطبیق کوی او فرمائی چې د بچی د عقیقې کولو اراده نه وی نودده نوم دې هم په هغه ورځ کیخودلې شی لیکن که د عقیقه اراده وی نو بیا دې په اوومه ورځ د عقیقې سره ددهٔ نوم کیخودلې شی، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې (وهو جمع لطیف لم اره لغیر البخاری) (۴)
ترجمة الباب کښې (لمن لم یعق عنه) نه د عقیقه عدم وجوب طرفته اشاره اوشوه. (۵)
**قوله**: وَتَحْنِيكِهِ: د بچی د پیدائش نه پس کهجوره وغیره چوپلې شی او په حلق کښې تالو

---

(۱) التعلیق الممجد: (۲۹۱).
(۲) عمدة القاری: ۸۳/۲۱، مالا بدمنه: ۱۷۸).
(۳) په بهشتی زیور کښې دی چې: د چا هلك یا جینئ پیدا شی نو بهتر دی چې په اوومه ورځ دهغه نوم کیږدی او عقیقه اوکړی، عقیه کولو د ماشوم نه ټول مصیبتونه لرې شی، اودځینې آفتونو نه بچ کیږی. (بهشتی زیور حصه سوم، مسئله نمبر ۱، ص: ٤۳)
مولانا مفتی محمود الحسن گنگوهی رحمة الله لیکلی چې: عقیقه په اوومه ورځ کول صرف مستحب دی، لکه څنګه چې نفس عقیقه هم ډیر ښه استحباب لری، (فتاوی محمودیه: ج/٤ ص/۳۲۲
او حضرت لدهیانوی رحمه الله لیکی چې: عقیقه سنت ده، لیکن موده ده، اوومه ورځ، یویشتمه ورځ، ددې نه پس به ددې حیثیت نفل وی. (آپ کے مسائل اور انکا حل ج/٤ص/۲۲٤)
مفتی کفایت الله صاحب رحمه الله لیکی چې: عقیقه واجب نه ده، سنت ده، که وس وی نو عقیقه کول اولیٰ او افضل دی (کفایت المفتی: ج/۸ ص/۲٤۲)
حضرت تهانوی رحمةالله علیه لیکی چې: او په عقیقه کښې دوه چیلئ یا یوه چیلئ ذبح کول تول سنت دی، (تقریر ترمذی، للشیخ التهانوی رحمه الله ص/٤٤۲)
(۴) فتح الباری: ۷۳۷/۹)
(۵) فتح الباری: ۷۳۷/۹)

سره اينبودې شي چې ددې حلاوت د بچي خيټې ته لاړشي، دې عمل ته (تحنيك) وائي (١)
بچي دپار دا عمل په بزرګانو كښې د بركت دپاره كولې شي، او د لته دباب په روايت كښې
د نبى كريم ﷺ نه دا عمل ثابت دې.

[٥١٥٠] حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ قَالَ حَدَّثَنِي بُرَيْدٌ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي مُوسَى - رضي الله عنه - قَالَ وُلِدَ لِي غُلَامٌ، فَأَتَيْتُ بِهِ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - فَسَمَّاهُ إِبْرَاهِيمَ، فَحَنَّكَهُ بِتَمْرَةٍ، وَدَعَا لَهُ بِالْبَرَكَةِ وَدَفَعَهُ إِلَيَّ، وَكَانَ أَكْبَرَ وَلَدِ أَبِي مُوسَى. [٥٨٤٥]

ابوموسى اشعرى رحمه الله نه روايت دې، فرمائى چې ځما يو بچې پيدا شو، ما دا بچې نبى كريم ﷺ ته حاضر كړو، نبى كريم ﷺ دده نوم ابراهيم كيخودو اوكهجورې سره ئې دده تحنيك اوكړو، يعنى كهجورې ئې اوچوله او دده په تالو كښې ئې كيخوده. اودده په حق كښې ئې دبركت دعا اوكړه بيا ئې ماته راكړو، دا د ابوموسى رضي الله عنه دټولو نه مشر زوئې وو، ددې حديث نه معلوم شوچې دده نوم په هغه ورځ كيخودې شو، د اوومې ورځې انتظار ئې او نه كړو.

**د بچي نوم كله كيخودل پكار دى :** ځينو رواياتو كښې د بچي نوم په اوومه ورځ د كيخود ذكر دې.

ابن حبان رحمه الله اوحاكم د عائشه صديقه رحمها الله نه صحيح سند سره روايت نقل كړې دې چې (عق رسول الله ﷺ عن الحسن والحسين يوم السابع وسماهما) (٢)

داشان امام ترمذى رحمه الله د عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده رضي الله عنه نه روايت نقل كړې دې چې:

(امرني رسول الله ﷺ بتسمية المولود السابعة) (٣)

ابن عمر رضي الله عنه هم يو مرفوع حديث نقل كړې دې چې:

(اذا كان يوم السابع المولود فاهريقوا عنه دما واميطوا عنه الاذى وسموه) (٤)

ددې احاديثو نه معلوميږى چې په اوومه ورځ نوم كيخودل پكار دى، بيا په اوومه ورځ كيخودل ضرروى نه دى، بلكه د ولادت په ورځ يا ددې نه مخكښې ورځ باندې اينبودلې شى لكه څنګه چې روايت باب نه معلوميږى.

(كتاب الادب) كښې د ابو اسيد حديث رازى چې (اتى النبى ﷺ بابنه حين ولد فسماه المنذر) (٥)

---

(١) فتح البارى :٩/٧٣٧)
(٢) المستدرک الحاکم كتاب الذبائح: ٤/٢٣٧).
(٣) سنن الترمذى كتاب الادب باب ماجاء فى تعجيل اسم المولودة:٥/١٣٢، رقم الحديث:٢٨٣٢).
(٤) فتح البارى :٩/٧٣٥)
(٥) صحيح البخارى كتاب الادب باب تحويل الاسم الى اسم احسن منه رقم الحديث :٦١٩١).

مسلم شريف كښې د انس رضي الله عنه حديث دې چې نبى كريم ﷺ دخپل ځوئې ابراهيم رضي الله عنه باره كښې فرمائيلى دى چې «ولدلى الليلة الغلام فسميته باسم ابى ابراهيم» (١)

داشان مخكښې ددې باب په آخر كښې هم تصريح ده چې نبى كريم ﷺ د بچى دپيدائش په دويمه ورځ دده نوم كيخودو.

بهر حال كه دعقيقى اراده وى نو بهتر دادى چې په اوومه ورځ دده نوم كيخودې شى. او كه د عقيقې اراده نه وى نو بيا دپيدا كيدو نه پس هم په دې ورځ يا په دويمه ورځ دې دده نوم كيخودې شى.

[٥١٥١] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ -رضى الله عنها- قَالَتْ أُتِيَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- بِصَبِيٍّ يُحَنِّكُهُ، فَبَالَ عَلَيْهِ، فَأَتْبَعَهُ الْمَاءَ.[ر: ٢٢٠]

[٥١٥٢] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ -رضى الله عنهما- أَنَّهَا حَمَلَتْ بِعَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ بِمَكَّةَ قَالَتْ فَخَرَجْتُ وَأَنَا مُتِمٌّ، فَأَتَيْتُ الْمَدِينَةَ فَنَزَلْتُ قُبَاءً فَوَلَدْتُ بِقُبَاءٍ، ثُمَّ أَتَيْتُ بِهِ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَوَضَعْتُهُ فِي حَجْرِهِ، ثُمَّ دَعَا بِتَمْرَةٍ فَمَضَغَهَا، ثُمَّ تَفَلَ فِي فِيهِ فَكَانَ أَوَّلَ شَىْءٍ دَخَلَ جَوْفَهُ رِيقُ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- ثُمَّ حَنَّكَهُ بِالتَّمْرَةِ، ثُمَّ دَعَا لَهُ فَبَرَّكَ عَلَيْهِ، وَكَانَ أَوَّلَ مَوْلُودٍ وُلِدَ فِي الإِسْلاَمِ، فَفَرِحُوا بِهِ فَرَحًا شَدِيدًا، لأَنَّهُمْ قِيلَ لَهُمْ إِنَّ الْيَهُودَ قَدْ سَحَرَتْكُمْ فَلاَ يُولَدُ لَكُمْ.[ر: ٣٦٩٧]

د اسماء بنت ابى بكر رضي الله عنهما نه روايت دې چې څه عبد الله بن زبير رضي الله عنه سر په مكه مكرمه كښې حامله شوې اووم. د حمل ورځې پوره كيدونكې وې چې څه مدينې منورې ته روانه شوم څه قبا كښې كوزه شوم، نو هم هغه ځائې كښې ځما دبچى ولادت اوشو. بيا ما دا د نبى كريم ﷺ په خدمت كښې پيش كړو او دې ما د نبى كريم ﷺ په غيږه كښې ورکړو. نبى كريم ﷺ كهجوره راؤغوښتله او هغه ئې اوچوپله. بيا ئې دده په خوله كښې كيخودله. نو دټولو نه مخكښې د نبى كريم ﷺ لعاب مبارك دده په خوله كښې داخلې شوې. بيا ئې هغه كهجوره دده په خوله كښې ورکړه، او دده په حق كښې ئې دعا اوكړه. او په دې باندې ئې ماته مباركى راكړه. دا د ټولو نه رومبې هلك وو چې په اسلام كښې پيدا شو. خلق ډير خوشحاله وو. ځكه چې د مسلمانانو متعلق به وئيلې كيدل چې دوئ باندې يهوديانو جادو كړې دې. ددې وجې دده هلك نه پيدا كيږى.

دا روايت باب هجرة النبى ﷺ الى المدنية ى تير شوې دې.

ابن سعد رحمه الله په طبقات كښې ددې واقعې متعلق يو روايت نقل كړې دې. هغې كښې دى چې: «لما قدم المهاجرون المدينة اقاموا لا يولد لهم، فقالوا: سحرتنا يهود حتى كثرت فى ذالك القالة: فكان

(١) مسلم كتاب الفضائل باب رحمة ﷺ الصبيان والعيال: ٤/١٨٠٧، رقم الحديث: (٢٣١٥).

اول مولود بعد الهجرة عبدالله بن الزبیر فکبر المسلمون تکبیرة واحدة ارتجت المدینة تکبیرا.[1]
چونکه دا خبره مشهوره شوې ده چې یهودو جادو کړې دې، اود مسلمانانو بچی نه پیدا کیږی، ددې و جې کله چې د عبدالله بن زبیر رضی الله عنه ولادت اوشونو مسلمانانو نعره اولګوله او مدینه منوره د تکبیر آوازونو سره مخ شو.

روایت باب کښې دی چې (وانامتم) یعنی د حمل موده پوره کیدو والا وه او د بچی د ولادت وخت نزدې وو.

(ثم تفل فی فیه: ای بزق صلی الله علیه وسلم فی فمه) یعنی د کهجورې چوپلو نه پس ددې عرق ئې د بچی خوله کښې واچولو، (برك علیه) دده دپاره ئې د برکت دعا اوفرمائیله. (دعا بالبرکة.... ثم حنکه بتمرة) یعنی د چوپلې شوې کهجورې اجزاء ئې دده ژبې اوتالو سره اولګوله.

[ ٥١٥٣] حَدَّثَنَا مَطَرُ بْنُ الْفَضْلِ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَوْنٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ سِيرِينَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رضى الله عنه قَالَ كَانَ ابْنٌ لأَبِي طَلْحَةَ يَشْتَكِي، فَخَرَجَ أَبُو طَلْحَةَ، فَقُبِضَ الصَّبِيُّ فَلَمَّا رَجَعَ أَبُو طَلْحَةَ قَالَ مَا فَعَلَ ابْنِي قَالَتْ أُمُّ سُلَيْمٍ هُوَ أَسْكَنُ مَا كَانَ. فَقَرَّبَتْ إِلَيْهِ الْعَشَاءَ فَتَعَشَّى، ثُمَّ أَصَابَ مِنْهَا، فَلَمَّا فَرَغَ قَالَتْ وَارِ الصَّبِيَّ. فَلَمَّا أَصْبَحَ أَبُو طَلْحَةَ أَتَى رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم فَأَخْبَرَهُ فَقَالَ «أَعْرَسْتُمُ اللَّيْلَةَ». قَالَ نَعَمْ. قَالَ «اللَّهُمَّ بَارِكْ لَهُمَا». فَوَلَدَتْ غُلاَمًا قَالَ لِي أَبُو طَلْحَةَ احْفَظْهُ حَتَّى تَأْتِيَ بِهِ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم فَأَتَى بِهِ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم وَأَرْسَلَتْ مَعَهُ بِتَمَرَاتٍ، فَأَخَذَهُ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم فَقَالَ «أَمَعَهُ شَيْءٌ». قَالُوا نَعَمْ تَمَرَاتٌ. فَأَخَذَهَا النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم فَمَضَغَهَا، ثُمَّ أَخَذَ مِنْ فِيهِ فَجَعَلَهَا فِي فِي الصَّبِيِّ، وَحَنَّكَهُ بِهِ، وَسَمَّاهُ عَبْدَ اللَّهِ.
حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ عَنِ ابْنِ عَوْنٍ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ أَنَسٍ وَسَاقَ الْحَدِيثَ. [ر: ١٢٣٩]

انس رضی الله عنه نه روایت دې چې دا ابوطلحه رضی الله عنه یو خوئې بیمار وو، ابو طلحه رضی الله عنه چرته بهر په سفر کښې وو نو دده بچې وفات شو. کله چې ابوطلحه رضی الله عنه واپس شو نو تپوس ئې اوکړو چې څما د بچی څه حال دې؟ ام سلیم ورته اووئیل چې هغه د مخکښې نه زیات په سکون کښې دې او ده ته ئې دشپې ډوډئی ورکړه. (هغوئ اوخوړه) بیا ئې خپلې بی بی سره هم بستری اوکړه، کله چې فارغ شو نو ښځې ورته اووئیل چې بچې دفن کړه. (څکه چې دهغه انتقال شوې دې) ابو طلحه رضی الله عنه سحر د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شو او ټوله قصه ئې ورته بیان کړه. نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چې آیا تا د شپې خپلې بی بی سره هم بستری کړې ده؟ هغوئ اوفرمائیل چې آؤ. نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم د ښځې خاوند دواړو دپاره د

[1] طبقات ابن سعد وسیراعلام النبلاء: ٣٦٥/٢، رقم الترجمة: ٥٣).

برکت دعا اوفرمائیله چې (اللهم بارك لهما) نو د ام سلیم ځوئې پیدا شو، (راوی انس رضی الله عنه فرمائی چې) ماته ابوطلحه رضی الله عنه اووئیل چې نبی کریم ﷺ ته دده اوړو پورې دده حفاظت کوه، نو هغه د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او ام سلیم ده سره څه کهجورې هم اولیږلې. نبی کریم ﷺ بچې واخستلو او وې فرمائیل چې آیا څه درسره هم شته دې ؟ خلقو اووئیل چې څو کهجورې دی، نبی کریم ﷺ هغه کهجورې واخستې او وې چوپلې او دخولې مبارکې نه ویستلې او دبچی خوله کښې واچولې اوده سره تحنیك اوکړو او دده نوم ئې عبدالله کیخودو.

(واراالصبی) بچی لره پټ کړه یعنی دفن ئې کړه. (وار) د باب مفاعله نه امر دې. (واری.... موارة) پټول، (اعرستم،،،، اعراس) نه دې جماع هم بستری ترې مراد ده.

داحدیث پاك امام بخاری رحمه الله په دوؤ طریق سره نقل کړې دې. یو طریق کښې دده د شیخ مطربن الفضل دې او دویم کښې محمد بن المثنی دې او دواړو روایتونو الفاظ مختلف دی او د مطر په طریق کښې د ابن عون، انس بن سیرین، نه روایت دې او دلته په دې طریق کښې هم ددې الفاظ دی او محمد بن المثنی طریق کښې د ابن عون بن محمد سیرین الفاظ دی، د هغې الفاظ دلته نشته دې، هغه روایت امام بخاری رحمه الله په کتاب اللباس کښې ذکر کړې دې.

## ۲- باب إِمَاطَةِ الأَذَى عَنِ الصَّبِي فِي الْعَقِيقَةِ.

(إمَاطَةِ) په معنی د ازالة دې یعنی د بچی نه په عقیقه کښې د (اذی) ازاله اوکړې شی. د (اذی) نه مراد څه دی ؟ اکثر حضرا فرمائی چې ددې نه ولادت په وخت کښې د بچی سر کښې چې کوم ویښته وی هغه ترې مراد دی. (اماطة الاذی) نه حلق راس مراد دې، مطلب دادې چې عقیقه کښې د بچی د سرو ویښته صفا کول پکار دی. (۱)

[٥١٥٤] حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ سَلْمَانَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ مَعَ الْغُلاَمِ عَقِيقَةٌ.

وَقَالَ حَجَّاجٌ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ أَخْبَرَنَا أَيُّوبُ وَقَتَادَةُ وَهِشَامٌ وَحَبِيبٌ عَنِ ابْنِ سِيرِينَ عَنْ سَلْمَانَ عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم.

وَقَالَ غَيْرُ وَاحِدٍ عَنْ عَاصِمٍ وَهِشَامٍ عَنْ حَفْصَةَ بِنْتِ سِيرِينَ عَنِ الرَّبَابِ عَنْ سَلْمَانَ عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم. وَرَوَاهُ يَزِيدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ عَنِ ابْنِ سِيرِينَ عَنْ سَلْمَانَ قَوْلَهُ.

امام بخاری رحمه الله روایت نقل کړې دې چې (مع الغلام عقیقة) ددې ئې څلور طرق ذکر کړی دی.

① ړومبې طریق موصول دې، لیکن مرفوع نه دې، سلمان بن عامر صحابی رضی الله عنه دې،

(۱) فتح الباری :۹/۷۳۷)

صحيح بخاري كښې ددوئ صرف دا يو حديث پاك دې. (۱)

② دويم طريق امام بخاری رحمه الله (وقال حجاج....) اووئيلو سره بيان فرمائيلې ده، حجاج بن منهال رحمه الله . حماد بن سلمه رحمه الله نه نقل كوى، حماد څلورو شيوخو نه نقل كوى، ابو قتاده رحمه الله ، هشان بن حسان رحمه الله . قتاده رحمه الله او حبيب بن شهيد رحمه الله دا طريق مرفوع دې، ليكن موصول نه دې، امام دا د تعليق په طور ذكر كړې دې، امام طحاوى رحمه الله او بيقهى رحمه الله دا موصولا نقل كړې دې. (۲)

③ ددريم طريق امام بخاری رحمه الله (وقال غيرواحد عن عاصم) نه نقل كړې دې، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چې د (غيرواحد) مصداق سفيان بن عينيه دې، امام احمد رحمه الله دده د نوم تصريح سره يو حديث نقل كړې دې. (۳)

دا طريق هم مرفوع دې، ليكن امام بخارى رحمه الله دا تعليقا نقل كړې دې، دې تعليق كښې حفصه بنت سيرين د رباب نه نقل كوى، دا رباب بنت صليع، د سلمان بن عامر وريره ده. (۴)ابن حبان په كتاب الثقات كښې دده ذكر كړې دې. (۵)

حافظ ابن حجر رحمه الله دده متعلق په تقريب التهذيب كښې دده متعلق (مقبولة) الفاظ ليكلى دى. (۶) علامه ذهبى رحمه الله دوى په مجهولاتو په ضمن كښې ذكر كړې دې.

دامام مسلم نه علاوه اصحاب سته ددوى نه روايتونه نقل كړى دى (۷).

④ څلورم طريق امام بخارى رحمه الله د يزيد بن ابراهيم رحمه الله ذكر كړې دې، دا هم تعليق دې امام طحاوى رحمه الله دا موصولا نقل كړې دې. (۸)

**ترجمې سره مناسبت:** ذكر شوۀ ددې څلورو واړو طرق نه امام بخارى رحمه الله چې كوم الفاظ (مع الغلام عقيقة) نقل كړې دې، د هغې ترجمة الباب سره هيڅ تعلق په نظر نه راځى.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چې حماد بن زيد كوم طرق سره امام بخارى رحمه الله موصولا نقل كړې دې هغه دلته مختصر دې، امام احمد دا تفصيلا نقل كړې دې. په دې كښې دا الفاظ هم متن حديث كښې شامل دى (فاهريقوا عنه دما واميطوا عنه الاذى) (۹)

---

۱) فتح البارى :۷۳۷/۹. ددوئ وفات د عثمان رضي الله عنه يا د عمر فاروق رضي الله عنه په دور كښې اوشو. اوګورئ الاصابة:۶۲/۲)

۲) فتح البارى :۷۳۷/۹)

۳) فتح البارى :۷۳۸/۹)

۴) تهذيب الكمال:۱۷۱/۲۵)

۵) (كتاب الثقات:٤/٢٤٤)

۶) (تقريب التهذيب:۷۳۷ رقم الترجمة:۸۵۸۲)

۷) (تهذيب الكمال:۱۷۱/۳۵)

۸) فتح البارى :۷۳۸/۹).

۹) فتح البارى :۸۳۷/۹)

او دا د امام بخاری رحمه الله عادت دې اکثر مختصر روایت نقل کوي، او ترجمة الباب ثبوت د تفصیلي روایت نه کیږي.

وَقَالَ أَصْبَغُ أَخْبَرَنِي ابْنُ وَهْبٍ عَنْ جَرِيرِ بْنِ حَازِمٍ عَنْ أَيُّوبَ السَّخْتِيَانِيِّ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ حَدَّثَنَا سَلْمَانُ بْنُ عَامِرٍ الضَّبِّيُّ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ «مَعَ الْغُلاَمِ عَقِيقَةٌ، فَأَهْرِيقُوا عَنْهُ دَمًا وَأَمِيطُوا عَنْهُ الأَذَى».

دا د څینو حضراتو په نیز تعلیق دې، ځکه چې امام بخاری رحمه الله (حدثنی) یا (اخبرنی) اونه فرمائیل. او اکثر حضرات فرمائی چې اصبغ چونکه امام بخاری رحمه الله صحیح بخاری کښې ډیر روایتونه نقل کوي، ددې وجې د صورتا اګر چې تعلیق دې لیکن په حقیقت کښې موصول دې.[1]

سلمان بن عامر رضی الله عنه فرمائی چې ما د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه دا ارشاد واؤریدو چې هلك لره یو عقیقه یعنی یو چیلئ ده .لهذا تاسو ددهٔ د طرفنه وینه توې کړئی. او دهغه نه اذی لرې کړئی.

**قوله**: مَعَ الْغُلاَمِ عَقِيقَةٌ: حسن رضی الله عنه او قتاده رضی الله عنه ددې د مفهوم مخالفت نه استدلال کوی او فرمائی چې د جنیئ به نه کولې شي.

د جمهورو په نیز به د دواړو عقیقې کیږي، جمهورو ددې روایتونو نه استدلال کوی چې په هغې کښې د جینئ د عقیقې حکم ورکړې شوې دې، چې دهغې تفصیل تیر شوې دې.[2]

**قوله**: فَأَهْرِيقُوا عَنْهُ دَمًا: تاسو د هلك دطرفنه وینه توې کړئی پدې کښې (دم) مبهم دې، د جمهورو په نیز هلك د طرفنه دوه چیلئ او د جینئ دطرفنه یو چیلئ ذبح کول مستحب دی.

لکه څنګه چې په روایتونو کښې تیر شوی دی چې (عن الغلام شاتان وعن الجارية شاة) امام مالك رحمه الله فرمائی چې د دواړو د طرفنه یو چیلئ بهٔ ذبح کولې شی.

هغوئ د حسن رضی الله عنه او حسین رضی الله عنه د عقیقې په سلسله کښې وارد شوی روایت نه استدلال کوی، (ان النبی صلی الله علیه وسلم عق عن الحسن والحسين كبشا كبشا)

خو دا خبره مخکښې تفصیل سره راغلې ده چې په دې روایتونو کښې اضطراب دې یعنی څینو کښې (کبشا) او څینې سو (کبشین) ذکردی. ددې وجې ددې نه غلام دپاره یو کبش باندې استدلال کول درست نه دی او په ډیرو روایتونو کښې د (عن الغلام شاتان) تصریح راغلې ده.

**قوله**: فَأَهْرِيقُوا عَنْهُ دَمًا: (اميطوا بمعنى ازيلوا) زائل کړئی، لرې کړئی، د (اذی) باره کښې درې اقواله دی.

① مشهور قول دادې چې ددې نه هغه ویښته مراد دی چې د بچی په سر باندې د ولادت په وخت کښې وی.

---

[1] ) فتح الباری :۹/ ۷۳۷)

[2] ) فتح الباری :۹/ ۷۳۹)

② دويم قول دادې چې ددې نه هغه وينه مراد ده چې د جاهليت په زمانه كښې به د عقيقې په وخت كښې د بچي په سر اچولې شوه، چې كومه چيلۍ يا څناور به ئې په عقيقه كښې ذبح كولو، د هغې وينه به ئې ددې بچي په سر اچوله.[1]
اسلام ددې ممانعت اوكړو چې داشان د بچي په سر باندې دې وينه توې نه كړې شي، ددې تفصيل مخكښې رازى.

③ يو قول دا هم دې چې «اذى» نه ختنه مراد ده، او مطلب ددې داې چې عقيقې سره دبچې ختنه كوئى.[2]
دا روايت امام بخارى رحمه الله دلته په رومبى ځل ذكر كړې دې.

[٥١٥٥] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي الْأَسْوَدِ حَدَّثَنَا قُرَيْشُ بْنُ أَنَسٍ عَنْ حَبِيبِ بْنِ الشَّهِيدِ قَالَ أَمَرَنِي ابْنُ سِيرِينَ أَنْ أَسْأَلَ الْحَسَنَ مِمَّنْ سَمِعَ حَدِيثَ الْعَقِيقَةِ فَسَأَلْتُهُ فَقَالَ مِنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ.

دا عبدالله بن محمد بن ابى الاسود دې، د ابوالاسود نوم حميد دې، د قريش بن انس په بخارى رحمه الله كښې صرف دا يو حديث دې، ددوئ آخرى عمر كښې حافظه كمزورې شوې وه، ددوئ د اختلاط دا دور دكال ۲۰۳ هجرئى نه تر كال ۲۰٦ هجرئى پورې وو.[3]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چې: «فمن سمع منه قبل ذلك فسماعة صحيح».[4]

او علامه عينى رحمه الله فرمائى چې: «ولعل سماع شيخ البخارى عن قريش كان قبل الاختلاط».[5]
د قريش شيخ حبيب بن شهيد دې، هغه فرمائى چې ابن سيرين ماته حكم اوكړو چې څه د حسن رضي الله عنه نه تپوس اوكړم چې د عقيقې حديث د چا نه آوريدلې دې؟ نو ما دهغوئ نه تپوس اوكړو نو هغوئ اوفرمائيل چې سمره بن جندب رضي الله عنه نه.

علامه ابن حزم رحمه الله فرمائى چې «لايصلح للحسن سماع عن سمرة الاحديث العقيقة وحده».[6]

ليكن امام بخارى رحمه الله په تاريخ كبير كښې د على بن المدينى قول نقل كړې دې چې «سماع الحسن من سمرة صحيح» يعنى صرف عقيقې والا حديث نه بكله نور رواياتو كښې هم د حسن سماع د سمره بن جندب نه صحيح او ثابت ده.[7]
امام بخارى رحمه الله دلته د حسن بصرى رحمه الله والا ذكر شوې حديث د عقيقې ذكر نه كړو، حافظ

[1] عمدة القارى:۲۱/۸۷)
[2] عمدة القارى:۲۱/۸۷)
[3] فتح البارى :۹/۷٤۰)
[4] عمدة القارى:۲۱/۸۷)
[5] عمدة القارى:۲۱/۸۷)
[6] عمدة القارى:۲۱/۸۷)
[7] عمدة القارى:۲۱/۸۸)

ابن حجر رحمه الله فرمائی چې (وكانه اكتفى عن ايراده بشهرته، فتح الباری :۹/ ۷٤۱)
امام ترمذی رحمه الله هغه روایت نقل کړې دې چې په هغې کښې دی (الغلام مرتهن بعقيقة تذبح عنه يوم السابع ويحلق راسه ويسمى) امام ترمذی رحمه الله دې نه پس فرمائی چې (هذا حديث حسن صحيح والعمل على هذا عند اهل العلم يستحبون ان تذبح عن الغلام العقيقة يوم السابع فان لم يتهيا يوم السابع فيوم الرابع عشر، فان لم تيهاعق عنه يوم احدى وعشرين) ([1])

**قوله**: مرتهن بعقيقة: (مرتهن) د تاء په فتحه سره، په معنی د رهن ده، یعنی نو مولود د خپلې عقیقې په وجه ګرو او مرهون وی، عقیقه دده دپاره لازمی ده ددې څلور مطلبونه دی.
① امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی چې دا د شفاعت متعلق دی، مطلب دادې که د بچی د طرفنه عقیقه اونه کړې شوه، او هغه مړ شو نو هغه به د مور پلار په حق کښې سفارش نه کوی، دده د سفارش به قبول نه وی، علامه خطابی رحمه الله دا معنی د ټولو نه ښه ګرزولې ده.([2])

② دویمه معنی داده چې (مرهون باذن شعره) یعنی د ویښتو (اذی)دې سره پاتې شی او تر دې پورې چې دعقیقی وخت پورې دده ویښته صفا کولې شی.([3])
③ علامه ابن اثیر رحمه الله فرمائی چې ددې جملې نه د عقیقی لزوم او واجب خودل مقصود دی، ددې وجې څه څیز چې کله مرهون وی نو هغه د مرتهن په قبضه کښې وی او رهن کیخودلو دپاره دقرض ادا کولو نه بغیر ددې نه انتفاع ممکن نه وی، انتفاع دپاره دقرض ادا کول ضروری دی نو چې څنګه د قرض ادا کول لازم دی، دا شان هم لازم ده.

④ علامه ابن القیم رحمه الله په (تحفة الورد فی احکام المولود) کښې فرمائی چې د غلام په خپله عقیقه کښې د مرهون کیدو مطلب دادې چې کله یو بچې پیدا کیږی نو یو شیطان ده پسې لګی. حدیث پاك کښې رازی چې: (مامن مولود الا ویسه الشیطان) ددې وجې د پیدائش نه پس بچې ژاړی نو کله پورې چې د بچی عقیقه اونه کړې شی نو هغه دشیطان د تسلط نه نه آزادیږی، عقیقه کولو نه پس هغه د شیطانی تسلط د آثارو نه آزاد او محفوظ شی.

**قوله**: يذبح عنه يوم السابع: په اوومه ورځ به دده دطرفنه ذبح کولې شی. (یذبح) مجهول دې، پلار به یې ذبح کوی، ګنی چې د چا په ذمه د بچی نفقه ده هغه به ذبح کوی.([4]) ددې جملې نه استدلال کوی او امام مالك رحمه الله فرمائی چې عقیقه اوومې ورځې سره موقت او خاص ده اوومې ورځې نه مخکښې که څوك کوی نو دا به قبول نه وی اود اوومې ورځې نه پس به فوت شی.([5])

---

[1]) (سنن الترمذی كتاب الاضاحی باب من العقيقة: ٤/ ١٠١، رقحم الحديث: ١٥٢٢)
[2]) عمدة القاری: ٢١/ ٧٧)
[3]) عمدة القاری: ٢١/ ٧٧)
[4]) فتح الباری: ٩/ ٧٤٣)
[5]) فتح الباری: ٩/ ٧٤٢)

امام شافعي رحمه الله فرمائی چې اوومه ورځ اختیار دپاره ده. تعیین وتحدید دپاره نه ده، لهذا ددې نه مخکښې هم کیدې شي. اګر چې مختار اوومه ورځ ده.[1]
که سابع اول کښې فوت شي نو سابع ثاني یعنی څوارلسم تاریخ دې اوکړې شي که په سابع ثاني هم اونه کړې شي نو سابع ثالث یعنی په یویشتمه ورځ دې اوکړې شي.[2]
د بچي د ولادت ورځ به دې اوؤ ورځو کښې نشي شمیرلې، امام مالک رحمه الله تصریح کړې ده چې دولادت ورځې نه پس والا ورځ به رومبئ شمیرلې شي، خو که بچې د طلوع نه مخکښې پیدا شوې وی یعنی د شپې پیدا شوې وی نو دې به راتلونکی ورځ شمیرلې شي.[3]
سابع اول (اوومه ورځ)، سابع ثاني، یعنی څوارلسمه ورځ، او سابع ثالث یعنی یویشتمه ورځ. په دې دریو وارو کښې عقیقه کول مختار دی، دې نه پس اسابیع کښې هم بالغ کیدو نه مخکښې مخکښې کولې شي، البته بالغ کیدونه پس بیا د عقیقې حکم ساقط شي، بل څوک دده د طرفنه عقیقه نشی کولې، که څوک د خپل طرفنه عقیقه کول غواړی نو ددې ګنجائش شته دې[4] ځکه چې نبی کریم ﷺ نه مروی دی چې نبی کریم ﷺ د نبوت نه پس پخپله پخپله عقیقه کړې وه، دا روایت ضعیف دې خوددې نه څینې عالمان دبالغ کیدو نه پس پخپله خپله عقیقه کولو جواز باندې استدلال کوی.[5]

محمد بن سیرین فرمائی چې (لواعلم اني لم یعق عني لعققت عن نفسي)[6]

او د حسن بصری رحمه الله قول دې چې (اذالم یعق عنك فعق عن نفسك وان کنت رجلا)[7]

**قوله**: ویسمی: قتاده رحمه الله اکثر شاګردانو داهم (ویسمی) نقل کړې دې، ددې دوه معنی مشهورې دی.
① یو خو دا چې د عقیقې په وخت دې د بچي نوم کیخودلې شي، ددې تفصیل تیر شوې دې. ② بل دا چې د ذبح کولو په وخت کښې دې تسمیه اووئیلې شي.[8] نو ابن ابی شیبه د قتاده رحمه الله نه نقل کړی دی چې په هغې کښې دی چې (ویسمی العقیقة کما یسمی علی الاضحیة بسم الله والله اکبر ثم یذبحم)[9]

---

[1]) فتح الباری :۷٤۲/۹)
[2]) فتح الباری :۹/ ۷٤۲)
[3]) اعلاء السنن، کتاب الذبائح:۱۲۱/۱۷).
[4]) شرح التهذیب:٤۳۲/۸).
[5]) فتح الباری :۷٤۲/۹)
[6]) فتح الباری :۷۲/۹).
[7]) اعلاء السنن، کتاب الذبائح:۱۲۱/۱۷).
[8]) فتح الباری :۷٤۱/۹)
[9]) مصنف ابن ابی شیبة : فتح الباری :۹/، عمدة القاری:۷٤۱/۲۱)

لیکن په دې دوه معنو کښې اوله معنی زیاته مشهوره ده، البته د قتاده اصحابو کښې همام دا لفظ (یدمی) نقل کړې دې.

امام ابوداؤد رحمه الله فرمائی چې همام ته وهم شوې دې، اصل لفظ (یسمی) دې لکه څنګه چې د قتاده رضی الله عنه اکثرو اصحابو نه نقل کړې شوی دی.[1]

لیکن د ابوداؤد د خبرې نه شبه کیږی چې همام نه کله د (یدمی) د تشریح متعلق تپوس اوشو او هغوئ اوفرمائیل چې د څناورو د ذبح کولو په وخت کښې ددې د رګونو نه وتلې وینې نه دې مالوچ کیخودې شی او په وینه د ګنده کیدو نه پس دې دا د دبچی په سر کیخودې شی، چې ددې نه وینه دده په مخ راشی، دې عمل ته تدمیه وائی.[2] او جاهلیت په زمانه کښې خلقو به د عقیقې په وخت کښې دا عمل کولو.

علامه ابن حزم هم (المحلی) کښې دامام ابو داؤد رحمه الله اعتراض کړه وهم ګنړلې دې، او وئیلی ئې دی چې (یدمی) وهم نه بلکه صحیح دې.

ابن حزم د ابن عمر رضی الله عنه، عطاء رحمه الله، حسن بصری رحمه الله او قتاده رحمه الله د تدمیه ددې عمل استحباب نقل کړې دې.[3]

لیکن ابن ابی شیبه د حسن بصری رحمه الله او قتاده رحمه الله د کراهت قول نقل کړې دې.[4]

جمهور فرمائی چې د اسلام په شروع کښې د (تدمیه) دا عمل مشروع وو، بیا منسوخ شوې دې، ددې عمل په نسخ باندې څو احادیث دلالت کوی.

① ابن حبان رحمه الله د عائشه صدیقه رضی الله عنها نه روایت نقل کړې دې چې (کانوا فی الجاهلیة اذا عقوا عن الصبی خضبوا قطنة بدم العقیقة، فاذا حلقوا راس الصبی وضعوها علی راسه فقال النبی ﷺ اجعلوا مکان الدم خلوقا)[5]

او د ابوالشیخ روایت کښې ددې اضافه هم ده چې: (ونهی ان یمس راس المولود بدم)[6]

② ابن ماجه د یزید بن عبدالله روایت نقل کړې دې چې (ان النبی ﷺ قال: یعق عن الغلام ولا یمس راسه بدم)[7]

د اروایت مرسل دې څکه چې یزید بن عبدالله تابعی دې، صحابی نه دې.[8]

---

[1] سنن ابی داؤد کتاب العقیقة کتاب الاضاحی :باب :رقم الحدیث :۲۵۳۸).

[2] فتح الباری :۹/ ۷٤۱)

[3] فتح الباری :۷٤۱/۹، المحلی لابن حزم کتاب العقیقة:۲۳۶/۶)

[4] مصنف ابن ابی شیبة: فتح الباری :۹/ ۷٤۲)

[5] الاحسان بترتیب صحیح ابن حبان کتاب الاطعمة باب العقیقة :۳۵۵/۸، رقم الحدیث۵۲٤۸)

[6] فتح الباری :۹/ ۷٤۱)

[7] سنن ابن ماجه کتاب الذبائح باب العقیقة: رقم الحدیث : ۳۲۶۶).

[8] فتح الباری :۷٤۱/۹)

④ امام ابوداؤد رحمه الله او حاكم هم د عائشه صديقه رضي الله عنها په شان يو حديث د عبدالله بن يزيد نه نقل كړې دې. ددې په آخر كښې دى چې «فلما جاء الله بالاسلام كنا نذبح شاة ونحلق راسه ونلطخه بزعفران» [1]

دا روايت اګر چې مرفوع نه دې ليكن د عائشه صديقه رضي الله عنها حديث دپاره شاهد دې. [2]
ددې احاديثو په وجه جمهور تدميه لره مكروه ګرزوى، نو علامه ظفر احمد عثمانى صاحب ليكى چې: «فالحق ان ذالك كان فى اول الاسلام ثم نهى رسول الله صلى الله عليه وسلم عنه كما فى حديث يزيد بن عبدالله المزنى وبريدة الاسلمى» [3]

فائده: عقيقه كښې چيلې يا چيلئ ذبح كول سنت دى، او بهتر دادى چې ددې چيلئ هډوكى دې مات نه كړې شى، ددې غوښه دې پخپله هم اوخورى او صدقه دې اوكړى، او اقرباء او احباب ته دې هم وركړې شى. د عائشه صديقه رحمه الله په يو حديث كښې ددې تصريح شويده. چې كوم امام احمد رحمه الله نقل كړې دې. [4]

د چيلئ نه علاوه غوا، اوښ وغيره سره عقيقې خو كيږى ليكن هغه افضل نه ده. افضل شاة دې اوګډ وغيره هم د شاة په حكم كښې رازى.
شاه ولى الله رحمه الله په حجة الله البالغة كښې د عقيقې د مشروعيت ډير مصلحتونه او فوائد بيان كړى دى.

① يو فائده داده چې سره د بچى نسبت په معاشره كښې ښه متعارف شى چې دا دفلانى سړى بچې دې.

② دې سره د سخاوت جذبه بيداره شى، دمال محبت، بخل، او د كنجوسئ مذموم صفت باندې يو ګوزار لرى.

③ دا د خوشحالئ موقع وى، عقيقه كښې ددې خوشحالئ په موقع باندې دشكر ادا كولو موقع ملاؤ شى.

④ عقيقه د بچى دپاره د خيرښيګړې او بركت باندې مشتمل ددعا سبب جوړيږى، ځكه چې دعقيقې غوښه مساكينو او فقراء باندې خورولې شى، دهغوئ د زړونو نه دعا اوزى چې دا دبچى دپاره دبركت او ښيګړې ذريعه جوړيږى. [5]

---

[1]) (سنن ابى داؤد كتاب الاضاحى باب العقيقة رقم الحديث: ۲۸٤۳، والمستدرک للحاكم، كتاب الذبائح والعقيقة: ٤/۲۳۸)

[2]) فتح البارى: ۹/ ٧٤١)

[3]) اعلاء السنن: ۱۷/۱۲۱).

[4]) المستدر الحاكم للامام الحاكم: ٤/ ۲۳۸ واقر الذهبى).

[5]) حجة الله البالغة: ۲/۱۲٤).

## ۳- باب الْفَرَعِ

[۵۱۵۶] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ أَخْبَرَنَا الزُّهْرِيُّ عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رضي الله عنه- عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «لاَ فَرَعَ وَلاَ عَتِيرَةَ». وَالْفَرَعُ أَوَّلُ النِّتَاجِ، كَانُوا يَذْبَحُونَهُ لِطَوَاغِيتِهِمْ، وَالْعَتِيرَةُ فِي رَجَبٍ. [۵۱۵۷]

## ۴- باب الْعَتِيرَةِ

[۵۱۵۷] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ الزُّهْرِيُّ حَدَّثَنَا عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «لاَ فَرَعَ وَلاَ عَتِيرَةَ». قَالَ وَالْفَرَعُ أَوَّلُ نِتَاجٍ كَانَ يُنْتَجُ لَهُمْ، كَانُوا يَذْبَحُونَهُ لِطَوَاغِيتِهِمْ، وَالْعَتِيرَةُ فِي رَجَبٍ. [ر: ۵۱۵۶]

(فرع) د اوښې د هغه ړومبی بچی نوم دې چې په زمانه جاهلیت کښې به د بتانو په نوم باندې ذبح کولې شی. (۱)

او (عتیرة) هغه ذبیحه ته وائی چې په زمانه د جاهلیت کښې به د رجب په میاشت کښې په ړومبۍ عشره کښې خلقو کوله، دې ته به ئې (رجبیة) وئیله. (۲)

په احادیث باب کښې نبی کریم ﷺ د فرع او عتیرة نفی فرمائیلې ده.

د غیر الله په نوم باندې ذبح کول، بالاتفاق حرام دی، البته عتیره او فرع دالله جل جلاله په نوم باندې کولې شی او یا نه. پدې باندې اختلاف دې.

امام شافعی رحمه الله نه استحباب منقول دې. ابن سیرین به په رجب کښې عتیره ذبح کوله، امام طحاوی رحمه الله په (مشکل الاثار) کښې د عمر فاروق رضی الله عنه نه هم د عتیره نقل کړې دې. (۳)

په څو احادیثو کښې د فرع او عتیره جواز معلومیږی، په هغې کښې څو دادی.

① امام نسائی رحمه الله د حارث بن عمرو رضی الله عنه نه روایت نقل کړیدې چې یو سړی د عتیره او فرع متعلق تپوس اوکړو، نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې (من شاء عتر، من شاء لم یعتر ومن شاء فرع ومن شاء لم یفرع) (۴)

---

(۱) عمدة القاری: ۸۸/۲۱)

(۲) عمدة القاری: ۸۹/۲۱)

(۳) عمدة القاری: ۲۱/ ۸۹)

(۴) (سنن النسائی کتاب الفرع والعتیرة باب لافرع ولا عتیرة (رقم الحدیث: ۴۵۵۲؛ ۷۹/۳)

② امام نسائی رحمه الله نه یو روایت نقل کړېدې فرمائی چې دابوذربن لقیط بن عامر رضی الله عنه د نبی کریم ﷺ نه تپوس اوکړو چې (یارسول الله انا کنا نذبح الذبائح فی الجاهلیة فی رجب فناکل ونطعم من جاءنا فقال رسول الله ﷺ لا باس به) (۱)

③ طبرانی په معجم اوسط کښې د ابن عمر رضی الله عنه روایت نقل کړې دې، فرمائی چې نبی کریم ﷺ نه د عتیره متعلق تپوس اوشو نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې (هی حق) (۲)

④ معجم اوسط کښې یزید بن عبدالله مزنی رضی الله عنه نه روایت دې چې (ان رسول الله ﷺ قال فی الابل فرع وفی الغنم فرع) (۳)

⑤ امام ترمذی رحمه الله د محنف بن سلیم روایت نقل کړې دې چې هغوئ نبی کریم ﷺ په عرفات کښې اوکتلو چې فرمائیل ئې: (یاایها الناس علی کل اهل البیت فی کل عام اضحیة وعتیرة) (۴)

⑥ امام ابو داؤد رحمه الله د نبیشه روایت نقل کړې دې چې یو سړی آواز اوکړو او وې فرمایل چې: (یارسول الله ﷺ! انا کنا نعتر عتیرة فی الجاهلیة فی رجب فما تامرنا؟ قال ﷺ: اذبحوالله فی ای شهر کان قال: انا کنا نفرع فرعا فی الجاهلیة فما تامرنا؟ فقال فی کل سائمة فرع قال: ابوقلابة، السائمة مائة) (۵)

دا ټول احادیث د فرع او عتیره په اباحت باندې دلالت کوی، او امام شافعی رحمه الله دپاره مستدل دې، لیکن جمهور فرع او عتیره لره مکروه ګڼړی، قاضی عیاض رحمه الله او علامه حازمی رحمه الله فرمائی چې د نهی احادیث، د اباحت دپاره ناسخ دې. (۶)

او ابن المنذر فرمائی چې: (ومعلوم ان النهی لا یکون الاعن شئ قدکان یفعل ولا نعلم ان احدا من اهل العلم یقول ان النبی ﷺ کان نهاهم عنهما عن الفرع والعتیرة ثم اذن فیهما) (۷)

---

۱) (سنن النسائی کتاب الفرع والعتیرة باب تفسیر الفرع (رقم الحدیث:۴۵۵۷، ۸۱/۳)

۲) عمدة القاری:۸۹/۲۱، فتح الباری :۷۴۱/۹ فتح الباری :۷۴۶/۹)

۳) عمدة القاری:۸۹/۲۱، فتح الباری :۷۴۱/۹ فتح الباری :۷۴۶/۹)

۴) سنن الترمذی کتاب الاضاحی، رقم الحدیث:۱۵۱۸، ۹۹/۴، فتح الباری :۷۴۶/۹ عمدة القاری:۸۹/۲۱)

۵) سنن ابی کتاب الاضاحی باب فی العتیرة: رقم الحدیث : ۲۸۳۰ : ۱۰۴/۳).

۶) عمدة القاری:۲۱/ ۸۹)

۷) عمدة القاری:۲۱/ ۸۹)

# ۷۵ - کتاب الذبائح والصيد

(الاحاديث: ۵۱۵۸ __ ۵۲۲۴)

په کتاب الذبائح والصيد کښې اته څلوېښت ابواب او درې نوي احاديث دي. په دې کښې يوېشت احاديث معلق او باقي موصول دي. ۷۹ احاديث مکرر دي او څوارلس په ړومبي ځل په دې کښې تخريج کړې شوي دي. نهه احاديث متفق عليه دي، کتاب الذبائح کښې د صحابه کرامو ﷺ او تابعينو وغيره څلور څلوېښت آثار دي.

## ۷۵= کتاب الذبائح والصيد

**قوله**: ذبائح: ذبائح د (ذبيحة) جمع ده. (ذبيحه) د (مذبوحه) په معنی کښې ده. هغه څناورلره ذبح کړې شي. (۱)

**قوله**: صيد: صيد د باب ضرب مصدر دې. او اسم مفعول مصيد په معنی کښې دې. هغه څناورکوم ته چې وائي چې دهغې ښکار اوکړې شي. (۲)

## ۱- باب التَّسْمِيَةِ عَلَى الصَّيْدِ.

وَقَوْلِهِ تَعَالَى (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَيَبْلُوَنَّكُمُ اللَّهُ بِشَيْءٍ مِنَ الصَّيْدِ) إِلَى قَوْلِهِ (عَذَابٌ أَلِيمٌ). وَقَوْلِهِ جَلَّ ذِكْرُهُ (أُحِلَّتْ لَكُمْ بَهِيمَةُ الأَنْعَامِ إِلاَّ مَا يُتْلَى عَلَيْكُمْ) إِلَى قَوْلِهِ (فَلاَ تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِ) وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ الْعُقُودُ الْعُهُودُ، مَا أُحِلَّ وَحُرِّمَ (إِلاَّ مَا يُتْلَى عَلَيْكُمْ) الْخِنْزِيرُ. (يَجْرِمَنَّكُمْ) يَحْمِلَنَّكُمْ (شَنَآنُ) عَدَاوَةُ (الْمُنْخَنِقَةُ) تُخْنَقُ فَتَمُوتُ (الْمَوْقُوذَةُ) تُضْرَبُ بِالْخَشَبِ يُوقِذُهَا فَتَمُوتُ (وَالْمُتَرَدِّيَةُ) تَتَرَدَّى مِنَ الْجَبَلِ (وَالنَّطِيحَةُ) تُنْطَحُ الشَّاةُ، فَمَا أَدْرَكْتَهُ يَتَحَرَّكُ بِذَنَبِهِ أَوْ بِعَيْنِهِ فَاذْبَحْ وَكُلْ.

دې باب کښې امام بخاري رحمه الله په ښکار باندې تسميه يعنی د بسم الله وئيلو وجوب بيان کړېدې. ځينو نسخو کښې دلته باب نشته دې، په شروع کښې قرآني آيتونه امام بخاري رحمه الله د معمول مطابق ذکر کړي دي. په شروع کښې درې آيتونه د سورة مائده دي. ړومبې آيت مبارك دې چې: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَيَبْلُوَنَّكُمُ اللَّهُ بِشَيْءٍ مِنَ الصَّيْدِ تَنَالُهُ أَيْدِيكُمْ وَرِمَاحُكُمْ لِيَعْلَمَ اللَّهُ مَنْ يَخَافُهُ بِالْغَيْبِ فَمَنِ اعْتَدَى بَعْدَ ذَلِكَ فَلَهُ عَذَابٌ أَلِيمٌ (۳)

---

(۱) عمدة القاري: ۲۱/ ۹۰)

(۲) ارشاد الساري: ۱۲/ ۲۲۸).

(۳) (ليبلوكم) ليختبرن التزامكم لامر الله ونهيه (بشئ من الصيد بارسال بعض الحيوانات البرية التی يحل صيدها واكلها (تناله رماحكم وايديكم) والمعنی يبعثه عليكم بحيث ...[بقيه حاشيه په راروانه صفحه...

(ترجمه) اې دايمان خاوندانو! الله ﷻ تاسو باندېامتحان كوى دهغې لږ ډيرښكار په باره كښې كوم ته چه ستاسولاسونه اونيزې وررسى اد د دې دپاره چه الله ته په علم ظاهرى سره هغه څوك معلوم شى چه دهغه نه په غيب هم ويريږى نو څوك چې د دې حكم نه پس زياتې اوكړى نوهغه دپاره دردناكه سزا مقرر ده

مطلب دا دې چې داحرام په حالت كښې ښكار كول ممنوع دى، محرم سره خواوشا كښې ځناور ګرزى راګرزى، نو دده د لاس يا دده د نيزې سره به ښكار كيږى، اوس دا امتحان او آزميښت به رازى چې څوك په دې آزميښت كښې كامياب شو. نو هغه كامياب پاتې شو. ليكن چې چا د شريعت د حكم خلاف ورزى اوكړه، دهغه دپاره په آخرت كښې دردناك عذاب دې.

دويم آيت مبارك دې چې:

أُحِلَّتْ لَكُمْ بَهِيمَةُ الْأَنْعَامِ إِلَّا مَا يُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ غَيْرَ مُحِلِّي الصَّيْدِ وَأَنْتُمْ حُرُمٌ ۗ إِنَّ اللَّهَ يَحْكُمُ مَا يُرِيدُ ۝

(ترجمه): تاسودپاره د څاروؤ ټول قسمونه حلال دى مګر دكومو بيان چې به وړاندې تاسو ته اوشى خوځان دپاره ښكار حلال مۀ ګڼړئ چې تاسود احرام حالت كښې يئ بيشكه الله ﷻ چې څه غواړى هغه حكم كوى

دريم آيت مبارك دې چې: حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ وَالدَّمُ وَلَحْمُ الْخِنْزِيرِ وَمَا أُهِلَّ لِغَيْرِ اللَّهِ بِهِ وَالْمُنْخَنِقَةُ وَالْمَوْقُوذَةُ وَالْمُتَرَدِّيَةُ وَالنَّطِيحَةُ وَمَا أَكَلَ السَّبُعُ إِلَّا مَا ذَكَّيْتُمْ وَمَا ذُبِحَ عَلَى النُّصُبِ وَأَنْ تَسْتَقْسِمُوا بِالْأَزْلَامِ ۚ ذَٰلِكُمْ فِسْقٌ ۗ الْيَوْمَ

---

...بقيه ازحاشيه گذشته] بصبح فى متناول ايديكم ولا بكفلكم كبير مشقة للحصول عليه، بل يستطيع احدكم ان يمسكه بيده او يخرجه برمحة والرمع فى يده، (الاية) وتتمها : لِيَعْلَمَ اللَّهُ مَنْ يَخَافُهُ بِالْغَيْبِ ۚ فَمَنِ اعْتَدَىٰ بَعْدَ ذَٰلِكَ فَلَهُ عَذَابٌ أَلِيمٌ ۝ ليتميو من يراقب فى السر والعلن ومن تنهار عزيمته امام عرض الدنيا وشهوة النفس و يتجاوز حدود الله تعالى : فيقع فى سخطه واليم عقبه، (بَهِيمَةُ الْأَنْعَامِ) هى الابل والبقرة والغنم وما يشابهها من الحيوانات الوحشية (إِلَّا مَا يُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ) الا ما سنذكر تحريمة وتتمه الاية: (غَيْرَ مُحِلِّي الصَّيْدِ وَأَنْتُمْ حُرُمٌ إِنَّ اللَّهَ يَحْكُمُ مَا يُرِيدُ ۝) اى احللنا الانعام فى حال امتناعكم من صيد الحيوان السيرى وانتم محرمون، فلا يجوز للمحرم ان يقتل صيدا فى حال احرامه مطلقا (الميتة) هى كل حيوان ذهبت حياته بدون ذبح شرعى (الى قوله) وَالدَّمُ وَلَحْمُ الْخِنْزِيرِ وَمَا أُهِلَّ لِغَيْرِ اللَّهِ بِهِ وَالْمُنْخَنِقَةُ وَالْمَوْقُوذَةُ وَالْمُتَرَدِّيَةُ وَالنَّطِيحَةُ وَمَا أَكَلَ السَّبُعُ إِلَّا مَا ذَكَّيْتُمْ وَمَا ذُبِحَ عَلَى النُّصُبِ وَأَنْ تَسْتَقْسِمُوا بِالْأَزْلَامِ ۚ ذَٰلِكُمْ فِسْقٌ ۗ الْيَوْمَ يَئِسَ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ دِينِكُمْ فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِ ۚ الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ الْإِسْلَامَ دِينًا ۚ فَمَنِ اضْطُرَّ فِي مَخْمَصَةٍ غَيْرَ مُتَجَانِفٍ لِإِثْمٍ ۙ فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ ۝

(اهل لغير الله) ذكر عند ذبحه اسم غير اله تعالى : من الاهلال وهو رفع الصوت، (وما اكل السبع) ما اكل منه حيوان مفترس له ناب يعدو به على النسا او الداباب (الا ما ذكيتم) الا ما ادركتموه مما سبق ذكره وفيه حياة مستقرة فذبحتموه ذبحا شرعيا (النصب) حجارة منصوبة حول الكعبة يذبحون عليها تعظيما لها و تقربا لاصنامهم و قيل هى الاصنام والمراد ما ذبح من اجلها (تستقسموا) تطلبوا معرفة ما قسم لكم، (بالازلام) جمع زلم، وهى قطع خشبية كتب على بعضها افعل، و بعضها لا تفعل و بعضها مهمل، يضبرون بها اذا ارادو القيام بعمل ما (فسق) خروج عن طآعتة الله عز وجل (يش.....) يشبوا من الطعن به او يرجعوكم الدين (تخشوهم) تخافون (اكلمت....) بيان ما تحتاجون اليه من الاحكام (و اتممت...) باكمال الدين والشريعة (مخمصة) مجاعة (متجانف لاثم) مائل الى المخالفة و فعل ما هو محرم، (يقذها) يشخنها ضربابعضا او بحجر (نزدى) تسقط من علو.

يَئِسَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ دِيْنِكُمْ فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِ ۔
(ترجمه): په تاسو باندې حرام کړې شوې ده مرداره اووينه او دخنزيرغوښه اوهغه چې د الله تعالیٰ نه سوا دبل چا په نوم حلال شوې وی ۱ او چې مرئ ئې خفه شوې وی ۱ او چې دګزار نه مړ شی او چې راوغورځيږی|او چې بل ښکار ونې په ښکراووهی اومړشی|او چې يودرنده ترې نه خوراک کړې وی|بغيردهغې نه چې تاسوژوندې موندې وی| اوحلال کړې مو وی | اوهغه چې د بتانو په نوم ذبح شوې وی| او دا چه دجوارئ په غشو تقسيم کوئ | داټول دګناه کارونه دی | نن ورځې کافران ستاسوددين (تباه کولو)نه پوره پوره مايوس شوی دی| نودهغوئ نه مه ويريږئ
مذکورد دريو واړوآيتونو مناسبت د کتاب او باب نه واضح دې.

**قوله**: وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ الْعُقُوْدُ الْعُهُوْدُ: ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چې آيت کريمه (يَآيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَوْفُوْا بِالْعُقُوْدِ) کښې عقود نه هغه عهد مراد دی چې د حلال او د حرام متعلق کړې شوی دی او (اِلَّا مَا يُتْلٰى عَلَيْكُمْ) نه خنزير وغيره مراد دی، چې دهغې ذکر په بل آيت مبارک کښې راغلې دې.

**قوله**: يَجْرِمَنَّكُمْ يَحْمِلَنَّكُمْ شَنَآنُ عَدَاوَةٌ: آيت مبارك کښې دی چې (وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَاٰنُ قَوْمٍ اَنْ صَدُّوْكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ) دې کښې (يَجْرِمَنَّكُمْ) د (يحملنكم) په معنی کښې دی او (شَنَاٰنُ) د عداوت په معنی دی، يعنی ديو عدوات دې تاسو لره د مسجد حرام نه منع باندې آماده نه کړی.

**قوله**: اَلْمُنْخَنِقَةُ: (منخنقة) نه هغه ځناور مراد دې چې دهغې مرئ خپه کولې شی او هغه مړشی، (موقوذة) نه هغه مراد دې چې هغه په کوتك اووهلې شی او هغه مړ شی. نو عرب وائی چې (يوقذها فتموت) او (مترَدية) هغه دې چې دغر نه راپريوزی او مړ شی. (نطيحة) هغه دې چې هغه چيلئ پخپلو ښکرو سره اووهی.
که تاسو دا اووينئ چې لکئ خوزوی او يا سترګې رپوی، (چې د ژوند هغه رګ په ده کښې موجود دې) نو دادې دبح کړې شی او اوده خوړلې شی.

[۵۱۵۸] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا زَكَرِيَّاءُ عَنْ عَامِرٍ عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ - رضى الله عنه - قَالَ سَأَلْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - عَنْ صَيْدِ الْمِعْرَاضِ قَالَ « مَا أَصَابَ بِحَدِّهِ فَكُلْهُ، وَمَا أَصَابَ بِعَرْضِهِ فَهْوَ وَقِيذٌ ». وَسَأَلْتُهُ عَنْ صَيْدِ الْكَلْبِ فَقَالَ « مَا أَمْسَكَ عَلَيْكَ فَكُلْ، فَإِنَّ أَخْذَ الْكَلْبِ ذَكَاةٌ، وَإِنْ وَجَدْتَ مَعَ كَلْبِكَ أَوْ كِلاَبِكَ كَلْبًا غَيْرَهُ فَخَشِيتَ أَنْ يَكُونَ أَخَذَهُ مَعَهُ، وَقَدْ قَتَلَهُ، فَلاَ تَأْكُلْ، فَإِنَّمَا ذَكَرْتَ اسْمَ اللَّهِ عَلَى كَلْبِكَ وَلَمْ تَذْكُرْهُ عَلَى غَيْرِهِ». [ر: ۱۷۳]

عدی بن حاتم نه روايت دې چې ما د نبی کريم ﷺ نه د معراض دښکار باره کښې تپوس اوکړو، نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې که ددې په تيره طرف سره زخمی شی نو دادې

اوخوري او كه ددې په پلنوالى سره زخمي شي نو دا د «موقوذة» په حكم كښې دې. اوما د نبى كريم نه د سپى د ښكار متعلق تپوس اوكړو نو نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چې هغه ښكار ستا دپاره راؤنيسى «او پخپله دانه خوري» نو ته هغه خوړلې شې. ځكه چې د سپې ښكار دې لره ذبح كول دى او كه تاسو خپلو سپو سره بل سپې اووينئ او تاسو ته انديښنه وى چې ده هم ده سره ښكار نيولې دې نو تاسو دې لره مه خورئ، ځكه چې تاسو پخپل سپى باندې بسم الله وئيلې ده، په نورو سپو مو نه ده وئيلې.

**قوله: مِعْرَاضِ:** «مِعْرَاضِ» بروزن محراب د يو غشى نوم دې، چې ددې تشريح او تفسير كښې داهل لغت مختلف اقوال دى.

① امام خليل نحوى رحمه الله او داهل لغت يو جماعت فرمائى چې «سهم لا ريش له ولا نصل» يعنى داسې غشئ چې دهغې نه وزرې وى اونه پيكان بې وزورو غشئ.

② ابن دريد او ابن سيده فرمائى چې «سهم طويل له اربع قذذ رقاق فاذا رمى به اعترض» اورد غشئ چې دهغې څلور باريكې وزرې وى چې كله دا اوويشتلې شى نو هغه وزرې پرانيستې كيږى. ③ علامه خطابى فرمائى چې «المعراض نصل عريض له ثقل ورزانة» يعنى پلن او دروند غشئ وى. ④ ځينې وئيلى دى چې دا يو لرګې وى، چې ددې دواړو طرفونه باريك وى او ددې مينځ غټ وى.

⑤ ځينو وئيلى دى چې دايو دروند لرګې وى، چې ددې يو سر نوكې دار وى، امام طحاوى رحمه الله هم دا قول قوى ګرځولې دې.(١)

ددې دا حكم دې كه ښكار ددې په اړخ باندې لګيدلې وى نو هغه ښكار جائز دې، ليكن كه دا غشې دښكار په پلنوالى باندې لګيدلې وى نو ددې خوراك ددې تصريح ده چې «وما اصاب بعرضه فهو وقيذ» وقيذ په معنى د موقوذ دې.

**د سپى د ښكار د جواز شرطونه:** «وَسَأَلْتُهُ عَنْ صَيْدِ الْكَلْبِ فَقَالَ «مَا أَمْسَكَ عَلَيْكَ فَكُلْ» د كلب اطلاق په سپى باندې هم كيږى او په نورو درندو باندې هم، لغتا ددې اطلاق كيږى.

كلب او نور درندګان كه ښكار اوكړى نو هغه ښكار خوړل دريو شرطونو سره.

① ړومبې شرط دادې چې هغه معلم او تربيت يافته وى.

② دويم شرط دادې چې ښكار پسې ليږلې وخت كښې تسيمه وئيلې شوې وى.

③ دريم شرط دادې چې ددې ښكار نه سپى خوراك نه وى كړې.

**كلب معلم به كله وى؟:** د ښكار د جواز دپاره كلب معلم او پوهول ضرورى دى، البته هغه ته به معلم كله وئيلې شي په دې كښې اختلاف دې.

امام احمد بن حنبل رحمه الله او حضرات صاحبينو په نيز د كلب معلم كيدو علامت دادې چې

---

١) فتح البارى: ٧٣٩/٩ عمدة القارى: ٩٢/٢١)

دي دري ځل د ښکار دپاره پرېښودلې شي، او درې واره ځل هغه اونيسي او مالك ته ئې راوړي او پخپله دې ددې نه نه خوري، داسې سپې ته به کلب معلم وئيلې شي. د امام ابوحنيفه رحمه الله يو روايت هم ددې مطابق دې البته په دې روايت کښې په دريم ځل خوركا امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز جائز دی او د صاحبينو په نيز جائز نه دی.

دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په دې کښې داشان څه تحديد نشته دې، دا مبتلی بۀ رائې باندې موقوف ده، کله چې د صائد ظن غالب وی چې سپی معلم جوړ شوې دې، نو دده دظن غالب مطابق به فيصله کولې شي.

شوافع پدې کښې دعرف اعتبار کوی هغوئ وائی چې عرف سره چې کوم کلب معلم ګڼړلې کيږي، شرعا به هغه ته معلوم وائی اوددې ښکار خوړل به درست وی.[1]

امام مالك رحمه الله تعليم کلب کښې د ترك اکل اعتبار نه کوی، هغه وائی چې سپې رابللو سره رانشی او تښتول سره اوتښتی. هم دا دده دمعلم کيدو دپاره کافی دی، هغه د ابو ثعلبه خشنی رضی الله عنه روايت نه استدلال کوی لکه څنګه چې امام ابو داؤد نقل کړی دی چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم فرمائيلی دی چې: «اذا ارسلت كلبك وذكر اسم الله عليه فكك وان اكل»[2]

د جمهورو د طرفنه ددې حديث پاك جواب دادې چې په دې حديث کښې «وان اكل» اضافه د داؤد بن عمر تفرد دې اوداؤد آئمه جرح وتعديل ضعيف ګڼړلې دې.[3]

داشان دا ضافه د عدی بن حاتم حديث باب سره متعارف هم دې، ځکه چې ددې ځينو طرف سره تصريح ده. «فان اكل فلاتاكل فانى اخاف ان يكون انما امسك على نفسه»

او د ثقه په مقابله کښې د ضعيف راوی اضافه قبوله نه ده.[4]

بيا د امام ابو حنيفه رحمه الله د ا مام احمد بن حنبل رحمه الله په نيز ترك اکل دا قيد دسپی او نورو ښکاريانو درندو متعلق دی، ليکن په باز او شاهين وغيره کښې داشرط نشته دې، ددې د معلم کيدو دپاره صرف داشرط دې چې هغه په رابللو سره راشی.[5]

امام شافعی رحمه الله په دې کښې هم د«ترك اكل» قيد لګوی، او د هغه حديث پاك نه استدلال کوی چې کوم امام ابوداؤد رحمه الله د مجالد رحمه الله په طريق سره نقل کړې دې. په هغې کښې دی چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم فرمائيلی دی چې «ماعلمت من كلب او باز ثم ارسلته و ذكرت اسم الله فكل مما امسك عليك قلت وان قتل؟ قال: ذاقتله ولم ياكل منه شيئا فانما امسك عليك»[6]

---

[1] (مذکوره مذاهب دپاره اوګورئی: مغنی لابن قدامة :۵۴۳/۸، وهداية، کتاب الصيد والذبائح ۵۰۳/۴، والمجوح شرح التهذيب :۱۰۷/۹)

[2] (سنن ابو داؤد كتاب الصيد باب فی الصيد: رقم الحديث: ۲۸۵۲، ۱۰۹/۳)

[3] (اوګورئی اعلاء السنن :۵۶/۱۸)

[4] (تکمله فتح الملهم:۴۸۲/۳)

[5] (تکمله فتح الملهم:۴۸۲/۳)

[6] (سنن ابی داؤد كتاب الصيد والذبائح، باب فی الصيد :۱۰۹/۳ (رقم الحديث :۲۸۵۱)

حضرات حنيفه او حنابله وائی چې په دې حديث پاك كښې د «بلا» ذكر د مجالد تفرد دې. مجالد ضعيف راوى دې، هغوئ د حفاظو مخالفت كوى. دا حضرات ددې روايت نه استدلال كوى چې كوم محمد رحمه الله په كتاب الاثار كښې په صحيح سند متصل سره نقل كړې دې. په هغې كښې دى چې «اذا ارسلته فقتل فكل فان الكلب اذا ضربته لم يعد وان تعليم الطير ان يرجع الى صاحبه وليس يضرب اذا اكل من الصيد ونتف من الريش فكل»[1]

**د ذبيحه او ښكار كولو په وخت كښې د بسم الله وئيلو حكم:** د ذبيحه او ښكار په وخت كښې د بسم الله وئيلو په حكم كښې اختلاف دې.

① حضرات حنيفه او مالكيه په نيز په قصد سره د بسم الله پريښودلو سره به ښكار او ذبيحه حلاله نه وى، البته كه نسيانا بسم الله ترك كړى نو ذبيحه او ښكار به حلال وى. ددوئ په نيز صحت ذبيحه دپاره اوښكار دپاره تسميه شرط نه دې، ليكن د قصد په حالت كښې د نسيان په حالت كښې نه.

② امام احمد رحمه الله په ذبيحه كښې همدا مسلك دې البته ښكار كښې ددوئ په نيز تسميه عمد او نسيان دواړو حالتونو كښې شرط دى. او يو روايت كښې هغه په ښكار كښې فرق هم كوى نو هغوئ په ارسال سهم خو نسيان جائز ګڼړى په ارسال كلب كښې نه.[2]

③ د امام شافعى رحمه الله په نيز تسميه على الذبيحه او تسميه على الصيد مسنون دى واجب نه دى، لهذا ترك تسميه كه عمدا وى او كه نسيانا، ذبيحه اوښكار بهٔ حرام نه وى.[3]

ليكن ددوئ په مسلك كښې دومره تفصيل هم دى چې د ذبيحه په وخت كښې عمدى طور بسم الله پريښودونكې د تاأن په وجه او معمول په وجه ئې بسم الله پريښودى نه وى، اتفاقى طور ئې يو ځل نيم بسم الله پريښودى وى. خو كه ده بسم الله لره غير اهم ګڼړلې وى او دا ئې پريښودې وى يائې د تسميه دپريښودلو معمول جوړ كړې وى نو په د اسې صورت كښې به ذبيحه حلاله نه وى.[4]

**د جمهورو دلائل:** ① د جمهورو ړومبې دليل د قرآن پاك آيت «وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ» نه دې، داشان د سورت مائده آيت كښې دى چې «وَاذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ عَلَيْهِ»

② مخكښې د ابو ثعلبه خشنى روايت رازى، په هغې كښې دى چې «وما صدت بقوسك فذكرت اسم الله فكل وما صدت بكلبك المعلم فذكرت اسم الله فكل»

---

[1] (كتاب الاثار باب الصيد الكلب:١٣٩، دكتاب الاثارد روايت الفاظ دادى: وا امسك عليك كلبك ان كان عالما فكلْ فان اكل فلاتاكل منه فانما امسك على نفسه واما الصغر والبارى فكل وان اكل فان تعلمه اذا دعوا ان يجيئك ولا يستطع ضربه حتى يدع الاكل)

[2] المغنى لابن قدامة:٨/٨٦٥).

[3] شرح مسلم للنووى:١٤٥/٢، وقليوبى وعميرة:٢٤٥/٤).

[4] كتاب الامام باب الذبائح اهل الكتاب:١٣١/٢).

④ رافع بن خدیج رضی الله عنه روایت هم امام بخاری رحمه الله ذکر کړې دې «ما انهر الدم وذكر اسم الله عليه فكل ليس السن والظفر».

البته د نسیان په حالت کښې ترک تسمیه نه دلاندې احادیثو په وجه ذبیحه حرام نه ده.

① بیهقی رحمه الله او دارقطنی رحمه الله د عبدالله بن عباس رضی الله عنه روایت نقل کړې دې چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې «المسلم يكفيه اسمه فان نسى ان يسمى حين يذبح فليسم وليذكر اسم الله عليه ثم لياكل»[1] ② دار قطنی رحمه الله د ابوهریره رضی الله عنه روایت نقل کړې دې چې یو سړی نبی کریم نه تپوس اوکړو چې «الرجل منا يذبح وينسى ان يسمى الله قال: اسم الله في فم كل مسلم» [2]

③ عبد بن حمید دراشد بن سعد نه مرسلا روایت نقل کړې دې چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې «ذبيحة المسلم حلال، سمى او سلم يسم، مالم يتعمد والصيد كذالك» [3]

**د امام شافعی دلائل:** امام شافعی رحمه الله د قرآن پاك د آیت «إِلَّا مَا ذَكَّيْتُمْ» نه استدلال کوی، هغه فرمائی چې پدې کښې د تذکیه ذکر دې، او ددې دپاره دتسمیه شرط لګولې شوې دې. تذکیه په لغت کښې فتح وشق ته وائی. [4]

جمهور فرمائی چې دلته د تذکیه نه شرعی تذکیه مراد ده، چې په هغې کښې د تسمیه شرط دې، لغوی تذکیه مراد نه ده، که یو ښکار لره یو درنده مړ کړی او څوك دا دمرۀ کیدو نه پس ذبح کړی نو بالاتفاق حلال نه دې، حالانکه هلته لغوی تذکیه موندې شی. لیکن چونکه شرعی تذکیه نه شی موندې، ددې وجې هغه د میتة په حکم کښې دی، حلال نه دی، معلوم شو چې «إِلَّا مَا ذَكَّيْتُمْ» کښې تذکیه نه شرعی تذکیه مراد ده. [5]

امام شافعی رحمه الله د حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها د روایت نه استدلال کوی چې کوم کښې دی چې «ان قوما قالوا للنبي ﷺ ان قوما ياتوننا بلحم لاندرى اذكر اسم الله عليه ام لا؟ فقال: سموا عليه انتم وكلوه قالت: وكانوا حديثى عهد بالكفر» [6]

مونږ لره ځینې نوی مسلمانانو غوښه راوړه، مونږ ته معلوم نه وو چې هغوئ د ذبیحه په وخت کښې بسم الله وئیلې وه که نه؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې ته بسم الله اووایه او خوره.

لیکن دا حدیث پاك د امام شافعی رحمه الله مستدل کیدو کښې صریح نه دې، ځکه چې په دې

[1] (اعلاء السنن :٦٧/١٧، واخرجه الحاكم فى المستدرك: ٢٣٣/٤ موقوفا على ابن عباس، داشان اوګورئی نصب الراية للزيلعى:٢٦١/٢)
[2] سنن دار قطنى باب الصيد والذبائح: ٢٩٥/٤).
[3] الدر المنثور:٤٢/٣).
[4] شرح مسلم للنووى:١٤٥/٢).
[5] اعلاء السنن :٥٧/١٧).
[6] دا روايت مخکښې بخاری شريف کښې رازی).

کنبې وئیلې شوی دی چې تاسو بسم الله اووائی او خورئی. مقصد دادې چې کله مسلمانانو غوښه راوړه نو په دې باره کښې خامخا د بدګمانئی شك نه دی کول پکار، حسن ظن نه کار اخستل پکار دی، کله پورې چې صراحة ترك تسمية عمدا معلوم نه وی نو بدګمانی نه دی کول پکار.

لهذا د حدیث پاك نه د ترك تسمیه عمدا د ذبیحه حلت باندې استدلال کول درست نه دی (١)

## ٢ - بَاب صَيْدِ الْمِعْرَاضِ

وَقَالَ ابْنُ عُمَرَ فِي الْمَقْتُولَةِ بِالْبُنْدُقَةِ تِلْكَ الْمَوْقُوذَةُ. وَكَرِهَهُ سَالِمٌ وَالْقَاسِمُ وَمُجَاهِدٌ وَإِبْرَاهِيمُ وَعَطَاءٌ وَالْحَسَنُ، وَكَرِهَ الْحَسَنُ رَمْيَ الْبُنْدُقَةِ فِي الْقُرَى وَالْأَمْصَارِ، وَلَا يَرَى بَأْسًا فِيمَا سِوَاهُ

[٥١٥٩] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي السَّفَرِ عَنِ الشَّعْبِيِّ قَالَ سَمِعْتُ عَدِيَّ بْنَ حَاتِمٍ رضی الله عنه قَالَ سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ صلی الله علیه وسلم عَنِ الْمِعْرَاضِ فَقَالَ « إِذَا أَصَبْتَ بِحَدِّهِ فَكُلْ، فَإِذَا أَصَابَ بِعَرْضِهِ فَقَتَلَ فَإِنَّهُ وَقِيذٌ، فَلَا تَأْكُلْ ». فَقُلْتُ أُرْسِلُ كَلْبِي. قَالَ « إِذَا أَرْسَلْتَ كَلْبَكَ وَسَمَّيْتَ، فَكُلْ ». قُلْتُ فَإِنْ أَكَلَ قَالَ « فَلَا تَأْكُلْ، فَإِنَّهُ لَمْ يُمْسِكْ عَلَيْكَ، إِنَّمَا أَمْسَكَ عَلَى نَفْسِهِ ». قُلْتُ أُرْسِلُ كَلْبِي فَأَجِدُ مَعَهُ كَلْبًا آخَرَ قَالَ « لَا تَأْكُلْ، فَإِنَّكَ إِنَّمَا سَمَّيْتَ عَلَى كَلْبِكَ، وَلَمْ تُسَمِّ عَلَى آخَرَ » [ر: ١٧٣]

د (مِعْرَاض) په تفصیل کښې د مختلفو اقوال بیان تیر شوې دې ، د (مِعْرَاض) په ښکار کښې حکم هم تیر شوې دې، که غشې په لنډوالی ښکار شوې وی نو هغه ښکار د موقوذة په حکم کښې دې او ددې خوراك جائز نه دې، دې نه پس امام بخاری رحمه الله د عبدالله بن عمر رضی الله عنه اثر نقل کړې دې، چې هوئ د (بندقه) د ښکار متعلق اوفرمائیل چې هغه د موقوذة په حکم کښې دې.

د (بندقه) نه (غله) مراده، یعنی د ښاوړې جوړه شوې هغه ګولۍ چې هغه د لیندې په ذریعه ویشتلې شی، زمونږ د زمانې بارودی ګولۍ ترې مرد نه ده ددې حکم مخکښې رازی.

عبدالله بن عمر رضی الله عنه اثر لره امام بیهقی رحمه الله موصولا نقل کړې دې. (٢)

**قوله**: وَكَرِهَهُ سَالِمٌ وَالْقَاسِمُ وَمُجَاهِدٌ وَإِبْرَاهِيمُ وَعَطَاءٌ وَالْحَسَنُ: سالم بن عبدالله بن عمر رضی الله عنه ، قاسم بن محمد ابی بکر صدیق رضی الله عنه ، مجاهد بن جبیر رضی الله عنه ، ابراهیم نخعی رضی الله عنه ، عطاء بن ابی رباح رحمه الله ، او حسن بصری رحمه الله د بندقه ښکار لره مکروه ګڼړلې دې.

سالم رحمه الله ، قاسم رحمه الله مجاهد رحمه الله او ابراهیم نخعی رحمه الله تعلیقات ابن ابی شیبة موصولا نقل کړی دی (٣)

---

١) (مرقات شرح مشکوة کتاب الصید والذبائح :١١١/٨، وتکلمه فتح الملهم :٤٨٥/٣).

٢) فتح الباری :٧٥٣/٩ عمدة القاری:٩٣/٢١)

٣) فتح الباری :٧٥٣/٩ عمدة القاری:٩٣/٢١)

دعطاء روايت عبد الرزاق اود حسن بصرى رحمه الله اثر لره ابن ابى شيبة موصولا نقل كړى دى.(١)

**قوله**: وَكَرِهَ الْحَسَنُ رَمْيَ الْبُنْدُقَةِ فِي الْقُرَى وَالأَمْصَارِ: حسن بصرى رحمه الله په كلو او ښارونو كښې د بندقه ښكار لره مكروه ګڼړلو، ځكه چې هلته دخلقو ګڼړه وى، د يو سړى د زخمى كيدو خطره وى ليكن ددې نه علاوه صحر كښې دبندقه ښكار كښې هيڅ باك نشته ګڼړى.

## ٣-باب مَا أَصَابَ الْمِعْرَاضُ بِعَرْضِهِ.

[٥١٦٠] حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ هَمَّامِ بْنِ الْحَارِثِ عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ-رضى الله عنه- قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّا نُرْسِلُ الْكِلاَبَ الْمُعَلَّمَةَ. قَالَ « كُلْ مَا أَمْسَكْنَ عَلَيْكَ ». قُلْتُ وَإِنْ قَتَلْنَ. قَالَ « وَإِنْ قَتَلْنَ ». قُلْتُ وَإِنَّا نَرْمِي بِالْمِعْرَاضِ. قَالَ « كُلْ مَا خَزَقَ، وَمَا أَصَابَ بِعَرْضِهِ فَلاَ تَأْكُلْ ». [ر: ١٧٣]

**د ترجمة الباب مقصد**: په دې ترجمة الباب او ددې نه مخكښې رمبې ترجمة الباب دواړه يو شان دى او په ظاهره كښې تكرار معلوميږى.

شيخ الحديث مولانا محمد زكريا رحمه الله فرمائى چې باب اول كښې د (صيد مغراض) مصداق خودل مقصود وو كوم چې يو ښكار ته به (صيد المعراض) وئيلې كيږى، او په دې باب كښې د (صيد المعراض) حكم بيانول مقصود دى چې ددې خوراك جائز دې، كه نه، لهذا د دواړو ترجمو به بيل بيل مقصد دې تكرار نه. (٢)

اوداهم وئيلې شوى دى چې دړومبى باب نه د امام بخارى رحمه الله د (صيد المعراض) جواز خودل وو او ددويم باب وضاحت كول غواړى چې (صيد المعراض) جائز خودې ليكن په هغه وخت كښې چې كله ښكار ددې د اړخ نه اولګى مړشوې وى، كه لنډوالى سره ښكار مړ شوې وى نو بيا هغه حلال ل نه دې لكه څنګه چې مخكښې تير شوى دى.

## ٤-باب صَيْدِ الْقَوْسِ

وَقَالَ الْحَسَنُ وَإِبْرَاهِيمُ إِذَا ضَرَبَ صَيْدًا، فَبَانَ مِنْهُ يَدٌ أَوْ رِجْلٌ، لاَ تَأْكُلِ الَّذِي بَانَ، وَتَأْكُلُ سَائِرَهُ، وَقَالَ إِبْرَاهِيمُ إِذَا ضَرَبْتَ عُنُقَهُ أَوْ وَسَطَهُ فَكُلْهُ. وَقَالَ الأَعْمَشُ عَنْ زَيْدٍ اسْتَعْصَى عَلَى رَجُلٍ مِنْ آلِ عَبْدِ اللَّهِ حِمَارٌ، فَأَمَرَهُمْ أَنْ يَضْرِبُوهُ حَيْثُ تَيَسَّرَ، دَعُوا مَا سَقَطَ مِنْهُ، وَكُلُوهُ.

**غشى سره د ښكار كولو شرطونه**: غشى سره ښكار كول بالاتفاق جائز دى. البته ددې دحلاليدو دپاره يو شرط دادې چې غشې ويشتلو سره دې بسم الله اووائى، په قصد سره تسميه وئيل نه وى ترك كړې شوې، دويم شرط دادې چې ددې خبرې يقين وى ياظن غالب وى چې ښكار ته غشئ لګيدل مړ شوى دى، دبل څه څيز مرګ نه دى، كه شك شي چې

(١) فتح البارى :٧٥٣/٩ عمدة القارى:٩٣/٢١)

(٢) الابواب والتراجم:٩١/٢).

ددې مرګ په بل څیز سره واقع شوي نو ددې ښکار استعمالول درست نه دی، او دریم شرط دادې چې غشئ ویشتلونه پس د ښکار د غائبیدو په صورت کښې ددې تلاش دې مسلسل جاری اوساتلې شی. (١)

**قوله**: وَقَالَ الْحَسَنُ وَإِبْرَاهِيمُ إِذَا ضَرَبَ صَيْدًا، فَبَانَ مِنْهُ يَدٌ أَوْ رِجْلٌ، لَا تَأْكُلِ الَّذِي بَانَ: حسن بصری رحمه الله او ابراهیم نخعی رحمه الله فرمائی چې کله ښکار ئی اوویشتلو او هغه په پښه یا لاس یا (دبدن په بله حصه اولږی) اوهغه ددې نه جدا شی (اوهغه ژوندې وو او روستو مړ شو) نو چې کومه حصه جدا شوې ده، دا خوړل جائز نه دی، باقی ټول خوړلې شی.

د حسن بصری رحمه الله دا تعلیق ابن ابی شیبة رحمه الله په صحیح سند سره موصولا نقل کړیدې (انه قال فی رجل ضرب صیدا، فابان منه ید او رجلات وهو حی ثم مات، قال لا تاکله ولا تاکل ماباَن منه الا ان تضربه فتقطعه فیموت من ساعته فاذا کان کذالك فلیاکل)

د ابراهیم رحمه الله اثره ره ابن ابی شیبة رحمه الله موصولا نقل کړیدې.

**قوله**: وَقَالَ إِبْرَاهِيمُ إِذَا ضَرَبْتَ عُنُقَهُ أَوْ وَسَطَهُ فَكُلْهُ: ابراهیم نخعی رحمه الله فرمائی چې کله تاسو ښکار په مرئ یا بالکل ددې په مینځ باندې ویشتلې وی ا و هغه مړ شوې وی نو هغه خورئی، (وسط) د سین په فتحه بالکل مینځ ته وائی.

**قوله**: وَقَالَ الْأَعْمَشُ عَنْ زَيْدٍ اسْتَعْصَى عَلَى رَجُلٍ مِنْ آلِ عَبْدِ اللَّهِ حِمَارٌ، فَأَمَرَهُمْ أَنْ يَضْرِبُوهُ حَيْثُ تَيَسَّرَ، دَعُوا مَا سَقَطَ مِنْهُ، وَكُلُوهُ: اعمش د زید نه نقل کړی دی چې ال عبدالله کښې یو سړی نه حمار وحشی نیل ګائې په غشی ویشتلو نه پس اوتښتیده. نو عبدالله حکم ورکړو چې چرته هم موقع ملاؤ شی نو دا قتل کړی، او چې ددې کومه حصه پریوزی هغه پریږدئی او باقی اوخورئی.

په دې تعلیق کښې زید ن ابن وهب اوعبدالله بن مسعود رضی الله عنه مراد دې او د (حمار) نه حمار وحشی یعنی نیل ګائې یعنی غوه(ځنګلی خر) مراد ده، د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه د خاندان یو کس ب نیل ګائې ښکار نه کوله، پدې تعلیق کښې هم دهغې ذکر دې، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې ددې سړی نوم ماته معلوم نشو. (٢)

[٥١٦١] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يَزِيدَ حَدَّثَنَا حَيْوَةُ قَالَ أَخْبَرَنِي رَبِيعَةُ بْنُ يَزِيدَ الدِّمَشْقِيُّ عَنْ أَبِي إِدْرِيسَ عَنْ أَبِي ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيِّ قَالَ قُلْتُ يَا نَبِيَّ اللَّهِ إِنَّا بِأَرْضِ قَوْمٍ أَهْلِ الْكِتَابِ، أَفَنَأْكُلُ فِي آنِيَتِهِمْ وَبِأَرْضِ صَيْدٍ، أَصِيدُ بِقَوْسِي وَبِكَلْبِي الَّذِي لَيْسَ بِمُعَلَّمٍ، وَبِكَلْبِي

---

(١) تفصیل د پاره اوګورئی: رد المختار:٦/٤٦٨).

(٢) فتح الباری :٩/٧٥٥)

الْمُعَلَّمِ، فَمَا يَصْلُحُ لِي قَالَ «أَمَّا مَا ذَكَرْتَ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ فَإِنْ وَجَدْتُمْ غَيْرَهَا فَلَا تَأْكُلُوا فِيهَا، وَإِنْ لَمْ تَجِدُوا فَاغْسِلُوهَا وَكُلُوا فِيهَا، وَمَا صِدْتَ بِقَوْسِكَ فَذَكَرْتَ اسْمَ اللَّهِ فَكُلْ، وَمَا صِدْتَ بِكَلْبِكَ الْمُعَلَّمِ فَذَكَرْتَ اسْمَ اللَّهِ فَكُلْ، وَمَا صِدْتَ بِكَلْبِكَ غَيْرِ مُعَلَّمٍ فَأَدْرَكْتَ ذَكَاتَهُ فَكُلْ». [٥١٧٧، ٥١٧٠]

ابو ثعلبه خشنى رضی الله عنه عرض اوکړو چې یا رسول الله ﷺ ! څه په اهل کتابو کښې اوسیږم، آیا څه د هغوئ په لوښو کښې خوراك کولې شم ؟ او دښکار په زمکه کښې اوسیږم، په کمان سره، کلب غیر معلم او کلب معلم سره ښکار کوم نو ما دپاره کوم یو صورت بهتر دې ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې داهل کتابو متعلق چې تاکوم ذکر کړې دې د هغې حکم دادې که ته دهغې نه سوا بل لوښې مومې نو دهغوئ په لوښی کښې خوراك مه کوه.اوکه بل لوښې ملاؤ نشی نو هغه وینځه، بیا به هغې کښې خوراك کوه، او خپل کمان سره چې تا کوم ښکار کړې دې که په دې باندې دې بسم الله وئیلی وی نو خوره، چې کوم سپی ته تعلیم وی نو خوره، په هغې کښې دې ښکار اوکړو، که په هغې باندې تا بسم الله وئیلی وی نو خوره، کلب غیر معلم په ذریعه چې تاکوم ښکار کړې دې و ددې د ذبیحه کولو موقع چې موندې ده هغه هم خوړې شې.

دا حدیث پاك امام بخاری رحمه الله دلته په رومبی ځل ذکر کړې دې.[1]

دا روایت ابوثعلبة خشنى رضی الله عنه نه روایت دې چې د ابو ثعلبه خشی د نوم باره کښې مختلف اقوال دی. جرثوم، جرهم، ناشب، غرنوق، ناشر، لاش دده دپلار نوم کښې هم اختلاف دې، عمرو ، ناشب، جلهم، خمیر.[2]

**قوله** :يَانَبِيَّ اللَّهِ إِنَّا بِأَرْضِ قَوْمٍ أَهْلِ الْكِتَابِ: ددې نه د شام زمکه مراد ده، د عربو ډیر قبیلې په شام کښې اوسیدې، او نصرانیان شوی وو، په دوئ کښې یوه قبیله د ابو ثعلبه هم وه.[3]

**دکفارو دلوښو د استعمال حکم** : «أَفَنَأْكُلُ فِي آنِيَتِهِمْ.....»، «انية» د «اناء» جمع ده، او «اوانى» د «انية» جمع ده.

---

[1] (الحديث اخرجه البخاری ايضا فی باب ما جاء فی التصيد (رقم الحديث:٥١٧٠)و باب انية المجوس والميتة (رقم الحديث:٥١٧٧) واخرجه مسلم فی كتاب الصيد والذبائح باب الصيد بالكلاب المعلمة رقم الحديث :١٩٣٠. واخرجه ابوداؤد فی كتاب الاطعمة باب الاكل فی انية اهل الكتاب (رقم الحديث:٣٨٣٩) وفی السير باب ماجاء فی الانتفاع بانية المشركين (رقم الحديث:١٦٠٥) و فی الاطعمة باب ما جاء فی الاكل فی انية الكفار (رقم الحديث:١٨٨٥) واخرجه النسائی فی الصيد باب صيد الكلب الذی ليس بمعلم:رقم الحديث:٤٢٦٦. واخرجه فی الصيد باب صيد الكلب: رقم الحديث:٣٢٤٦، و باب صيد القوس:رقم الحديث: ٣٢٥٠).

[2] ) فتح البارى :٧٥٦/٩)

[3] ) فتح البارى :٧٥٦/٩)

د مشرکانو او د کافرانو دلوښو د استعمالولو حکم دادئ که په دې کښې د نجاست کيدو يقين وى نو داسې صورت کښې بغير د وينځلو نه ددې استعمال جائز نه دې. حرام دی او د وينځلو نه پس استعمال بلا کراهت جائز دې. که بل لوښې وی يا نه وی. نو امام احمد رحمه الله فرمائی چې:

«ويكره الاكل والشرب فى اوانى المشركين قبل الغسل ومع هذا لو تاكلوا او شرب فيها قبل الغسل جاز، ولا يكون اكلا ولا شاربا حراما وهذا اذا لم يعلم بنجاسة الاوانى فاما اذا اعلم فانه لا يجوز ان يشرب ويأكل منها قبل الغسل ولو شرب اواكل كان شاربا اواكلا حراما» (۱).

د حديث باب الفاظ دى چې «فان وجدتم غيرها اتيتهم فلا تاكل فيها» نه ظاهره معلوميږى، که نور لوښى وى نو داهل کتابو لوښى استعمالول نه دى پکار، او چې فقهاء کرامو ددې اجازت ورکړو، په ظاهره دواړو کښې تعارض دې.

ددې جواب دا ورکړې شوې دې چې مذکوره سوال ددې لوښو متعلق وو چې په هغې کښې نجاست وو، نو د ابو داؤد په روايت کښې ددې تصريح شوې ده چې «انا تجاوز اهل الكتاب وهم يطبخون فى قدورهم الخنزير ويشربون فى اتيتهم الخمر» (۲)او ظاهر دى چې خنزير او خمر دواړه حرام دی، دداسې لوښو استعمالول د وينځلو نه بغير ناجائز دی، او حرام دی، اوکه نور لوښى موجود وى نو ددې استعمال د وينځلو نه باوجود مکروه دې.

او دويم جواب دادئ چې په دې حديث پاک کښې نهی تنزيهی ده چې جواز سره جمع کيدې شی، لهذا د فقهاء کرامو د فتوې او د حديث پاک په ظاهر د مفهوم کښې دواړو کښې څه تعارض نشته دی. (۳)

علامه ابن حزام او ظاهريه د حديث په ظاهر باندې عمل کوی او فرمائی چې د مشرکانو او کافرانو په لوښو کښې استعمال دوؤ شرطونو سره جائز دې، ړومبې شرط دادئ چې نور لوښى نه وى او دويم شرط دادئ چې هغه دې اووينځلې شی. (۴)

## ۵- بَابُ الْخَذْفِ وَالْبُنْدُقَةِ

[۵۱۶۲] حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ رَاشِدٍ حَدَّثَنَا وَكِيعٌ وَيَزِيدُ بْنُ هَارُونَ - وَاللَّفْظُ لِيَزِيدَ - عَنْ كَهْمَسِ بْنِ الْحَسَنِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُغَفَّلٍ أَنَّهُ رَأَى رَجُلاً يَخْذِفُ فَقَالَ لَهُ لاَ تَخْذِفْ فَإِنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - نَهَى عَنِ الْخَذْفِ - أَوْ كَانَ يَكْرَهُ الْخَذْفَ - وَقَالَ «إِنَّهُ لاَ يُصَادُ بِهِ صَيْدٌ وَلاَ يُنْكَى بِهِ عَدُوٌّ، وَلَكِنَّهَا قَدْ تَكْسِرُ السِّنَّ وَتَفْقَأُ

---

۱) فتوى عالمگيرى:۵/۳۴۷)

۲) سنن ابوداود كتاب الاطعمة باب الاكل فى انية اهل الكتاب:۳/۳۶۳، رقم الحديث: ۳۸۳۹).

۳) فتح البارى :۹/ ۷۵۶)

۴) فتح البارى :۹/۷۵۷)

الْعَيْنَ». ثُمَّ رَآهُ بَعْدَ ذَلِكَ يَخْذِفُ فَقَالَ لَهُ أُحَدِّثُكَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - أَنَّهُ نَهَى عَنِ الْخَذْفِ. أَوْ كَرِهَ الْخَذْفَ، وَأَنْتَ تَخْذِفُ لاَ أُكَلِّمُكَ كَذَا وَكَذَا. [ر: ٤٥٦١]

(خذف) خاء سره د گوتو په ذريعه كاڼرو ويشتلو ته وائي، ابن المنذر فرمائي چې (الخذف، رميك حصاة او نواة تاخذ بين سبابتيك وترمى بها) او (حذف) حاء مهمله سره (رمى بالعصا) كوتك سره يو څيز وهل او ويشتلو ته وائي. (١) ابن اثير رحمه الله فرمائي چې (حذف رمى) اوضرب دواړو دپاره استعماليږي(٢)

او د (بندوقة) متعلق علامه عينى رحمه الله فرمائي چې (طينة مدورة مجففة يرمى بها عن الجلاهق) (٣) يعنى دښاوړې نه جوړ شوى هغه ګول او چې ګولئ چې په لينده كښې ويشتلې كيږى، هغې ته په اردو كښې غله وائي.

**غليل يعنى ليندې سره دښكار حكم:** (جلاهق) دجيم په ضمه او دهاء په كسره سره، غليل يعنى ليندې ته وائى. لينده سره چې كوم ښكار كولې شى، دهغې باړه كښې د جمهورو مسلك دې چې كلّه پوري هغه ذبح نه كړې شى. دهغې استعمال جائز نه دې ځكه هغه د (موقوذة) په حكم كښې ده. (٤)

داشان يو حديث كښې نبى كريم صلى الله عليه وسلم فرمائيلى دى چې (ولاتاكل من البندقة الاما ذكيت) (٥) ابن المسيب او ابن ابى ليلى نه د بندقه يعنى دغله په ذريعه د ښكار جواز منقول دې. (٦)

**د ټوپک ګولئ سره د ښكار كولو حكم:** باقى نن سبا چې د ټوپك ګولئ سره كوم ښكار كولې شى. دهغې حكم متعلق هم د فقهاء كرامو اقوالو كښې اختلاف دې.

د متقدمينو په كتابونو كښې د ټوپك د ګولئ متعلق حكم نه ملاويږى ځكه چې د ټوپك ګولئ په اتمه يا لسمه صدئ كښې عام شوې ده.

په حنفيه كښې د ابن عابدين او ابن نجيم د ګولئ ښكار لره د (موقوذة) په حكم كښې ګرزولې ده او دې ته ئې ناجائز وئيلى دى، مګر چې هغه ژوندئى ملاؤ شى او دا شرعى طريقې سره ذبح كړې شى.

مالكيه دجواز فتوى وركړې ده، نو علامه دردير رحمه الله، علامه سوقى رحمه الله او علامه صاوى رحمه الله ددې د جواز تصريح كړې ده. (٧)

---

(١) عمدة القارى: ٩٦/٢١)

(٢) عمدة القارى: ٩٦/٢١/٢١،٩٦، النهاية لابن الاثير: ٣٥٦/١).

(٣) عمدة القارى: ٢١/)٩٦)

(٤) المغنى لابن قديمة: ٣٧/١١)

(٥) المغنى لابن قديمة: ٣٧/١١)

(٦) المغنى لابن قديمة: ٣٧/١١)

(٧) حاشية الدسوقى على الشرح الكبير للدردير: ١٠٣/٢، وحاشية الصاوى على الشرح الصغير للدردير: ١٦٢/٢)

علامه شوكانى رحمه الله هم دا جائز گرزولې دى[1]، په حنيفه كښې علامه سندهى هم دې لره جائز گرزولى دى.[2]

داحضرات فرمائى چې د ټوپك گولۍ كښې خرق وى.

دا اختلاف دټوپك د عام باردوى گولۍ كښې دې، ليكن كه محدد او نوكدار وى لكه څينو صورتونو كښې د كلاشنكوف، جى تهرى، او تهرى ناټ تهرى وغيره گولۍ يا نوكداره چهرو والا كارتوس وى نو دداسې نوكدار گولۍ ښكار بالاتفاق درست دى. څكه چې په دې كښې خرق وى او ددې د چيتولو صلاحيت په دې كښې وى، ددې وجې داسې گولۍ د آلات جارحه په شمار كښې رازى.

په دې كښې اصل هم دادې چې كوم څيز پخپله جارح نه وى بلكه زور او پريشر سره ښكار لره زخمى كړى نو هغه د (موقوذة) په حكم كښې ده، او حلاله نه ده د ټوپك گولۍ او دليندې گولۍ هم چونكه جارح نه وى، ددې وجې دهغې ښكار كه قبل الذبح كړې شى نو ددې استعمال جائز نه دې.

**قوله**: حدثني يوسف بن راشد......: عبدالله بن مغفل يو سړې اوليدو چې په گوتو سره ئې كانړۍ ويشتلو، نو هغه ته ئې اووئيل چې دا مه اوله. څكه چې نبى كريم ﷺ ددې نه منع كړې ده، يا ئې دا اووئيل چې نبى كريم ﷺ به په گوتو سره كانړى ويشتلو لره مكروه گنړل. او وې فرمائيل چې نه دې سره ښكار كيديشى او نه دې سره څوك دښمن زخمى كولې شى. البته اكثرو وختونو كښې دا يو سړې ماتولې شى، اوستركه ويستلې شى، عبدالله بن مغفل رضي الله عنه بيا د هغه دا سړې اوكتلو چې ده په گوتو كانړى ويشتل نو وې فرمائيل چې ماتاته د نبى كريم ﷺ حديث بيان كړې دې چې نبى كريم ﷺ بهٔ دا مكروه گنړل، ليكن ددې باوجود ته په گوتو سره كانړى اولې. څهٔ به تاسره بياخبرې نه كوم.

**قوله**: انه راى رجلا: حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چې ددې سړى نوم ماته معلوم نشو.[3]

**قوله**: إِنَّهُ لاَ يُصَادُ بِهِ صَيْدٌ: يعنى كانړى په گوتو ويشتل عام طور سره ښكاره كولې دې نه شى. او كه داشان كانړى ويشتلو سره ښكار مړ هم شى نو هغه دِ (موقوذة) په حكم كښې دې او ددې استعمال جائز نه دې.[4]

**قوله**: وَلاَ يُنْكَى بِهِ عَدُوٌّ: (نكا...نكاية) د باب فتح نه ، ددې معنى ده زخمى كيدل يعنى دښمن لره په دې عمل سره په ميدان جنگ كښې نشى زخمى كولې، البته څان سره نزدې د ناستو خلقو به په دې سره دهغوئ غاښونه مات كړى يا به ئې سترگې اوباسى. مقصد دادې

---

[1] (فتح القدير:٢/٩)

[2] (التحرير المختار للعرافى :٣١٥)

[3] فتح البارى :٧٥٨/٩)

[4] فتح البارى :٧٥٨/٩)

چي دې حرکت سره هيڅ فائده نشته دې اونه دې سره ددښمن مقابله کولې شي، او نه ښکاره کولې شي، البته خپل يو کس ته نقصان رسولې شي.

**قوله**: لَا أُكَلِّمُكَ كَذَا وَكَذَا: (كَذَا وَكَذَا) د لته مبهم ده، دمسلم روايت کښې دی چې (لا أكلمك ابدا) ([1])

دې نه معلوم شوې چې د سنت مخالفت کوونکې سړی سره ترک تعلق او ترک کلام اختيار کولې شي. او دا د دريو ورځو نه زيات يو مسلمان سره ترک کلام کوم چې وارد شوې دې په دې کښې دا داخل نه دی، ځکه هغه نهې د هغه سړی متعلق کيديشي چې چا سره خپله ذاتی غصه اونفرت په وجه ترک کلام کوی. ([2])

## ۶-بَاب مَنِ اقْتَنَى كَلْبًا لَيْسَ بِكَلْبِ صَيْدٍ أَوْ مَاشِيَةٍ.

[۵۱۶۳] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُسْلِمٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ دِينَارٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ - رضى الله عنهما - عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «مَنِ اقْتَنَى كَلْبًا لَيْسَ بِكَلْبِ مَاشِيَةٍ أَوْ ضَارِيَةٍ، نَقَصَ كُلَّ يَوْمٍ مِنْ عَمَلِهِ قِيرَاطَانِ».

[۵۱۶۴] حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ بْنُ إِبْرَاهِيمَ أَخْبَرَنَا حَنْظَلَةُ بْنُ أَبِي سُفْيَانَ قَالَ سَمِعْتُ سَالِمًا يَقُولُ سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ يَقُولُ سَمِعْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ «مَنِ اقْتَنَى كَلْبًا إِلاَّ كَلْبَ ضَارٍ لِصَيْدٍ أَوْ كَلْبَ مَاشِيَةٍ، فَإِنَّهُ يَنْقُصُ مِنْ أَجْرِهِ كُلَّ يَوْمٍ قِيرَاطَانِ».

[۵۱۶۵] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «مَنِ اقْتَنَى كَلْبًا إِلاَّ كَلْبَ مَاشِيَةٍ أَوْ ضَارٍ، نَقَصَ مِنْ عَمَلِهِ كُلَّ يَوْمٍ قِيرَاطَانِ».

(اقتناء) په معنی د پاللو کښې ده، او (ماشية) اسم دې چې د اوښ. غوا او چيلئ دپاره استعماليږی، ددې جمع مواشی ده، کلب ماشيه يعنی هغه سپې چې ځناور وغيره حفاظت دپاره پاللې کيږی.

د باب تحت امام بخاری رحمه الله د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما روايت په دريو طريقو سره نقل کړيدې، دهغې حاصل دادې که څوک سړې سپې اوساتی او هغه دښکار دپاره نه وی اونه د خپل حفاظت دپاره نوی ددهٔ اجر کښې دوه قيراطه هره ورځ کميږی معلوم شو که هغه ښکار يا حفاظت غرض دسپی ساتلو وی نو ددې په شريعت کښې هيڅ اجازت شته دې.

**قوله**: لَيْسَ بِكَلْبِ صيد ولا ضَارِيَةٍ: ضَارِيَةٍ د اسم فاعل مؤنث صيغه ده، باب سمع نه ده، (ضرى الكلب بالصيد) دسپی ښکار عادت کيدل، (ضاری) ښکاری يا د ښکار عادت شوې.

---

[1]) فتح الباری :۹/۷۵۹)

[2]) فتح الباری :۹/۷۵۹)

(ضارية) د مؤنث په ځائې (ضارى) مذکر ته هم وئيلې کيږى، ځکه چې دا د کلب صفت دې، ليکن د (ماشية) مناسبت (ضارية) راغلې دې، چې په دواړو کښې د وزن اعتبار سره تناسب برقرار پاتې شى. لکه څنګه چې وائى (لا دريت ولا تليت) حالانکه (تلوت) پکار دې ليکن (دريت) مناسبت سره تليت وئيلې شى. (١)

## ٧- باب إذا أكل الكلب

وَقَوْلُهُ تَعَالَى (يَسْأَلُونَكَ مَاذَا أُحِلَّ لَهُمْ قُلْ أُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبَاتُ وَمَا عَلَّمْتُمْ مِنَ الْجَوَارِحِ مُكَلِّبِينَ) الصَّوَائِدُ وَالْكَوَاسِبُ. (اجْتَرَحُوا) اكْتَسَبُوا. (تُعَلِّمُونَهُنَّ مِمَّا عَلَّمَكُمُ اللَّهُ فَكُلُوا مِمَّا أَمْسَكْنَ عَلَيْكُمْ) إِلَى قَوْلِهِ (سَرِيعُ الْحِسَابِ). وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ إِنْ أَكَلَ الْكَلْبُ فَقَدْ أَفْسَدَهُ، إِنَّمَا أَمْسَكَ عَلَى نَفْسِهِ وَاللَّهُ يَقُولُ (تُعَلِّمُونَهُنَّ مِمَّا عَلَّمَكُمُ اللَّهُ) فَتُضْرَبُ وَتُعَلَّمُ حَتَّى يَتْرُكَ. وَكَرِهَهُ ابْنُ عُمَرَ. وَقَالَ عَطَاءٌ إِنْ شَرِبَ الدَّمَ وَلَمْ يَأْكُلْ، فَكُلْ.

[ ٥١٦٦] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ عَنْ بَيَانٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ قَالَ سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قُلْتُ إِنَّا قَوْمٌ نَصِيدُ بِهَذِهِ الْكِلاَبِ. فَقَالَ « إِذَا أَرْسَلْتَ كِلاَبَكَ الْمُعَلَّمَةَ وَذَكَرْتَ اسْمَ اللَّهِ، فَكُلْ مِمَّا أَمْسَكْنَ عَلَيْكُمْ، وَإِنْ قَتَلْنَ إِلاَّ أَنْ يَأْكُلَ الْكَلْبُ، فَإِنِّي أَخَافُ أَنْ يَكُونَ إِنَّمَا أَمْسَكَهُ عَلَى نَفْسِهِ، وَإِنْ خَالَطَهَا كِلاَبٌ مِنْ غَيْرِهَا فَلاَ تَأْكُلْ ». [ر: ١٧٣]

علامه عينى رحمه الله فرمائى چې (باب اذا اكل الكلب) شرط دې. اوجواب شرط (لا يوكل) محذوف دې. (٢)

دې نه پس باب کښې د امام بخارى رحمه الله د سورت مائده د آيت کريمه ذکر کړې دې.

**قوله**: (يَسْئَلُونَكَ مَاذَآ أُحِلَّ لَهُمْ قُلْ أُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبٰتُ وَمَا عَلَّمْتُمْ مِّنَ الْجَوَارِحِ مُكَلِّبِيْنَ تُعَلِّمُوْنَهُنَّ مِمَّا عَلَّمَكُمُ اللّٰهُ فَكُلُوْا مِمَّآ أَمْسَكْنَ عَلَيْكُمْ وَاذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهِ): ترجمه: دوى ستانه تپوس کوى چې دوى دپاره کوم کوم څاروى حلال شوى دى ورته اووايه ستاسو دپاره ټول پاکيزه څيزونه حلال دى او کوم ښکارى ځناور چې تاسو عادت کړې وى اوبيا تاسوئې په ښکار پسې پريږدئ او دغه تعليم (د ښکار طريقه) مو ورته خودلې وى کومه چه الله جل جلاله تاسو ته خودلې ده نو کوم ښکار چې هغوئ ستاسو دپاره راونيسى هغه خورئ شئ (او د ورپريخودلو په وخت) کښې پرې د الله جل جلاله نوم اخلئ

---

١) (عمدة القارى : ٩٨/٢١، الحديث اخرجه البخارى فيه ايضا رقم الحديث:٥١٦٤،و ايضا فيه رقم الحديث:٥١٦٥)

٢) عمدة القارى:٩٨/٢١)

حضرات فقهاء كرام د پورته آيت مبارك نه د پنځه شرطونه استنباط كړى دى.

**ايت كريمه نه د پنځو شرطونو استنباط**: ړومبې شرط دادې چې هغه سپې يا باز ته تعليم وركړې شوې وى دا شرط د «وماعلمتم» نه ما خوذ دې.

دويم شرط دادې چې سړې خپلې ارادې سره ښكارى سپې يا باز دښكار د نيولو دپاره پريښودې وى، دا نه وى چې پخپله په ښكارپسې منډې وهى او هغه راؤنيسى، دا شرط د «مكلبين» نه ماخوذ دې، ځكه چې دا لفظ د «تكلب» نه مشتق دې، چې ددې معنى سپو ته د خودنې كولو ده، بيا هر ښكارى ځناور يعنى باز وغيره خودلو ته او ښكار كول په معنى كښې استعمال شوى، نو ځينو مفسرينو ددې تفسير دا ارسال كړېدې، چې دهغې معنى ښكار دپاره پريښودل دى.

دريم شرط دادې چې ځناور د ښكار نه پخپله خوراك اونه كړى بلكه تالره ئې راؤړى. داشرط د «مما امسكن عليكم» نه ماخوذ دې.

ځلورم شرط د «اسم الله» وئيل دى، چې ددې حكم «واذكر اسم الله» كښې وركړې شوې دې.

او پنځم شرط دادې چې ښكارى سپې ښكار لره زخمى هم كړى او داشرط د «الجوارح» نه ماخود دې، دا شرط صرف د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزدې. [1]

دلته داخبره ياد ساتل پكار دى چې دا حكم د هغه وحشى ځناور متعلق دې چې كوم د انسان په قبضه كښې نه وى، ليكن كه يو وحشى ځناور په قبضه كښې راغلو نو بيا هغه ذبح كولو نه بغير حلال نه دى.

**قوله**: الصَّوَائِدُ وَالْكَوَاسِبُ: «الصَّوَائِدُ» د صائد جمع ده او كواسب د كاسبة جمع ده. علامه عينى رحمه الله فرمائى چې دا د الجوارح صفت دې، [2] او حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چې دا د كلاب صفت دې [3] يعنى ښكار كول او ګټلو والا درندې يا سپى.

**قوله**: اجْتَرَحُوا اكْتَسَبُوا: دا لفظ په يو بل آيت مبارك كښې «الَّذِينَ اجْتَرَحُوا السَّيِّئَاتِ» فرمائى چې دا «اجْتَرَحُوا السَّيِّئَاتِ» معنى كول د ګټلو ده، د كواسب مناسب سره دا لفظ لره اكتساب په معنى كښې دى.

**قوله**: وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ إِنْ أَكَلَ الْكَلْبُ فَقَدْ أَفْسَدَهُ، إِنَّمَا أَمْسَكَ عَلَى نَفْسِهِ وَاللَّهُ يَقُولُ......: عبدالله بن عباس رضى الله عنهما فرمائى چې كله سپى ښكار او خوړو نو ده دا فاسد كړو اوس ددې استعمال جائز نه دې، ځكه چې خپل ځان دپاره ئې نيولې دې او الله تعالى جل جلاله فرمائى چې تاسو دې سپو لره تعليم وركړئى. اوكله چې ده پخپله اوخوړله نو

[1]) اوګورئى معارف القرآن سورة المائدة:٣/٤١).
[2]) عمدة القارى:٢١/٩٩)
[3]) فتح البارى :٩/٧٦١)

معلوم شو چې هغه ته تعليم نه دې ورکړې شوې. نو ددې استعمال درست نه دې. د تعليم ورکولو طريقه داده چې هغه دې اووهلې شى، او هغه ته دې تعليم ورکړې شى. تر دې پورې چې د ښکار کولو نه پس هغه پريږدى او ‹حتى تترك› يعنى ‹الاكل، تترك› مفعول به ‹اكل› دې. عبدالله بن عباس رضى الله عنه دا تعليق د سعيد بن منصور نه موصولا نقل کړې دې.(١)

**قوله**: وَكَرِهَهُ ابْنُ عُمَرَ: عبدالله بن عمر داسې ښکار لره چې هغه سپى خوړلې وى مکروه ګنړلو.

**قوله**: وَقَالَ عَطَاءٌ إِنْ شَرِبَ الدَّمَ وَلَمْ يَأْكُلْ، فَكُلْ: عطاء بن ابى رباح رحمه الله فرمائى چې سپى د ښکار وينه او څکله ليکن ددې غوښه ئې او نه خوړله نو داسې ښکار استعمال جائز دې.

ابن ابى شيبة دا تعليق موصولا نقل کړې دې.(٢)

## ٨- باب الصَّيْدِ إِذَا غَابَ عَنْهُ يَوْمَيْنِ أَوْ ثَلاَثَةً

[٥١٦٧] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا ثَابِتُ بْنُ يَزِيدَ حَدَّثَنَا عَاصِمٌ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ -رضى الله عنه- عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «إِذَا أَرْسَلْتَ كَلْبَكَ وَسَمَّيْتَ فَأَمْسَكَ وَقَتَلَ، فَكُلْ، وَإِنْ أَكَلَ فَلاَ تَأْكُلْ، فَإِنَّمَا أَمْسَكَ عَلَى نَفْسِهِ، وَإِذَا خَالَطَ كِلاَبًا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهَا فَأَمْسَكْنَ وَقَتَلْنَ فَلاَ تَأْكُلْ، فَإِنَّكَ لاَ تَدْرِى أَيُّهَا قَتَلَ، وَإِنْ رَمَيْتَ الصَّيْدَ فَوَجَدْتَهُ بَعْدَ يَوْمٍ أَوْ يَوْمَيْنِ، لَيْسَ بِهِ إِلاَّ أَثَرُ سَهْمِكَ، فَكُلْ، وَإِنْ وَقَعَ فِى الْمَاءِ فَلاَ تَأْكُلْ». وَقَالَ عَبْدُ الأَعْلَى عَنْ دَاوُدَ عَنْ عَامِرٍ عَنْ عَدِىٍّ أَنَّهُ قَالَ لِلنَّبِىِّ -صلى الله عليه وسلم- يَرْمِى الصَّيْدَ فَيَقْتَفِرُ أَثَرَهُ الْيَوْمَيْنِ وَالثَّلاَثَةَ، ثُمَّ يَجِدُهُ مَيِّتًا وَفِيهِ سَهْمُهُ قَالَ «يَأْكُلُ إِنْ شَاءَ». [ر: ١٧٣]

امام بخارى رحمه الله په دې باب کښې دا مسئله بيانول غواړى که يو سړى ښکار اوکړو ليکن هغه ښکار دده نه غائب شو او ده ته درې ورځې پس ملاؤ شو نو ددې حکم دادې چې که ښکارى ته يقين وى چې ښکار هم په دې غشى سره مړ شوې دې نو دا خوړلې شى ليکن که په ښکار کښې د مړ کيدو څه علامت او سبب هم په نظر نه رازى لکه اوبو کښې ډوب شوې وى يا د يو غرنه راپريوتې معلوميږى نو داسې صورت کښې ددې استعمال جائز نه دې. ليکن ددې دپاره شرط دادې چې ښکارى د ښکار کولو نه پس ددې تلاش مسلسل جارى اوساتى.

**قوله**: وَقَالَ عَبْدُ الأَعْلَى عَنْ دَاوُدَ عَنْ عَامِرٍ عَنْ عَدِىٍّ أَنَّهُ قَالَ لِلنَّبِىِّ -صلى الله عليه وسلم- يَرْمِى الصَّيْدَ فَيَقْتَفِرُ أَثَرَهُ الْيَوْمَيْنِ: عدى بن حاتم رضى الله عنه سوال

---

١) فتح البارى :٧٦١/٩ عمدة القارى:١٠٠/٢١)

٢) عمدة القارى:١٠٠/٢١)

اوكړو چې ښكار باندې غشي ويسشتلې شو (دغائبيدونه پس) ددې تلاش دوه يا درې ورځې ښكارى جارى اوساتلو بيا هغه په مړ حالت كښې اوموندې شو چې د ښكار غشي دهغه په بدن كښې پيوست شوې وو نو ددې څه حكم دې؟ نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چې كه هغه غوارړى نو خوړلې شى.

(يقتفى) د (اقتفاء) نه دې. چې ددې معنى تتبع او تلاش كول دى. دا لفظ (يقتفر) هم مروى دې. د (اقتفار) معنى هم تلاش كول او تتبع ده (۱)

دصحيح مسلم په روايت كښې دى چې نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چې (اذا رميت سهمك فغاب عنك فادركته فكل مالم ينتن) (۲)

په دې كښې د (مالم ينتن) قيد دې چې كله پورې هغه بدبودار نه شى نو هغه وخت پورې هغه خوړلې شى، كه هغه دومره بدبودار شوې دې چې ددې خوراك مضر صحت دې نوددې استعمال خو بيا حرام دې ليكن كه په دې كښې لږ شان بد بو هم پيدا شوې دې نو ددې استعمال جائز نه دې بيا هم د حديث پاك په وجه سره كراهت تنزيهى نه بهر حال خالى نه دې. عبدالاعلى مذكوره تعليق د امام بخارى رحمه الله نه موصولا نقل كړې دې. (۳)

## ۹- بَاب إِذَا وَجَدَ مَعَ الصَّيْدِ كَلْبًا آخَرَ

[۵۱۶۸] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي السَّفَرِ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي أُرْسِلُ كَلْبِي وَأُسَمِّي فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «إِذَا أَرْسَلْتَ كَلْبَكَ وَسَمَّيْتَ، فَأَخَذَ فَقَتَلَ فَأَكَلَ فَلاَ تَأْكُلْ، فَإِنَّمَا أَمْسَكَ عَلَى نَفْسِهِ». قُلْتُ إِنِّي أُرْسِلُ كَلْبِي أَجِدُ مَعَهُ كَلْبًا آخَرَ، لاَ أَدْرِي أَيُّهُمَا أَخَذَهُ. فَقَالَ «لاَ تَأْكُلْ فَإِنَّمَا سَمَّيْتَ عَلَى كَلْبِكَ وَلَمْ تُسَمِّ عَلَى غَيْرِهِ». وَسَأَلْتُهُ عَنْ صَيْدِ الْمِعْرَاضِ فَقَالَ «إِذَا أَصَبْتَ بِحَدِّهِ فَكُلْ، وَإِذَا أَصَبْتَ بِعَرْضِهِ فَقَتَلَ، فَإِنَّهُ وَقِيذٌ، فَلاَ تَأْكُلْ». [ر: ۱۷۳]

ښكارى سپى سره يو بل سپې په ښكار كښې شريك شو نو ددې خوراك جائز دې كه نه. حديث شريف كښې ددې علت بيان كړې شوېدې چې (فاما سميت على كلبك ولم تسم على غيره).

## ۱۰- بَاب مَا جَاءَ فِي التَّصَيُّدِ.

[۵۱۶۹] حَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ أَخْبَرَنِي ابْنُ فُضَيْلٍ عَنْ بَيَانٍ عَنْ عَامِرٍ عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ - رضى الله عنه - قَالَ سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَقُلْتُ إِنَّا قَوْمٌ نَتَصَيَّدُ بِهَذِهِ

---

(۱) عمدة القارى: ۱۰۱/۲۱)

(۲) فتح البارى: ۷۶۳/۹)

(۳) فتح البارى: ۷۶۳/۹، عمدة القارى: ۱۰۱/۲۱)

الْكِلَابِ. فَقَالَ «إِذَا أَرْسَلْتَ كِلَابَكَ الْمُعَلَّمَةَ وَذَكَرْتَ اسْمَ اللَّهِ، فَكُلْ مِمَّا أَمْسَكْنَ عَلَيْكَ، إِلَّا أَنْ يَأْكُلَ الْكَلْبُ، فَلَا تَأْكُلْ فَإِنِّي أَخَافُ أَنْ يَكُونَ إِنَّمَا أَمْسَكَ عَلَى نَفْسِهِ، وَإِنْ خَالَطَهَا كَلْبٌ مِنْ غَيْرِهَا، فَلَا تَأْكُلْ». [ر: ۱۷۳]

[۵۱۷۰] حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ عَنْ حَيْوَةَ. وَحَدَّثَنِي أَحْمَدُ بْنُ أَبِي رَجَاءٍ حَدَّثَنَا سَلَمَةُ بْنُ سُلَيْمَانَ عَنِ ابْنِ الْمُبَارَكِ عَنْ حَيْوَةَ بْنِ شُرَيْحٍ قَالَ سَمِعْتُ رَبِيعَةَ بْنَ يَزِيدَ الدِّمَشْقِيَّ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبُو إِدْرِيسَ عَائِذُ اللَّهِ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيَّ - رضي الله عنه - يَقُولُ أَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّا بِأَرْضِ قَوْمٍ أَهْلِ الْكِتَابِ، نَأْكُلُ فِي آنِيَتِهِمْ، وَأَرْضِ صَيْدٍ أَصِيدُ بِقَوْسِي، وَأَصِيدُ بِكَلْبِي الْمُعَلَّمِ، وَالَّذِي لَيْسَ مُعَلَّمًا، فَأَخْبِرْنِي مَا الَّذِي يَحِلُّ لَنَا مِنْ ذَلِكَ فَقَالَ «أَمَّا مَا ذَكَرْتَ أَنَّكَ بِأَرْضِ قَوْمٍ أَهْلِ الْكِتَابِ، تَأْكُلُ فِي آنِيَتِهِمْ، فَإِنْ وَجَدْتُمْ غَيْرَ آنِيَتِهِمْ، فَلَا تَأْكُلُوا فِيهَا، وَإِنْ لَمْ تَجِدُوا فَاغْسِلُوهَا ثُمَّ كُلُوا فِيهَا، وَأَمَّا مَا ذَكَرْتَ أَنَّكَ بِأَرْضِ صَيْدٍ، فَمَا صِدْتَ بِقَوْسِكَ، فَاذْكُرِ اسْمَ اللَّهِ، ثُمَّ كُلْ، وَمَا صِدْتَ بِكَلْبِكَ الْمُعَلَّمِ، فَاذْكُرِ اسْمَ اللَّهِ، ثُمَّ كُلْ، وَمَا صِدْتَ بِكَلْبِكَ الَّذِي لَيْسَ مُعَلَّمًا فَأَدْرَكْتَ ذَكَاتَهُ، فَكُلْ». [ر: ۵۱۶۱]

[۵۱۷۱] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ شُعْبَةَ قَالَ حَدَّثَنِي هِشَامُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ - رضي الله عنه - قَالَ أَنْفَجْنَا أَرْنَبًا بِمَرِّ الظَّهْرَانِ، فَسَعَوْا عَلَيْهَا حَتَّى لَغِبُوا، فَسَعَيْتُ عَلَيْهَا حَتَّى أَخَذْتُهَا، فَجِئْتُ بِهَا إِلَى أَبِي طَلْحَةَ، فَبَعَثَ إِلَى النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - بِوَرِكِهَا وَفَخِذَيْهَا فَقَبِلَهُ. [ر: ۲۴۳۳]

[۵۱۷۲] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ أَبِي النَّضْرِ مَوْلَى عُمَرَ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ نَافِعٍ مَوْلَى أَبِي قَتَادَةَ عَنْ أَبِي قَتَادَةَ أَنَّهُ كَانَ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - حَتَّى إِذَا كَانَ بِبَعْضِ طَرِيقِ مَكَّةَ تَخَلَّفَ مَعَ أَصْحَابٍ لَهُ مُحْرِمِينَ، وَهُوَ غَيْرُ مُحْرِمٍ، فَرَأَى حِمَارًا وَحْشِيًّا، فَاسْتَوَى عَلَى فَرَسِهِ، ثُمَّ سَأَلَ أَصْحَابَهُ أَنْ يُنَاوِلُوهُ سَوْطًا، فَأَبَوْا فَسَأَلَهُمْ رُمْحَهُ فَأَبَوْا فَأَخَذَهُ ثُمَّ شَدَّ عَلَى الْحِمَارِ، فَقَتَلَهُ فَأَكَلَ مِنْهُ بَعْضُ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَأَبَى بَعْضُهُمْ، فَلَمَّا أَدْرَكُوا رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - سَأَلُوهُ عَنْ ذَلِكَ فَقَالَ «إِنَّمَا هِيَ طُعْمَةٌ أَطْعَمَكُمُوهَا اللَّهُ».

حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِي قَتَادَةَ مِثْلَهُ إِلَّا أَنَّهُ قَالَ «هَلْ مَعَكُمْ مِنْ لَحْمِهِ شَيْءٌ». [ر: ۱۷۲۵]

**د ښکار کولو حکم:** (تصید) د باب تفعیل نه دې چې دې کښې د تکلف خاصیت موندې شي.

په دې باب کښې امام بخاري رحمه الله د ښکار حکم بيان کړې دې. ښکار که څوك ذريعه معاش جوړ کړي نو دا مشروع دی او داشان که څوك دا ذريعه معاش نه جوړوی ليکن کله کله ښکار ذريعه کوی نو دا مباح دې. او څوك شوقيه ښکار کوی نو دا امام مالك رحمه الله په نيز دامکروه دی ليکن د جمهورو په نيز بلاکراهت جائز دی ليکن شرط دادې چې شکار لره ذبح کولو سره انتفاع حاصله کړې شی. او که انتفاع او ذبح کولو اراده نه وی، هسې څناورولره اوولی نودا بالاتفاق ناجائز او حرام دی.[1]

امام بخاري رحمه الله باب دښکار مشروعيت لره ددې وجې بيان کړې دې چې يو حديث پاك نه ددې عدم مشروعيت چاته هم کيدې شی چې په هغې کښې دی چې **(من سکن البادية جفا ومن اتبع الصيد غفل)** يعنی کوم سړې په کلی کښې اوسيږی، هغه ظلم اوکړو، د **(جفا)** معنی دوه دی، يو **(جفاعلی نفسه)** يعنی دې سره سړې پخپل ځان ځکه چې په کلی کښې سړی ته په کلی کښې تعليم او تربيت ډير کم ملاويږی. ددې په مقابله کښې په ښار کښې تعيلم او تربيت دپاره ماحول سازګاروی نو په کلی کښې اوسيدل او خپل ځان دپاره د تعليم و تربيت نه لرې ساتل ظلم دې.

د **(جفا)** بله معنی سختی او سنګ دلی ده. مطلب دا دې چې کوم سړې کلی اوقريه کښې اوسيږی او هغه سنګ دل وی، دده زړه سخت وی، دښار والو په مقابله کښې واقعتا د کلی والو طبيعت کښې سختی او تيزی زياته وی، **(ومن اتبع الصيد غفل)** يعنی چې کوم کس ښکار چې پسې شوم، هغه غافل شو، دښکار شوقيان عام طور د غفلت ښکار وی.

داحديث پاك په دې صورت کښې محمول دې چې کله سړې د ښکار عمل کښې داشان مستغرق شی چې دمونځ او نورو فرائضو او واجباتو کولو کښې خلل واقع شی ګنی فی نفسه د ښکار مشروعيت کښې هيڅ کلام نشته دې.

د باب په دريم روايت کښې دی چې **(انفجا ارنبا الطهران)**، **(انفج)** په معنی د **(هيج)** کښې د ه. راپارول. **(امرالظهران)**، مکې ته نزدې يو مقام دې. **(لغبوا)** په معنی د **(تعبوا)** دې ستړی کيدل.

## ۱۱- بَابُ التَّصَيُّدِ عَلَى الْجِبَالِ.

[۵۱۷۳] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ وَهْبٍ أَخْبَرَنَا عَمْرٌو أَنَّ أَبَا النَّضْرِ حَدَّثَهُ عَنْ نَافِعٍ مَوْلَى أَبِي قَتَادَةَ وَأَبِي صَالِحٍ مَوْلَى التَّوْأَمَةِ سَمِعْتُ أَبَا قَتَادَةَ قَالَ كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فِيمَا بَيْنَ مَكَّةَ وَالْمَدِينَةِ وَهُمْ مُحْرِمُونَ وَأَنَا رَجُلٌ حِلٌّ عَلَى فَرَسٍ، وَكُنْتُ رَقَّاءً عَلَى الْجِبَالِ، فَبَيْنَا أَنَا عَلَى ذَلِكَ إِذْ رَأَيْتُ النَّاسَ مُتَشَوِّفِينَ لِشَيْءٍ، فَذَهَبْتُ أَنْظُرُ، فَإِذَا هُوَ حِمَارُ وَحْشٍ فَقُلْتُ لَهُمْ مَا هَذَا قَالُوا لاَ نَدْرِي. قُلْتُ هُوَ حِمَارٌ وَحْشِيٌّ. فَقَالُوا هُوَ مَا رَأَيْتَ.

---

[1] فتح الباري: ۹/۷۵۲)

وَكُنْتُ نَسِيتُ سَوْطِي فَقُلْتُ لَهُمْ نَاوِلُونِي سَوْطِي. فَقَالُوا لاَ نُعِينُكَ عَلَيْهِ. فَنَزَلْتُ فَأَخَذْتُهُ، ثُمَّ ضَرَبْتُ فِي أَثَرِهِ، فَلَمْ يَكُنْ إِلاَّ ذَاكَ، حَتَّى عَقَرْتُهُ، فَأَتَيْتُ إِلَيْهِمْ فَقُلْتُ لَهُمْ قُومُوا فَاحْتَمِلُوا. قَالُوا لاَ نَمَسُّهُ فَحَمَلْتُهُ حَتَّى جِئْتُهُمْ بِهِ، فَأَبَى بَعْضُهُمْ، وَأَكَلَ بَعْضُهُمْ، فَقُلْتُ أَنَا أَسْتَوْقِفُ لَكُمُ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- فَأَدْرَكْتُهُ فَحَدَّثْتُهُ الْحَدِيثَ فَقَالَ لِي «أَبَقِيَ مَعَكُمْ شَيْءٌ مِنْهُ». قُلْتُ نَعَمْ. فَقَالَ «كُلُوا فَهْوَ طُعْمٌ أَطْعَمَكُمُوهَا اللَّهُ». [ر: ۱۷۲۵]

د (تصيد) معنى كشميرى رحمه الله كړې ده. ښكار لره مشغله جوړول.

سند كښې دا يو ابو النضر رحمه الله دوه شيوخ دى. يو نافع مولى ابن ابى قتاده او دويم ابوصالح مولى د توامه، د ابو النضر نوم سالم دې. (۱)

د ابو صالح نوم نبهان رحمه الله دې، د نبهان رحمه الله بخارى شريف كښې صرف دا يو حديث دې. (۲) دا د توامه آزاد شوې غلام وو. توامه غبر ګونكى بچى ته وائى، دلته توامه نه توامه بنت اميه بن حلف جمحى مراد دې. چونكه دې خپل يو خور سره پيدا شوې وو، ددې وجې ده ته توامه اووئيلې شو. (۳) دا دصفوان بن اميه خور وه. (۴)

**د لغاتو تشريح**: حديث باب كښې د څو الفاظو معنى اوګورئى. (وَهُمْ مُحْرِمُونَ) يعنى هغه خلق په احرام كښې وو دا جمله حاليه ده. (وَأَنَا رَجُلٌ حِلٌّ عَلَى فَرَسٍ) يعنى څه په خپل آس باندې حلال اووم. احرام كښې نه أووم، (حل) دحاء په كسره سره، په معنى د حلال ده. (رَأَيْتُ النَّاسَ مُتَشَوِّفِينَ لِشَيْءٍ) دې كښې مې خلق اوكتل چې هغوئ څه څيز لره ګورى، (تشوف فلان لشئ) كتل (كنت رقاء على الجبال) څه په غرونو ډير ختلې اووم. (رقاء : رقى. يرقى) باب سمع نه د مبالغه صيغه ده (ضربت اثره) يعنى (اخرجت فى اثره...) (اثر) د همزه او ثاء په فتحه سره او د همزه په كسره سره اودثاء په سكون سره په دواړو رنګه استماليږى. (۵)

(عقرته. جرحته) ما هغه زخمى كړو

**د ترجمة الباب مقصد**: ددې باب نه د امام بخارى رحمه الله مقصد دادې چې ښكار وغيره او امر مباح دپاره خپل ځان يا سورلئ لره په لړ مشقت اچول، نودا جائز دى نو ابن منير ليكى چې: (نبه بهذه الترجمة على جواز ارتكاب المشاق لمن له غرض لنفسه او لدابته إذا كان الغرض مباحا وان التصيد فى الجبال كهوفى السهل وان اجراء الخيل فى الوعر جائز للحاجة وليس هو من تعذيب الحيوان) (۶)

---

۱) فتح البارى :۷۶۶/۹)
۲) فتح البارى :۷۶۶/۹، وتهذيب الكمال:۳۱۱/۲۹)
۳) عمدة القارى:۱۰۴/۲۱)
۴) وتهذيب الكمال:۳۱۱/۲۹)
۵) (اوګورئى تفصل دپاره : عمدة القارى :۱۰۴/۲۱)
۶) فتح البارى :۷۶۶/۹)

## ۱۲ - باب قول الله تعالى (أحل لكم صيد البحر)

وقال عمر صيده ما اصطيد، وطعامه ما رمى به، وقال أبو بكر الطافي حلال. وقال ابن عباس طعامه ميتته إلا ما قذرت منها، والجري لا تأكله اليهود ونحن نأكله. وقال شريح صاحب النبي - صلى الله عليه وسلم - كل شيء في البحر مذبوح. وقال عطاء أما الطير فأرى أن يذبحه. وقال ابن جريج قلت لعطاء صيد الأنهار وقلات السيل أصيد بحر هو قال نعم، ثم تلا (هذا عذب فرات سائغ شرابه وهذا ملح أجاج ومن كل تأكلون لحما طريا). وركب الحسن - عليه السلام - على سرج من جلود كلاب الماء. وقال الشعبي لو أن أهلي أكلوا الضفادع لأطعمتهم. ولم ير الحسن بالسلحفاة بأسا. وقال ابن عباس كل من صيد البحر ما صاده نصراني أو يهودي أو مجوسي. وقال أبو الدرداء في المري ذبح الخمر النينان والشمس.

[٥١٧٤] حدثنا مسدد حدثنا يحيى عن ابن جريج قال أخبرني عمرو أنه سمع جابرا - رضي الله عنه - يقول غزونا جيش الخبط وأمر أبو عبيدة فجعنا جوعا شديدا فألقى البحر حوتا ميتا لم ير مثله يقال له العنبر فأكلنا منه نصف شهر فأخذ أبو عبيدة عظما من عظامه فمر الراكب تحته.

[٥١٧٥] حدثنا عبد الله بن محمد أخبرنا سفيان عن عمرو قال سمعت جابرا يقول بعثنا النبي - صلى الله عليه وسلم - ثلاثمائة راكب وأميرنا أبو عبيدة نرصد عيرا لقريش فأصابنا جوع شديد حتى أكلنا الخبط، فسمي جيش الخبط وألقى البحر حوتا يقال له العنبر فأكلنا نصف شهر وادهنا بودكه حتى صلحت أجسامنا قال فأخذ أبو عبيدة ضلعا من أضلاعه فنصبه فمر الراكب تحته، وكان فينا رجل فلما اشتد الجوع نحر ثلاث جزائر، ثم ثلاث جزائر، ثم نهاه أبو عبيدة. [ر ٢٣٥١]

**قوله: وقال عمر صيده ما اصطيد، وطعامه ما رمى به:** فاروق اعظم رضي الله عنه فرمائي چې د قرآن پاك آيت (أحل لكم صيد البحر وطعامه) نه مراد هغه دی چې جال وغیره سره ښکار کړې شي. او د طعام نه مراد هغه دې چې سمندر نه راغوزارشي عبد بن حميد رحمه الله دا تعليق موصولا نقل کړې دې.[1]

**قوله: وقال أبو بكر الطافي حلال:** ابوبكر صديق رضي الله عنه اوفرمائيل چې (سمك طافی) حلال دې. (طافی) هغه مهی ته وائي چې مړ شي او اوبو کښې پورته راؤخیژي. دا تعليق امام طحاوی رحمه الله، ابن ابی شیبة رحمه الله او دار قطنی رحمه الله موصولا نقل کړې دې.[2]

[1] (فتح الباري :٧٦٧/٩، وعمدة القاري :١٠٤/٢١)
[2] عمدة القاري:١٠٥/٢١ وفتح الباري :٧٦٧/٩،و سنن الدار قطني باب الصيد والذبائح :٢٦٧/٤، رقم الحديث :٤)

**قوله**: وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ طَعَامُهُ مَيْتَتُهُ إِلاَّ مَا قَذِرْتَ مِنْهَا: ابن عباس رضي الله عنهما فرمائى چې (احل لكم صيد البحر وطعامه) كښې د طعام نه د سمندر غير مذبوځناور مراد دى، مګر چې تاسو د كومو نه نفرت اوكړئى، (او دهغې خوراك تاسو خوښ نه كړئى)
طبرانى دا تعليق موصولا نقل كړې دې. (1)

ابن عباس فرمائى چې جرى (مار مهئ) لره يهوديان نه خورى، او مونږ ئې خورو، جرى ته جريت هم وائى. علامه خطابى رحمه الله فرمائى چې دا دمار په شان يو مهې دې، ځينو وئيلى دى چې (الجرى سمك الاقشرله) دې ته مار مهئ هم وائى. كشميرى رحمه الله فرمائى چې ددې هندى ترجمه ماته معلوم نشوه. فرمائى چې ځينې ددې ترجمه جهينګا كړې ده . او ماته جهينګا په مهى كيدو كښې تردد دې (2)، د جهينګا يو قسم وركوتې كب يعنى مهې حكم مخكښې رازى

**قوله**: وَالْجِرِّي لاَ تَأْكُلُهُ الْيَهُودُ وَنَحْنُ نَأْكُلُهُ: دا تعليق عبدالرزاق رحمه الله او ابن ابى شيبه رحمه الله موصولا نقل كړې دې. (3)

**قوله**: وَقَالَ شُرَيْحٌ صَاحِبُ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - كُلُّ شَيْءٍ فِي الْبَحْرِ مَذْبُوحٌ. وَقَالَ عَطَاءٌ أَمَّا الطَّيْرُ فَأَرَى أَنْ يَذْبَحَهُ: دا تعليق امام بخارى رحمه الله په تاريخ كښې او ابن منده په المعرفة كښې موصولا نقل كړې دې. (4) عمرو بن دينار رحمه الله او ابوالزبير رحمه الله دواړه په شريح كښې نقل كړى دى. چې هغوئ فرمائى چې (كل شئ فى البحر مذبوح) د عطاء رحمه الله په مخكښې چې كله ددې خبرې ذكر اوشو نو هغوئ اوفرمائيل چې البته طير يعنى مارغه متعلق ځما خيال دې چې دا تاسو ذبح كوئى، يعنى عطاء رحمه الله د (كل شئ مذبوح) نه طير لره مستثنى ګرزولې ده او ددې نه داوبو ځناور مراد اخلى

دار قطنى دا تعليق مرفوعا نقل كړې دې. (5) ليكن حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چې (الموقوف اصح) (6)

**قوله**: وَقَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ قُلْتُ لِعَطَاءٍ صَيْدُ الأَنْهَارِ وَقِلاَتِ السَّيْلِ أَصَيْدُ بَحْرٍ هُوَ قَالَ نَعَمْ، ثُمَّ تَلاَ (هَذَا عَذْبٌ فُرَاتٌ سَائِغٌ شَرَابُهُ وَهَذَا مِلْحٌ أُجَاجٌ وَمِنْ كُلٍّ تَأْكُلُونَ

---

1) فتح البارى : ۹/ ۱۰۵، عمدة القارى:۲۱/ ۷۶۷).
2) فيض البارى:۳٤۰)
3) فتح البارى : ۶۷۸/۹ ، عمدة القارى:۱۰۵/۲۱،ارشاد السارى:۲٤۸).
4) فتح البارى : ۶۷۸/۹)
5) سنن لدار قطنى باب الصيد والذبائح : ۲۶۹/٤. و لفظه ان الله تعالى ذبح ما فى البحر لبنى آدم).
6) فتح البارى : ۹/ ۷۶۹).

**لَحْمًا طَرِيًّا**: ابن جريج رحمه الله وائی چې ما د عطاء نه تپوس اوکړو په نهرونو او جمع شوؤ اوبو کښې د ښکار کولو څه حکم دې، آیا هغه هم د «صید البحر» په حکم کښې دی ؟ هغوئ اوفرمائیل چې آؤ. او بیا ئې د قرآن کریم آیت مبارك تلاوت کړو. چې په هغې کښې دخوږو او ترشو دواړو اوبو متعلق فرمائیلې شوی دی. چې «ومن کل تاکلون لحما طریا»..... «قلات» د «قلت» دقاف په فتحه سره جمع ده. لکه څنګه چې «بحر بحار» اکثرو وختونو کښې غروو کښې دننه غټې خندقونه اوشی یو چې په هغې کښې اوبه جمع کیږی. هغې ته «قلت» وائی. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې «هوالنقر فی الصخرة یستنقع فیها الماء» (۱)
عبدالرزاق پخپل مصنف کښې دا تعلیق موصولا نقل کړې دې. (۲)

**قوله**: وَرَكِبَ الْحَسَنُ - عَلَيْهِ السَّلَامُ - عَلَى سَرْجٍ مِنْ جُلُودِ كِلَابِ الْمَاءِ: عبدالرزاق پخپل مصنف کښې دا تعلیق موصولا نقل کړې دې. (۳)

**قوله**: وَقَالَ الشَّعْبِيُّ لَوْ أَنَّ أَهْلِي أَكَلُوا الضَّفَادِعَ لَأَطْعَمْتُهُمْ: حضرت حسن د اوبو د سپو څرمنو جوړ شوی زین باندې د سورلئ په وخت کښې کیناستلو.
حسن نه یا حسن بن علی رضی الله عنه مراد دې او یا ددې نه حسن بصری رحمه الله مراد دې.
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې د رومبی قول تائید ددې نه هم کیږی چې ځینو نسخو کښې د حسن نه پس رضی الله عنه لیکلې شوې دې. چې د صحابی دپاره استعمالیږی. او حسن بصری رحمه الله صحابی نه دې وو بلکه تابعی وو. (۴)

**قوله**: وَقَالَ الشَّعْبِيُّ لَوْ أَنَّ أَهْلِي أَكَلُوا الضَّفَادِعَ لَأَطْعَمْتُهُمْ: عامر بن شراحیل شعبی رحمه الله فرمائی چې څما کور والو به چیندخ خوړلو نو ما به ورته ورکولو.
«ضفادع» د «ضفدع» جمع ده. د «ضفدع» د ضاد په فتحه سره او کسره دواړو سره درست دې، په دې کښې یو لغت د عین نه بغیر «ضفادع» هم دې. (۵)

**د چیندخ خوړلو حکم**: دجمهورو په نیز چیندخ حرام دې، ددې خوراك جائز نه دې، د امام مالك رحمه الله په نیز د چیندخ استعمال جائز دې، بیا ددوئ په مذهب کښې اختلاف دې.
کښې اختلاف دې «مدونة» کښې ابن القاسم ددوئ مسلك نقل کړې دې چې بغیر د ذبح کولو نه چیندخ خوراك جائز دې، او دویم روایت دادې چې چیندخ په اوبو کښې اوسیږی نو هغه

---

۱) فتح البارى : ۹/ ۷۶۹، اوګورئی النهایة لابن الاثیر: ۴/۹۹).
۲) عمدة القارى:۲۱/۱۰۶).
۳) عمدة القارى:۲۱/۱۰۶).
۴) فتح البارى : ۹/ ۷۶۹، عمدة القارى:۲۱/
۵) فتح البارى : ۹/ ، عمدة القارى:۲۱/ ۱۰۶).

بغير د ذبح كولو نه خوړلې شي ليكن اوچه كښې يا كله چې په اوچه كښې په اوبو كښې اوسيدو والا چيندخ د ذبح كولو نه درست نه وي.[1]

جمهورو د دارمي روايت نه استدلال كړې دې چې نبى كريم ﷺ نه په دوائى كښې د چيندخ د استعمالولو اجازت اوغوښتلې شو نو نبى كريم ﷺ ترې منع اوفرمائيله.[2]

امام ابو داؤد رحمه الله هم داشان روايت په كتاب الطب كښې نقل كړې دې.[3]

د شعبى رحمه الله دا تعليق چا نقل كړې دې، دا معلوم نشو.[4]

**قوله**: وَلَمْ يَرَ الْحَسَنُ بِالسُّلَحْفَاةِ بَأْسًا: حسن بصرى رحمه الله به په شمشتئ خوړلو كښې هيڅ حرج نه ګڼړلو

دا تغليق ابن ابى شيبه رحمه الله موصولا نقل كړې دې.[5]

**قوله**: وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ كُلْ مِنْ صَيْدِ الْبَحْرِ مَا صَادَهُ نَصْرَانِيٌّ أَوْ يَهُودِيٌّ أَوْ مَجُوسِيٌّ: يعنى دصيد البحر استعمال جائز دې، اګر چې هغه ښكار يو نصرانى يا يهودى مجوسى كړې وي

دبخارى شريف په زړو نسخو كښې عبارت داشان دې ليكن درست هغه نه دې، نو ځينو نسخو كښې صحيح عبارت د «وان صادة» اضافى سره داشان دې چې «كل من صيد البحر وان صاده نصرانى اويهودى......»[6]

بيهقى رحمه الله دا تعليق موصولا نقل كړې دې.[7]

**قوله**: وَقَالَ أَبُو الدَّرْدَاءِ فِي الْمُرِي ذَبَحَ الْخَمْرَ النِّينَانُ وَالشَّمْسُ: د ابوالدرداء نوم عويمر بن مالك دې[8]، مزى د ميم په ضمه سره او د راء په سكون سره دې، ابراهيم حربى دده متعلق فرمائى چې:

«هو يعمل بالشام يوخذ الخمر فيجعل فيها الملح والسمك ويوضع الشمس فيتغير طعمه الى طعم المرى»[9]

يعنى شرابو كښې مالګه او مهى يو ځائې كړى و دا په نمر كښې كيږدى، دې عمل سره د

---

[1]) عمدة القارى:(۱۰۷/۲۱).

[2]) اوګورئى: عمدة القارى:(۲۱/ ۱۰۷).

[3]) سنن ابى داؤد كتاب الطب باب فى الادوية المكروهة رقم الحديث:۳۸۷۱، (۷/٤).

[4]) تغليق التعليق جلد: ٤، صفحه: ۵۱۰، باندې دلته واما قول الشعبى... نه پس ځائې خالى دې، شراح هم خاموشى اختيار كړې ده).

[5]) فتح البارى :(۷۶۹/۹).

[6]) فتح البارى :(۷۳۹/۹)، عمدة القارى:(۲۱/ ۱۰۷).

[7]) عمدة القارى:(۲۱/ ۱۰۷).

[8]) عمدة القارى:(۱۰۷/۲۱).

[9]) فتح البارى :(۷۷۰/۹).

شرابو ذائقه بدله شي او چې كوم يو څيز تيار شي هغې ته مرى وائي.

نينان، د «نون» جمع ده. «نون» مهى ته وائى. تركيب كښې «الخمر..... ذبح» فعل معروف دپاره مفعول به دې او «نيتان» فاعل دې. يعنى مرى كښې مهى او ګرمى او تاؤ دواړه خمر ذبح يعنى حلالوى چې څنګه ميته ذبح سره حلاليږى . داشان شراب مرى كښې مالګه. مهى اوګرمئ سره يو بل څيزجوړ شي او دا حلال شي. علامه عينى رحمه الله فرمائى چې

«ثم تفسير كلام ابى الدرداء ب قوله : فى المرى مقدم لفظا ولكن فى المعنى متاخر تقديره ذبح الخمر النيان والشمس فى المرى» (1)

ابراهيم حربى دا تعليق په غريب الحديث كښې موصولا نقل كړې دې

د باب لاندې امام بخارى رحمه الله چې كوم روايت نقل كړې دې. په هغې باندې كلام په كتاب المغازى كښې تير شوې دې. (2)

امام بخارى رحمه الله ددې باب لاندې دوه مسئلې بيان كړې دى او په دواړو كښې د حضرات فقهاء كرامو اختلاف دې.

**دسمندرى څناورو حكم:** ړومبئ مسئله اود اوبو د څناورو حلت او حرمت دې

سمندرى څناورو كښې د مهى په حلت باندې خو اجماع ده او دې په حلاليدو كښې د هيچا هم اختلاف نشته دې، (3) البته دباقى څناورو متعلق اختلاف دې

د ائمه ثلاثه په نيز ټول سمندرى څناور حلال دى.

شوافع البته چيندخ لره مستثنى ګرزوى. (4)

مالكيه انسان بحرى، كلب بحر، خنزير بحرى لره د حلت د حكم نه مستثنى ګرزولې دې، ليكن علامه درد دير على الاطلاق دبحرى حيواناتو د حلت قول لره مختار ګرزولې دې

د حضرات حنابله په نزد هم مطلقا بحرى حيوانات حلال دى (5)

د حنيفه په نيز بحرى حيواناتو كښې صرف مهى حلال دې، باقى ټول حيوانات بحريه حرام دى

د امام شافعى رحمه الله يوقول د حنفى مذهب مطابق هم منقول دې. (6)

دامام بخارى رحمه الله مسلك هم د آئمه ثلاثه مطاب دې لكه څنګه چې تعليقات باب نه معلوميږى

**د ائمه ثلاثه دلائل اودهغوئ جوابونه:** ائمه ثلاثه دقرآن پاك د آيت مبارك «أُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ» نه استدلال كوى. فرمائى چې دا استدلال په دوؤ خبرو باندې موقوف دې. تر كومې پورې چې

---

(1) فتح البارى :۹/۷۷۰).

(2) كشف البارى كتاب المغازى: ۵۸۴، ۵۸۵).

(3) اعلاء السنن:۱۷/۱۸۷).

(4) المجموع شرح المهذب كتاب الذبائح :۹/۳۰-۳۱)،

(5) (المغنى لابن قدامة كتاب الصيد والذبائح:۹/۳۳۸)

(6) (فتح البارى :۹/۷۷۲)

هغه ثابت نه شی استدلال ختمیدې شی.

ړومبئ خبره داده چې آیت مبارك کښې «صید» نه مراد «مصید» واخستې شی. «صید» مصدر دې. ددې معنی دښکار کولو ده. «مصید» د اسم مفعول صیغه ده. ښکار ته وائی. یعنی هغه ځناور چې هغه ښکار کړې شی. ړومبی صورت کښې به ترجمه دا وی چې ستاسو دپاره په سمندر کښې ښکار کول حلال اوګرزولې شو. او دویم صورت کښې به ترجمه دا وی چې ستاسو دپاره دسمندر ښکار حلال کړې شو

د آئمه ثلاثه مسلك بهٔ هغه وخت کښې هم ددې لفظ نه ثابتیدیشی چې کله «صید» سره ښکار کوونکی ځناور مراد واخستلې شی لیکن که مصدری معنی مراد واخستې شی نو بیا ددې مسلك نه ثابتیږی ځکه چې په سمندر کښې ښکار کول د حنفیه په نیز هم درست او حلال دی اوچونکه لفظ «صید» مصدر دې. ددې وجې دې دا په اصل کښې مصدری معنی باندې محمول کیږی. ددې وجې دې ته په اصل کښې مصدری معنی باندې محمول کول حقیقت دې. مصدر د اسم مفعول په معنی کښې مجازی استعمالیږی. مجاز دپاره قرینه ضروری ده. او دلته مجازی معنی مراد اخستلو دپاره هیڅ قرینه نشته دې.

بلکه سیاق کلام حقیقی معنی باندې دلالت کوی ځکه چې دې نه پس ارشاد دې چې «وَحُرِّمَ عَلَيْكُمْ صَيْدُ الْبَرِّ مَادُمْتُمْ حُرُمًا» په دې جمله کښې «صید» نه بالاتفاق مصدری معنی مراد ده ځکه چې ښکار کول د احرام په حالت کښې حرام دې.

ښکار خوړل محرم دپاره حرام نه دې بلکه جائز دې.

دویمه خبره داده چې که «صید» لره د «مصید» په معنی کښې واخستلې شی نو د جمهور په نیز مسلك به هله ثابت وی چې کله د «صید البحر» اضافت استغراق دپاره وی چې د سمندر ټول ښکار حلال ګرزولې شوې وی. لیکن استغراق باندې هیڅ قرینه نه شی موندې.بلکه دعدم استغراق قرینه موندې شی. ځکه چې «حُرِّمَ عَلَيْكُمْ صَيْدُ الْبَرِّ» کښې اضافت استغراق دپاره نه دې «صید البر» کښې هم اضافت استغراق دپاره نه دې پکار. (۱)

د جمهورو دویم استدلال د ابوهریره رضی الله عنه روایت نه دې چې یو سړی د نبی کریم ﷺ نه تپوس اوکړو چې مونږ بحری سفر کوو او مونږ سره خوږې اوبه کمې وی. که مونږ دا په اودس کښې استعمال کړو نو تږی به پاتې شو آیا په داسې صورت کښې مونږ دسمندر اوبو سره اودس کولې شو. نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې «هوالطهور ماء والحل میتة».

حضرات حنیفه وائی چې «میتة» کښې اضافت استغراق دپاره نه دې بلکه ددې نه میته معهوده مراد ده او هغه مهی دې ځکه چې نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی چې «احلت لنا میتتان

---

۱) تکملة فتح الملهم کتاب الصید والذبائح:۳/۵۰۷، ۵۰۸. واحکام القران للجصاص: ۲/۴۷۹، فیض القران ۴:/۴۳۰)

ودمان فاما الميتتان فالجراد والحوت واما الدمان فالطحال والكبد)[1]
په دې حديث پاك كښې صرف د دوؤ ميتاتو متعلق د حلت حكم شوې دې. يو مولخ او دويم مهې په دې كښې ميته نه مراد داسې ځناور دې چې هغه نشي ذبح كولې. يا چې دهغې نه وينه بهيږي. معلوم شوه چې ددې دوؤ نه علاوه باقى ميتاتو د قرآن پاك آيت (وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الميتة) بۀ بناء باندې حرام دې. كه دهغې تعلق بر سره وى يا بحر سره ([2])
د جمهورو دريم استدلال د شريح روايت نه دې كوم لره چې امام بخارى رحمه الله دلته تعليقا ذكر كړې دې چې (كل شئ فى البحر مذبوح[3])
داشان جابر رضي الله عنه نه دار قطنى رحمه الله مرفوع روايت نقل كړې دې چې (ما من دابة فى البحر الا قد ذكاها الله لبنى آدم) ([3])
حضرات حنيفه كښې ځينې علماء كرامو ددې جواب كړيد ې چې ددې نه مراد مهې دې او مطلب داد ې چې الله جل جلاله هر قسم مهې حلال كړې دې. ځكه چې دار قطنى دويم روايت نقل كړې دې چې دهغې الفاظ دادى : (ان الله تعالى قد ذبح كل نون فى البحر لبنى آدم) او (نون) اطلاق صرف په مهى باندې كيږى. ([4])
ليكن دا جواب څه زيات زړه ته نزدې نه دې، ځكه چې ځينې احاديثو كښې دمهى ذكر نه دا نه لازميږى چې په كومو احاديثو كښې مطلقا حيوانات حلال ګرزولې شوى دى. په هغې كښې مهى هم مراد دې.

**د احنافو دلائل** : د احنافو يو دليل خو دا پورته حديث مبارك دې (احلت لنا ميتتان). او دويم هغه د قرآن پاك آيت مبارك (وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبَٰٓئِثَ) نه هم استدلال كوى او فرمائى چې مهى نه علاوه باقى سمندرى ځناور خبائث كښې داخل دى. ([5])
دريم هغوئ د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما د تعليق نه استدلال كوى لكه څنګه چې دلته امام بخارى رحمه الله نقل فرمائيلى دى چې (طعامه ميتته الا ما قذرت منها) يعنى د سمندر غيرمذبوحه ځناور طعام البحر كښې دى چې حلال دى ليكن چې دهغې په خوراك كښې د طبيعت رغبت نه وى هغه طعام البحر نه دې او مهى نه علاوه باقى د سمندرى ځناور غوښه څه مرغوب ځيز نه دې.
بيشكه د حضرات حنيفه مسلك احوط دې ليكن د جمهورو مسلك (اقرب الى النصوص) دې

---

[1]) سنن ابن ماجه كتاب الاطعمة باب الكبد والطحال: رقم الحديث : ۳۳۱۴، ۱۱۰۱/۲).
[2]) تكملة فتح الملهم:۵۰۹/۳، وفتح القدير كتاب الكراهية:۴۲۲/۸)
[3]) سنن الدار قطنى باب الصيد والذبائح: ۲۶۷/۴).
[4]) سنن الدار قطنى باب الصيد والذبائح: ۲۶۷/۴).
[5]) وفتح القدير كتاب الكراهية فصل فى ما يحل اكله:۴۲۲/۸)

د امام بخاري رحمه الله مسلك هم د جمهورو مطابق دې ،هغوئ چې تعليقات او احاديث ذكر كړي دي. دهغې نه مطلقا د حيواناتِ بحريه حلت معلوميږي.

**د سمک طافی مسئله** : دويمه اختلافی مسئله دا سمك طافی ده ، يعنی هغه مهی چې سمندر كښې دننه پخپله مړشی او اوبو دپاسه راشی نو دهغې خوراك جائز دې كه نه؟ د ائمه ثلاثه په نيز ددې خوراك جائز دې. د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دا جائز نه دی.[۱]

**دجمهورو استدلال**: د جمهورو رومبې استدلال خو حديث پاك نه دې چې حضرات صحابه كرام رضي الله عنهم (عنبر) نومې مهى استعمال كړې وو.

ليكن ددې نه ددې استدلال پوره نه دې بلكه په دې حديث پاك كښې هيڅ داسې تصريح نشته دې چې د هغې نه معلوم شی چې هغه سمك طافی وو او پخپله مړ شوې وو. كيديشی چې هغه سمندر اوچې ته راغوزار كړې وی، او ددې په نتيجه كښې هغه مړ شوې وی، داسې مهى خوړل بالاتفاق جائز دې.[۲]

ائمه ثلاثه د حضرت ابوبكرصديق دا ثر نه استدلال كوی لكه څنګه چې امام بخاری رحمه الله دلته تعليقا ذكر كړې دې.

**د امام اعظم دلائل**: امام بخاری رحمه الله دجابر رضي الله عنه د حديث نه استدلال كوی لكه څنګه چې امام ابوداؤ رحمه الله نقل كړی دی چې نبی كريم ﷺ فرمائيلی دی چې (**ما القى البحر او جزر عنه فكلوه ومامات فيه وطفا فلا تاكلوه**)[۳] په دې كښې تصريح ده چې (**سمك طافی**) مه خورئی او د حلت اوحرمت په مينځ كښې چې كله تعارض اوشی نو احتياط په دې كښې دې چې جانب حرمت ته ترجيح وركړې شی.[۴]

**د جيينګې حكم**: تر كومې چې تعلق دې د جهينګی نو دائمه ثلاثه په نيز خودا جائز دې، د اكثرو حنيفه په نيز هم جائز دی ځكه چې هغه دمهی يو قسم دې. ځينې علماء كرامو ددې د عدم جواز قول اختيار كړې دې او وئيلی ئې دی چې جهينګا مهی نه دې بلكه يومستقل بيل قسم دې. ليكن جمهور دا په مهی كښې شميری.[۵]

---

[۱] فتح البارى :۹/۷۷۱).

[۲] فيض البارى :٤/۴۳۰).

[۳] سنن ابى داؤد كتاب الاطعمة رقم الحديث:۳۸۱۵)

[٤] لا مع الدرارى:۹/۴۱۳).

[۵] (د مهى په حلالوالى كښې خو څه اختلاف نشته دې، البته اختلاف په دې كښې دې چې جهينګا مهې دې او كه دې؟ د حيواناتو د جديد ماهرينو په نزد جهنګا مهې نه دې. ځكه چې د جديد ماهرينو په نزد مهى داسې ځناور دې چې په دهٔ كښې د ملا تير وی، او ددې په پيپرو په ذريعه ساه اخلی. او په جهينګا كښې نه د ملا وی او نه دا د پيپرو په ذريعه ساه اخلی. (اوګورئی دائرة المعارف للبستانى:ج/۱۰ ص/۶۰) ليكن د پخلاف د لغت ځينو مشهور عالمانو جهنيګا په مهى شميرلې دې ابن دريد ، علامه زبيدی، او دميری هم دا رائې قائم كړې ده. ا وابن دريد په جمهرة اللغة ج/۳ ص/٤١٤ كښې ليكی چې (واربيان ضرب من السمک) ....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه....

د باب لاندې امام بخاري رحمه الله عنبر مهي والا چې کوم روایت نقل کړې دې دا په کتاب المغازی کښې تیر شوې دې، د حدیث مناسبت باب سره بالکل واضح دې.

## ۱۳- باب أَكْلِ الْجَرَادِ

[۵۱۷۶] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي يَعْفُورٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ أَبِي أَوْفَى - رضي الله عنهما - قَالَ غَزَوْنَا مَعَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - سَبْعَ غَزَوَاتٍ أَوْ سِتًّا، كُنَّا نَأْكُلُ مَعَهُ الْجَرَادَ. قَالَ سُفْيَانُ وَأَبُو عَوَانَةَ وَإِسْرَائِيلُ عَنْ أَبِي يَعْفُورٍ عَنِ ابْنِ أَبِي أَوْفَى سَبْعَ غَزَوَاتٍ.

**قوله**: (جراد): د (جرادة) جمع دہ. مولخ ته وائی. دا د جرد نه مشتق دې (لانه ینزل علی شئ الاجرده) ددې دوه قسمونه دی، یو طیار یعنې الوتونکی او دویم باب وتاب یعنې کنول والا، مولخ وغیره، بغیر د ذبح کولو نه خوړل جائز دی. البته د مالکیه په نیزو دا مشهور دی چې دې لره ذبح کول جواز اکل دپاره شرط دی. (۱)

بیا د ذبح کولو طریقه کښې اختلاف دې ځینو وئیلی دی چې دده نه دې سر پریکړې شی، ځینو وئیلی دی چې په اور یا کټوئ کښې ددې پریوتل دده ذبح کیدل دی. (۲)

**ابو یعفور**: دده نوم وقدان یا واقدی دې، امام مسلم رحمه الله فرمائی چې واقد دده نوم او وقدان دده لقب دې، ابو یعفو دوه دی. یو اکبر او بل اصغر. چې کوم اصغر دې دهغه نوم عبدالرحمان بن عبید دې، دواړه ثقفه دی ابو یعفور دا اکبر صحیح بخاری کښې صرف دوه روایتونه دی. یو دلته او بل په کتاب الصلوة کښې ابواب الرکوع کښې. (۳) ابویعفور اصغر د صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې دچا نه هم روایت نه دې آوریدلې، او ابویعفور اکبر ابن عمر رضی الله عنه،

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] بقیه علامه زبیدی هم دا فرمائیلی دی. اوګورئی تاج العروس: ۱/۱۴۶، او علامه دمیری رحمه الله په حیاة الحیوان ج/۱ص/۴۳۷ کښې لیکی چې (الروبیان هو سمک صغیر جدا احمر) یعنې جهینګا د سور رنګ یو مهي دې.)

حضرت تهانوی رحمه الله په امداد الفتاوی (ج/٤ ص/١٠٤) کښې فرمائی چې احقر په دې مطمئن دې چې دا مهي دې. حضرت مفی محمود حسن ګنګوهی رحمه الله په فتاوی محمودیه (ج/۵ ص/۱۰۷، ۱۲۰، ۱۲۳) کښې، مولانا عبدالحی لکهوی رحمه الله په مجموعة الفتاوی (ج/۵ ص/۱۰۷، ۱۲۰) عبدالرحیم لاجپوری په فتاوی رحیمیه (ج/۶ ص/۲۹۷) او مفتی عبدالسلام چاټګامی په جواهر الفتاوی (ج/۱ص/۵۸٤) کښې دا ټول جهنګا په مهی کښې شمیر کړې دې. مولانا محمد تقی عثمانی صاحب په تکمله فتح الملهم ج/٤ص/٥١٤ کښې لیکی چې:

فلا ینبغی التشدید فی مسالة الاربیان عند الافتاء، ولا سیما فی حالة کون المسالة مجتهدا فیها من اصلها ولا شک انه حلال عندالائمة الثلاثة وان اختلاف الفقهاء یورث التخفیف غیران الاجتناب عن اکله احوط و اولی.

(۱) فتح الباری: ۹/ ۷۷٤).
(۲) فتح الباری: ۹/ ۷۷٤).
(۳) فتح الباری: ۹/ ۷۷٤).

انس رضی الله عنه وغیره نه روایت آؤریدلې دي په دولسمه هجرئی کښې ددوئ وفات شوې دې [1]

**قوله**: سَبْعَ غَزَوَاتٍ أَوْسِتًّا: داشك شعبه ته دې چې اووه غزوات ئې وئیلی دی که شپږ.

**قوله**: كُنَّا نَأْكُلُ مَعَهُ الْجَرَادَ: د لته معیت نه صرف غزوه کښې معیت مراد دې په خوراك کښې نه او یا په خوراك کښې معیت مراد دې، د دویم احتمال تائید د ابو نعیم روایت نه کیږی چې په هغې کښې دی چې (ویاکل معنا) الفاظ دی. [2]

په شوافع کښې د علامه صیمری رحمه الله خیال وو چې نبی کریم ﷺ مولخ خوړل نه خوښول. [3]

هغه دامام ابو داؤد رحمه الله د یو روایت نه استدلال کولو چې نبی کریم ﷺ نه د مولخ متعلق تپوس اوشو نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې (لااکله ولااحرمه) [4]

لیکن دا روایت مرسل دې. امام نووی رحمه الله دمولخ په حلت باندې اجماع نقل کړې ده. بیا هم ابن العربی په شرح ترمذی کښې دحجاز د مولخانو اودواندلس د مولخانو په مینځ کښې فرق کړې دې.. اووئیلی ئې دی چې د اندلس مولخان ټول ضرری دی. [5]

لهذا د یو علاقې د مولخانو متعلق معلوم شو چې هغه مضر صحت دی نو دهغې استعمال بیا صحیح نه دی.

**قوله**: قَالَ سُفْيَانُ وَأَبُو عَوَانَةَ وَإِسْرَائِيلُ عَنْ أَبِي يَعْفُورٍ عَنِ ابْنِ أَبِي أَوْفَى سَبْعَ غَزَوَاتٍ: دسفیان ثوری رحمه الله تعلیق لردارمی موصولا نقل کړیدې د ابوعوانه تعلیق لره امام مسلم رحمه الله موصولا نقل کړې دې.

او د اسرائیل تعلیق لره طبرانی موصولا روایت کړې دې. په دې دریو واړو روایتونو کښې دغزوات ذکر دې.

## ۱۴- باب آنِيَةِ الْمَجُوسِ وَالْمَيْتَةِ.

[۵۱۷۷] حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ عَنْ حَيْوَةَ بْنِ شُرَيْحٍ قَالَ حَدَّثَنِي رَبِيعَةُ بْنُ يَزِيدَ الدِّمَشْقِيُّ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو إِدْرِيسَ الْخَوْلَانِيُّ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيُّ قَالَ أَتَيْتُ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّا بِأَرْضِ أَهْلِ الْكِتَابِ، فَنَأْكُلُ فِي آنِيَتِهِمْ، وَبِأَرْضِ صَيْدٍ، أَصِيدُ بِقَوْسِي، وَأَصِيدُ بِكَلْبِي الْمُعَلَّمِ، وَبِكَلْبِي الَّذِي لَيْسَ بِمُعَلَّمٍ. فَقَالَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- «أَمَّا مَا ذَكَرْتَ أَنَّكَ بِأَرْضِ أَهْلِ كِتَابٍ فَلَا تَأْكُلُوا فِي آنِيَتِهِمْ، إِلَّا أَنْ لَا تَجِدُوا

---

[1]) فتح الباری :۷۷٤/۹، عمدة القاری:۱۰۹/۲۱).

[2]) فتح الباری:۷۷۵/۹).

[3]) فتح الباری:۷۷۵/۹).

[4]) سنن ابوداؤد کتاب الاطعمة باب فی اکل الجراد رقم الحدیث : ۳۸۱۳، ۳۵۷/۳).

[5]) فتح الباری :۷۷۵/۹).

بُدًّا، فَإِنْ لَمْ تَجِدُوا بُدًّا فَاغْسِلُوهَا وَكُلُوا، وَأَمَّا مَا ذَكَرْتَ أَنَّكُمْ بِأَرْضِ صَيْدٍ، فَمَا صِدْتَ بِقَوْسِكَ، فَاذْكُرِ اسْمَ اللَّهِ وَكُلْ، وَمَا صِدْتَ بِكَلْبِكَ الْمُعَلَّمِ، فَاذْكُرِ اسْمَ اللَّهِ وَكُلْ، وَمَا صِدْتَ بِكَلْبِكَ الَّذِي لَيْسَ بِمُعَلَّمٍ، فَأَدْرَكْتَ ذَكَاتَهُ، فَكُلْهُ». [ر: ٥١٦١]

[٥١٧٨] حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ بْنُ إِبْرَاهِيمَ قَالَ حَدَّثَنِي يَزِيدُ بْنُ أَبِي عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ قَالَ لَمَّا أَمْسَوْا يَوْمَ فَتَحُوا خَيْبَرَ أَوْقَدُوا النِّيرَانَ، قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - « عَلَى مَا أَوْقَدْتُمْ هَذِهِ النِّيرَانَ ». قَالُوا لُحُومِ الْحُمُرِ الإِنْسِيَّةِ. قَالَ « أَهْرِيقُوا مَا فِيهَا، وَاكْسِرُوا قُدُورَهَا ». فَقَامَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ فَقَالَ نُهَرِيقُ مَا فِيهَا وَنَغْسِلُهَا. فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «أَوْ ذَاكَ». [ر: ٢٣٤٥]

**حديث نه د ترجمة الباب مقصد:** ترجمة الباب كښې «انية المجوس» وئيلې دى. او دباب په روايت كښې د اهل كتابو د اوانى ذكر دې.

ابن منير رحمه الله فرمائى چې چونكه نجاست نه د نه بچ كيدو سبب مجوس او اهل كتاب دواړو كښې مشترك دى، ددې وجې امام بخارى رحمه الله يو نه دبل حكم ثابت كړې دې. [1]

علامه كرمانى فرمائى چې مجوسيانو لره اهل كتاب باندې قياس كړې دې او امام بخارى رحمه الله حكم ثابت كړې دې. [2]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چې په درحقيقت ځينې طرقو كښې د مجوسيانو هم ذكر دې. امام بخارى رحمه الله د ترجمة الباب سره طرق طرفته اشاره كړې ده امام بخارى رحمه الله ابن حجر رحمه الله عام طور دارنگ كوى چې ځينې طرق چې هغوئ په شرط باندې پوره نه وى. هغه ترجمة الباب كښې راولى او حديث د خپل شرط مطابق څه بل راولى نو هغوئ ليكى چې:

«وهذه طريقة يكثر منها البخارى فما كان فى سنده مقال يترجم به ثم يورد فى الباب ما يوخذ الحكم منه بطريق الالحاق ونحوه»

ترجمة الباب كښې امام بخارى رحمه الله د ميته هم ذكر كړې دې.

ابن منير رحمه الله فرمائى چې: «نبه بذكر الميتة على ان الحمير لما كانت محرمة لم تؤثر فيها الذكاة فكانت ميتة ولذالك امر بغسل الانية منها» [3]

يعنى دباب په دويم روايت كښې د خرونو د غوښې د حرمت حكم بيان شوى دې، خرونه ذبح شوى وو او دهغې غوښه پخولې شوه چې د حرمت حكم راغلو حمر چونكه ميته او حرام گرزولې شوې ده، ددې وجې ددوئ حلت دپاره ذبح مؤثر پاتې شوه، ځكه ذبح حلال ځناورو كښې مؤثره پاتې كيږى، حرامو كښې نه.

---

[1] فتح البارى: ٩/٧٧٧).

[2] شرح البخارى للكرمانى: ٢٠/٩٢).

[3] فتح البارى: ٩/٧٧٧).

## ١٥- باب التَّسْمِيَةِ عَلَى الذَّبِيحَةِ، وَمَنْ تَرَكَ مُتَعَمِّدًا.

قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ مَنْ نَسِيَ فَلاَ بَأْسَ. وَقَالَ اللَّهُ تَعَالَى (وَلاَ تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ وَإِنَّهُ لَفِسْقٌ) وَالنَّاسِي لاَ يُسَمَّى فَاسِقًا، وَقَوْلُهُ (وَإِنَّ الشَّيَاطِينَ لَيُوحُونَ إِلَى أَوْلِيَائِهِمْ لِيُجَادِلُوكُمْ وَإِنْ أَطَعْتُمُوهُمْ إِنَّكُمْ لَمُشْرِكُونَ).

دتسميه متعلق تفصيل تير شوې دي. امام بخاري رحمه الله د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما تعليق كړل دي او د هغه دمسلك ترجيح طرفته ئې اشاره كړې ده. چې په هغې كښې د تسميه د ناسيا نه ذبحه حرام نشى ګڼړلې. د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما د تعليق حاصل دادې چې قرآن پاك فرمائيلى دى چې په كوم ذبيحه باندې دالله تعالى نوم واختسې نشي. هغه مه خورئى ځكه چې دا نوم نه اخستل يو فاسقانه طريقه ده او ناسى يعنى هيريدونكى فاسق نه وى

**قوله** وَقَوْلُهُ: وَإِنَّ الشَّيَاطِينَ لَيُوحُونَ إِلَى أَوْلِيَائِهِمْ: امام بخاري رحمه الله په دې آيت مبارك سره درحقيقت هغه روايت طرفته اشاره كړې ده چې كوم امام ابوداؤد رحمه الله په سند صحيح سره د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه نقل كړېدې كافرانو به وئيل چې كومه ذبيحه باندې دالله تعالى نوم اخستې شوې وى هغه خورئى ځكه چې دا انسانانو وژولې دى او چې په كوم باندې د الله جل جلاله نو وانخستې شى هغه خورئى ځكه چې هغه په قدرتى مرګ باندې مړ شوې دې. ددې مزيد وضاحت د ابو داؤد په يو روايت كښې داشان دې چې يهوديان د نبى كريم صلى الله عليه وسلم په خدمت كښې حاضر شو او وې وئيل چې كوم لره انسان قتل كړى نو هغه تاسو خورئى او چې كوم لره الله جل جلاله وژلې وى هغه نه خورئى. نو په دې باندې دا آيت مبارك نازل شو چې ﴿وَلاَ تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ﴾ او ﴿وَإِنَّ الشَّيَاطِينَ لَيُوحُونَ إِلَى أَوْلِيَائِهِمْ﴾ ئې اوفرمائيل او د كفارو داشان بحثونه او مجادلې ئې شيطانى وسوسې اوګرزولې

[٥١٧٩] حَدَّثَنِي مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ سَعِيدِ بْنِ مَسْرُوقٍ عَنْ عَبَايَةَ بْنِ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعٍ عَنْ جَدِّهِ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - بِذِي الْحُلَيْفَةِ، فَأَصَابَ النَّاسَ جُوعٌ، فَأَصَبْنَا إِبِلاً وَغَنَمًا، وَكَانَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - فِي أُخْرَيَاتِ النَّاسِ، فَعَجِلُوا فَنَصَبُوا الْقُدُورَ، فَدُفِعَ إِلَيْهِمُ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - فَأَمَرَ بِالْقُدُورِ فَأُكْفِئَتْ، ثُمَّ قَسَمَ فَعَدَلَ عَشَرَةً مِنَ الْغَنَمِ بِبَعِيرٍ، فَنَدَّ مِنْهَا بَعِيرٌ، وَكَانَ فِي الْقَوْمِ خَيْلٌ يَسِيرَةٌ فَطَلَبُوهُ فَأَعْيَاهُمْ، فَأَهْوَى إِلَيْهِ رَجُلٌ بِسَهْمٍ فَحَبَسَهُ اللَّهُ فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «إِنَّ لِهَذِهِ الْبَهَائِمِ أَوَابِدَ كَأَوَابِدِ الْوَحْشِ، فَمَا نَدَّ عَلَيْكُمْ فَاصْنَعُوا بِهِ هَكَذَا». قَالَ وَقَالَ جَدِّي إِنَّا لَنَرْجُو - أَوْ نَخَافُ - أَنْ نَلْقَى الْعَدُوَّ غَدًا، وَلَيْسَ مَعَنَا مُدًى، أَفَنَذْبَحُ بِالْقَصَبِ فَقَالَ «مَا أَنْهَرَ الدَّمَ وَذُكِرَ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ فَكُلْ، لَيْسَ السِّنَّ وَالظُّفُرَ، وَسَأُخْبِرُكُمْ عَنْهُ، أَمَّا السِّنُّ عَظْمٌ وَأَمَّا الظُّفُرُ فَمُدَى الْحَبَشَةِ». [ر: ٢٣٥٦]

رافع بن خديج رضي الله عنه فرمائى چې مونږ نبى كريم صلى الله عليه وسلم سره په ذى الحليفه كښې وو، خلق ډير

اوړي شوی وو، يو اوښ ا يو چيلۍ ذبح کړه. نبی کريم ﷺ خلقونه روستو وو خلقو تيزی کوله او کټوئی ئې سورې کړې. کله چې نبی کريم ﷺ خلقو ته راغلو نو نبی کريم ﷺ د کټوؤ الټه کيدو حکم اوفرمائيلو. بيا ئې مال غنيمت تقسيم کړو، داشان چې لس چيلۍ د يو اوښ برابر شوې، په دې کښې يو اوښ اوتښتيدو، په ډله کښې آسونه کم وو. هغوئ هغه رانيول مګر ناکام شو، په دې دوئ کښې يو سړی هغه طرفنه غشې اوويشتلو نو الله جل جلاله هغه منع کړو، نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې په دې ځناورو کښې هم د وحشی ځناورو په شان تښتيدونکی وو، کله چې ځناور اوتښتی نو هغه سره دا شان کوئی.

راوی عبايه وائی چې ځما نيکه رافع بن خديج رضی الله عنه عرض اوکړو چې مونږ ته اميد دې يا ئې اووئيل چې ويره ده چې سبا به مونږ دښمن سره مقابله کوؤ او مونږ سره هيڅ چاړه نشته دې. نو آيا مونږ بانړس سره ذبح کولې شو؟ نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې کوم څيزونه وينه توې کړی او په هغې باندې دالله جل جلاله نوم اخستې شوې وی نو هغه خوړلې شئ ليکن غاښونه او نوکونه نه دی پکار، ددې متعلق اووايم چې غاښونه خو هډوکی دی او نوکونه حبشيانو ئې چړې دی.

**قوله**: فَعَجِلُوا فَنَصَبُوا الْقُدُورَ: يعنی صحابه کرامو رضی الله عنهم تيزی اوکړه اوکټوئی ئې سورې کړې، د امام ابوداؤد رحمه الله روايت دې چې «فانطلق ناس من سرعان الناس فذبحوا ونصبوا قدورهم قبل ان يقسم» (۱)

**قوله**: فَدُفِعَ إِلَيْهِمُ النَّبِيُّ ﷺ: «دفع» فعل مجهور په معنی د وصل دې يعنی نبی کريم ﷺ چې په روستو صفونو کښې وو، هغوئ ته ورغلل.

**قوله**: فَأَمَرَ بِالْقُدُورِ فَأُكْفِئَتْ: نبی کريم ﷺ د کټوؤ متعلق حکم اوکړو نو هغه الټه کړې شوې.

ددې يو وجه دا وه چې دا خلق په دارالاسلام کښې داخل شوی وو. اودارالاسلام کښې داخليدو نه پس د تقسيم نه مخکښې مال غنيمت کښې څه خوراك صحيح نه دې او دلته مال غنيمت اوسه پورې تقسيم شوې نه وو.

او دويمه وجه دا ليکلې شوې ده چې په دې موقع باندې خلقو دخپلو ضرورتونو او حاجتونو په قدر وانخستل بلکه د نبی کريم ﷺ انتظار کولو نه بغير د ضرورت نه زيات واخستل او دا جائز نه وو ددې وجې نبی کريم ﷺ د کټوؤ د الټه کولو تنبيه اوکړه.(۲)

**يو اشکال او دهغې جواب**: دلته دا اشکال کيدې شی چې غوښه خو مال دې او نبی کريم ﷺ د مال ضائع کيدو نه منع اوفرمائيله. بيا نبی کريم ﷺ کټوئی الټه کړې او غوښه ئې ولې ضائع کړه.

---

۱) (فتح الباری :۹/ ۷۸۰، و سنن ابی داؤد کتاب الاضاحی باب الذبيحة بالمروة (رقم الحديث:۲۸۲۱) ۳/ ۱۰۲)

۲) فتح الباری :۹/ ۷۸۱، عمدة القاری:۲۱/ ۱۱۳).

امام نووی رحمه الله صرف هندنی التبهٔ کي او ددې خوروه او اوبه وغیره ئې وارولې، غوښه ئې نه ضائع کړی.

لیکن په دې جواب باندې د امام ابوداؤد رحمه الله روایت سره شبه کیږی ځکه چې په هغې کښې دی چې (جاء رسول الله ﷺ یمشی علی قومه فاکفا قدرونا بقوسه ثم جعل یرمل اللحم بالتراب) په دې روایت کښې تصریح ده چې نبی کریم ﷺ غوښه ښاورو کښې ویشتې وه.

دې شبهې لره په دې وینا سره لرې کولې شی چې غوښه په ښاوره کښې ویشتلو سره دې ضائع کیدل نه لازمیږی ځکه چې ددې ونیځلو سره دا قابل استعمال کښې راتلې شی.

او دا جواب هم ورکولې شی چې عامو حالاتو کښې اګر چې څه څیز ضائع کول جائز نه دی لیکن د زجروتنبیه په وخت کښې ددې ګنجائش کیدشی.

یعنی خلقو سره آسونه ډیر کم وو . مطلب دادې که آسونو والا ډیر وې نو د تښتیدلی اوښ بندوبست به ئې کړې وې لیکن آسونه کم وو. ددې وجې هغه په قابو کښې نه راتلو.

**قوله**: فَطَلَبُوهُ فَأَعْيَاهُمْ: خلق هغه اوښ پسې شو خو هغه خلق ستړی کړل، د (اعیا) معنی ستړی کول دی. فَأَهْوَى إِلَيْهِ:یو سړی دې اوښ باندې غشې اوویشتلو ددې اراده ئې اوکړه، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې ددې سړی نوم ماته معلوم نشو..([1])

**قوله**: فَحَبَسَهُ اللَّهُ: الله تعالی ده لره اودرولو، یعنی دې پرې اولګیدو او اودریدو.

**قوله**: إِنَّ لِهَذِهِ الْبَهَائِمِ أَوَابِدَ: (اوابد) د (ابدة) جمع ده، چې ددې معنی وحشت او غریب کیدو ده. (ابدة) یعنی (عجیبة وغریبة).([2])

**قوله**: (انا لنرجوا او نخاف): راوی ته شك دې چې (نرجوا) ئې وئیلی وو او که (نخاف) ئې وئیلی وو.س

**قوله**: وَلَيْسَ مَعَنَا مُدًى: (مدی: مدیة) دمیم په فتحه او دال په سکون سره، جمع ده، چړې ته وائی. ددې مطلب دا وو چې سبا له به زمونږ دښمن سره مقابله وی، مال غنیمت کښې مونږ ته څناور ملاؤیدیشی چې د هغې د ذبح کولو به مونږ ته ضرورت وی داشان مونږته دخپلوځناورو د ذبح کولوهم ضرورت کیدشی.ددې وجې نه دچړې نه علاوه په نورو څیزونو باندې هم ذبح کول جائزکیدشی.([3])

**قوله**: لَيْسَ السِّنَّ وَالظُّفُرَ: (السن والظفر) دادواړه لفظونه خومنصوب دی، یادمنصوب کیدوپه صورت کښې (الیس) استثناء او د مستثنی کیدوپه وجه دا دواړه منصوب به وی.اویامرفوع به وی دمرفوع کیدوپه صورت کښې به داد(الیس) اسم وی،اوخبربه محذوف

---

[1]) فتح الباری :۷۸۲/۹).
[2]) فتح الباری :۷۸۳/۹).
[3]) فتح الباری ج۹ص۷۸۳)

وی (ای الیس السن والظفر مهاحا) لیکن د منصوب کیدو احتمال ددې وجې راجح دې چې د داؤد بن عیسی روایت د (لیس) په ځې (الاسنا وظفرا) دې [1]

**قوله: أَمَّا السِّنُّ فَعَظْمٌ:** یعنی غاښونه خوهډوکی دی اوهډوکی سره یوځیزذبح کول جائزنه دی. دعدم جوازیووجه داده چې هډوکی سره ذبح کولوکښې به هډوکی په وینه باندې نجس شی اوهډوکی لره دنجس کیدوپه وجه حضورنبی کریم ﷺ منع اوفرمائیله ځکه چې هډوکی دجناتوخوراک دې امام نووی رحمه الله داوجه بیان کړې ده [2]

اودویمه وجه داده چې په دې صورت کښې تعذیب دحیوان دې هډوکی سره ځناورزرنشی ذبح کولې نوهغه به په عذاب کښې اخته شی ددې وجې نه ئې منع اوفرمائیله [3]

**قوله: وَأَمَّا الظُّفُرُ فَمُدَى الْحَبَشَةِ:** اونوکونه دحبشیانوچړې دی حبش چونکه کافر وو. او تشبیه بالکفارجائزنه ده، ددې وجې ئې منع اوفرمائیله اوپه دې کښې تعذیب حیوان هم دې. [4]

که نوکونه اوغاښونه دبدن نه جداوی اوچاپه دې سره ځناور ذبح کړونوذبح صحیح ده البته داشان ذبح کول مکروه دی. بیاهم که نوکونه اوداغاښونه بدن نه جدانه شواوچا په خپلو نوکونو یا غاښونو سره ځناورذبح کړونو ذبح به صحیح نه وی. [5]

## ۱۲- بَاب مَا ذُبِحَ عَلَى النُّصُبِ وَالأَصْنَامِ

[۵۱۸۰] حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ أَسَدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ - يَعْنِي ابْنَ الْمُخْتَارِ - أَخْبَرَنَا مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ قَالَ أَخْبَرَنِي سَالِمٌ أَنَّهُ سَمِعَ عَبْدَ اللَّهِ يُحَدِّثُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - أَنَّهُ لَقِيَ زَيْدَ بْنَ عَمْرِو بْنِ نُفَيْلٍ بِأَسْفَلِ بَلْدَحٍ، وَذَاكَ قَبْلَ أَنْ يُنْزَلَ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - الْوَحْيُ، فَقَدَّمَ إِلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - سُفْرَةً فِيهَا لَحْمٌ، فَأَبَى أَنْ يَأْكُلَ مِنْهَا، ثُمَّ قَالَ إِنِّي لاَ آكُلُ مِمَّا تَذْبَحُونَ عَلَى أَنْصَابِكُمْ، وَلاَ آكُلُ إِلاَّ مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ. [ر: ۳۶۱۴]

داصنام اوبتانوپه نوم ذبح کول حرام دی روایت کښې دی چې دحضور نبی کریم ﷺ دنزول وحی نه مخکښې زیدبن عمروبن نفیل سره په مقام بلدح کښې ملاقات اوشودحضورنبی کریم ﷺ په خدمت کښې په دسترخوان باندې غوښه پیش کړې شوه حضورنبی کریم ﷺ دهغې دخوراک نه انکاراو کړواووې فرمائیل چې څه داذبیحه نه خورم چه کوم تاسو دخپلو

---

[1] ) فتح الباری ج۹ص۷۸۱)
[2] ) فتح الباری ج۹ص ۷۸۱ وشرح مسلم للنوی کتاب الاضاحی باب جوازالذبائح بکل ماانهر الدم ج۲ص۱۵۷)
[3] ) فتح الباری ج۹ص ۷۸٤)
[4] ) فتح الباری ج۵ص۲۰۸)_
[5] ) ردالمختار:ج۵ص۲۰۸).

بتانوپه نوم باندې ذبح کړې وی،

دلته په روایت کښې دی چه «فقدم رسول الله صلی الله علیه وسلم سفرة اللحم» یعنی حضورنبی کریم دغوښې دسترخوان دزیدبن عمروبن نفیل په وړاندې پیش کړواود کشمیهنی روایت کښې دی چې «فقدم الی رسول الله سفرة» یعنی دحضورنبی کریم ﷺ په خدمت کښې دسترخوان پیش کړې شو، په دې صورت کښې «قدم» دمجهول صیغه ده.

ابن منیر رحمه الله ددواړو روایتونوپه مینځ کښې تطبیق ورکوی اووائی چه هلته موجود خلقو دسترخوان دحضورنبی کریم ﷺ په خدمت کښې پیش کړې وو اوحضورنبی کریم ﷺ بیا د زید بن عمروبن نفیل طرفته وړاندې کړو.اوزیدبن عمروبن نفیل خلقولره مخاطب کړل او وې وئیل چې څه دغیرالله په نوم ذبحیه نه خوړم [۱]

زیدبن عمروبن نفیل دمشهورصحابی حضرت سعیدبن زید رضی الله عنه والددې.حضرت سعیدبن زیدعشره مبشره کښې دې،زیدبن عمروبن نفیل په زمانه جاهلیت کښې دحضرت ابراهیم علیه السلام په دین باندې وو.

**قوله: (نصب...):** بت ته وائی په صادباندې سکون اوضمه دواړه صحیح دې.ددې جمع «انصاب» رازی.[۲]

یوقول داهم دې چې نصب هغه کاڼړی ته وئیلې شوچې کوم مشرکانوبیت الله سره نصب کړې وواودبتانودنوم ذبحیه به ئې په دې کاڼړی کوله[۳]

## ۱۷_ باب قَوْلِ النَّبِيِّ صلی الله علیه وسلم «فَلْيَذْبَحْ عَلَى اسْمِ اللَّهِ»

[۵۱۸۱] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنِ الأَسْوَدِ بْنِ قَيْسٍ عَنْ جُنْدَبِ بْنِ سُفْيَانَ الْبَجَلِيِّ قَالَ ضَحَّيْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صلی الله علیه وسلم - أُضْحِيَةً ذَاتَ يَوْمٍ فَإِذَا أُنَاسٌ قَدْ ذَبَحُوا ضَحَايَاهُمْ قَبْلَ الصَّلاَةِ فَلَمَّا انْصَرَفَ رَآهُمُ النَّبِيُّ صلی الله علیه وسلم - أَنَّهُمْ قَدْ ذَبَحُوا قَبْلَ الصَّلاَةِ فَقَالَ «مَنْ ذَبَحَ قَبْلَ الصَّلاَةِ فَلْيَذْبَحْ مَكَانَهَا أُخْرَى، وَمَنْ كَانَ لَمْ يَذْبَحْ حَتَّى صَلَّيْنَا فَلْيَذْبَحْ عَلَى اسْمِ اللَّهِ». [ر: ۹۴۲]

**دترجمة الباب فائده اومقصد:** یوباب قبل د«تسمیة علی الذبیحه» باب تیرشوې دې.دلته دوباره رواړې چې ددې نه په ظاهره تکرارمعلومیږي،علامه عینی رحمه الله فرمائی چې حضرت امام بخاری رحمه الله ددې باب نه پس مذکوره ترجمة الباب قائموی اودې خبرې طرفته اشاره کوی چې بسم الله هیرولووالا،بسم الله پرېښودلووالانه دې،نوهغه لیکی چې «فائدة هذه الترجمة

---

[۱] فتح الباری.(ج۹ص۷۸۶)_ وعمدة القاری:ج۲۱ص۱۱۴)و المتواری علی تراجم ابواب البخاری:۲۰۵)
[۲] مختارالصحاح: ۶۶۱)
[۳] عمدة القاری ج۲۱ص۱۱۳وفتح البار ج۹ص۷۸۶)

بعد تقدم الترجمة على التسمية التنبية على ان الناس يذبح على اسم الله، لانه لم يقل فيه فليسم وانما جعل اصل ذبح المسلم على اسم الله من صفة فعله ولوازمه كما ورد ذكر الله على قلب كل مسلم سمی اولم يسم» (۱)

شيخ الحديث مولانا محمد زكريا رحمه الله دې توجيه لره وجيه گرزولې ده. (۲)

دباب مناسبت حديث نه ظاهر دې (اضحاة) (بفتح الهمزة) د (اضحية) معنی کښې ده.

## ۱۸- باب مَا أَنْهَرَ الدَّمَ مِنَ الْقَصَبِ وَالْمَرْوَةِ وَالْحَدِيدِ

[۵۱۸۲] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي بَكْرٍ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ نَافِعٍ سَمِعَ ابْنَ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ يُخْبِرُ ابْنَ عُمَرَ أَنَّ أَبَاهُ أَخْبَرَهُ أَنَّ جَارِيَةً لَهُمْ كَانَتْ تَرْعَى غَنَمًا بِسَلْعٍ، فَأَبْصَرَتْ بِشَاةٍ مِنْ غَنَمِهَا مَوْتًا، فَكَسَرَتْ حَجَرًا فَذَبَحَتْهَا، فَقَالَ لِأَهْلِهِ لَا تَأْكُلُوا حَتَّى آتِيَ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - فَأَسْأَلَهُ، أَوْ حَتَّى أُرْسِلَ إِلَيْهِ مَنْ يَسْأَلُهُ. فَأَتَى النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - أَوْ بَعَثَ إِلَيْهِ فَأَمَرَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - بِأَكْلِهَا.

[۵۱۸۳] حَدَّثَنَا مُوسَى حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَافِعٍ عَنْ رَجُلٍ مِنْ بَنِي سَلِمَةَ أَخْبَرَ عَبْدَ اللَّهِ أَنَّ جَارِيَةً لِكَعْبِ بْنِ مَالِكٍ تَرْعَى غَنَمًا لَهُ بِالْجُبَيْلِ الَّذِي بِالسُّوقِ وَهُوَ بِسَلْعٍ، فَأُصِيبَتْ شَاةٌ، فَكَسَرَتْ حَجَرًا فَذَبَحَتْهَا، فَذَكَرُوا لِلنَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فَأَمَرَهُمْ بِأَكْلِهَا. [ر: ۲۱۸۱]

[۵۱۸۴] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبِي عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سَعِيدِ بْنِ مَسْرُوقٍ عَنْ عَبَايَةَ بْنِ رَافِعٍ عَنْ جَدِّهِ أَنَّهُ قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ لَيْسَ لَنَا مُدًى. فَقَالَ «مَا أَنْهَرَ الدَّمَ وَذُكِرَ اسْمُ اللَّهِ فَكُلْ، لَيْسَ الظُّفُرَ وَالسِّنَّ، أَمَّا الظُّفُرُ فَمُدَى الْحَبَشَةِ، وَأَمَّا السِّنُّ فَعَظْمٌ». وَنَدَّ بَعِيرٌ فَحَبَسَهُ فَقَالَ «إِنَّ لِهَذِهِ الإِبِلِ أَوَابِدَ كَأَوَابِدِ الْوَحْشِ فَمَا غَلَبَكُمْ مِنْهَا فَاصْنَعُوا هَكَذَا». [ر: ۲۳۵۶]

بانړس، کانړئی او اوسپنه چه کوم یو څیز هم دځناورونه توې کړی دهغې په ذریعه ذبح کول درست دی، (قصب) بانړس ته وائی. اومروه سپین کانړی ته وائی (۳)

**د حديث نه دترجمة الباب مقصد**: روايت باب کښې دقصب اومروه ذکرنشته البته نورو روايتونو کښې ددې ذکردې، حضرت امام بخاری رحمه الله غالباهم دې روايتونو طرفته اشاره کولو دپاره ترجمة الباب کښې ددې ذکرکړې دې.ځکه چې هغه روايتونه دحضرت امام بخاری رحمه الله په شرط باندې پوره نه دي نودطبرانی په روايت کښې دی چې (افنذبح بالقصب والمروة) (۴)

---

(۱) عمدة القاری ج۲۱ص ۱۱٤)_

(۲) الابواب والتراجم (ج۲ص۹۲)_

(۳) فتح الباری ج۹ص۷۸۷).

(٤) شرح مسلم للنوی کتاب الاضاحی باب جواز الذبح ماانهر الدم :ج۲ص۱۵۷)

هم داشان دترمذی اوابن ماجه يوروايت کښې ذبح بالمروه ذکر دې، محمد بن صفوان نه روايت دې چه «ذبحت ارنبين بمروة فامرني النبي صلى الله عليه وسلم باكلهما» [1]

ترکومې پورې چې دحديد يعنى داوسپنې ذکردې نوهغه دباب آخرى روايت نه داشان ثابتيږي چې په دې کښې «وليست معنا مدى» الفاظ دى يعنى مونږسره چړې نشته دې چې ددې نه معلوميږي چې په هغه زمانه کښې چاړه سره ذبح کولو معول وو لکه څنګه چې نن هم دې [2]

دباب رومبى روايت کښې دى چې دحضرت کعب بن مالک رضي الله عنه يووينځې سلع غرسره چيلې څرولې، دې يوچيلې اوکتله چې مړه کيده، نويوکاڼړې ئې واخستلواوهغه ئې ذبح کړه، حضورنبى کريم صلى الله عليه وسلم نه چې کله تپوس اوشونوحضورنبى کريم صلى الله عليه وسلم ددې دخوراک اجازت ورکړو. حضرت حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چې ددې جاريه نوم ماته معلوم نشو. [3]

## ۱۹-باب ذَبِيحَةِ الْمَرْأَةِ وَالأَمَةِ

[۵۱۸۵] حَدَّثَنَا صَدَقَةُ أَخْبَرَنَا عَبْدَةُ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنٍ لِكَعْبِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ امْرَأَةً ذَبَحَتْ شَاةً بِحَجَرٍ، فَسُئِلَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- عَنْ ذَلِكَ، فَأَمَرَ بِأَكْلِهَا. وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنَا نَافِعٌ أَنَّهُ سَمِعَ رَجُلاً مِنَ الأَنْصَارِ يُخْبِرُ عَبْدَ اللَّهِ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- أَنَّ جَارِيَةً لِكَعْبٍ بِهَذَا.

[۵۱۸۶] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ رَجُلٍ مِنَ الأَنْصَارِ عَنْ مُعَاذِ بْنِ سَعْدٍ -أَوْ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ- أَخْبَرَهُ أَنَّ جَارِيَةً لِكَعْبِ بْنِ مَالِكٍ كَانَتْ تَرْعَى غَنَمًا بِسَلْعٍ، فَأُصِيبَتْ شَاةٌ مِنْهَا، فَأَدْرَكَتْهَا فَذَبَحَتْهَا بِحَجَرٍ، فَسُئِلَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- فَقَالَ «كُلُوهَا». [ر: ۲۱۸۱]

**د ښځې ذبيحه جائز ده:** حضرت امام بخارى رحمه الله داترجمة الباب قائم کړواوپه هغه خلقوئې ردکړې دې چې دښځې ذبحيه ناجائزه ګڼړى [4] محمدبن عبدالحکم دحضرت امام مالک رحمه الله نه دذبيحه المراة کراهت نقل کړيدې ليکن «مدونه» کښې مطلقا جوازمنقول دې.

جمهورعلماء کرام فرمائى کدښځه ذبيحه کولې شى نودې ذبيحه بلاکراهت جائزده. [5]

نو روايت باب کښې دښځې دذبيحه ذکردې داروايت ددې نه مخکښې باب کښې تير

---

[1] سنن الترمذى كتاب الذبائح باب ماجاء فى الذبيحة بالمروة :ج٤ص٧٠(رقم الحديث :١٤٧٢) وسنن ابن ماجه كتاب الذبائح.باب مايذكى به :ج٢ص١٠٦٠)(رقم الحديث: ٣١٧٥).

[2] فتح البارى :ج٩ص٧٨٧)

[3] فتح لبارى ج٩ص٧٨٧)

[4] عمدة القارى ج٢١ص١١٦)

[5] عمدة القارى ج٢١ص١١٦) والمدونة الكبرى كتاب الذبائح: ج٢ص٦٧).

شویدې دلیث تعلیق لره اسماعیلی موصولا نقل کړې دې.[۱] (عن معاذبن سعدا وسعدبن معاذ) روای ته شک دې چې معاذبن سعدنه داروایت دې یاسعدبن معاذنه، علامه کرمانی رحمه الله اوفرمائیل چې معاذاوسعددواړه صحابیان دی او الصحابة کلهم عدول، لهذاحضرت معاذ،ددې نه دروایت په صحت باندې هیڅ اثرنه پریوزی.[۲]

## ۲۰- باب لَا يُذَكَّى بِالسِّنِّ وَالْعَظْمِ وَالظُّفُرِ

[۵۱۸۷] حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَبَايَةَ بْنِ رِفَاعَةَ عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم «كُلْ يَعْنِي مَا أَنْهَرَ الدَّمَ إِلَّا السِّنَّ وَالظُّفُرَ». [ر: ۲۳۵۶]

حضرت امام بخاری رحمه الله چې ددې باب لاندې چې کومه مسئله بیان کړې ده دهغې تفصیل تیرشوې دې.

## ۲۱- باب ذَبِيحَةِ الْأَعْرَابِ وَنَحْوِهِمْ

[۵۱۸۸] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا أُسَامَةُ بْنُ حَفْصٍ الْمَدَنِيُّ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ - رضي الله عنها - أَنَّ قَوْمًا قَالُوا لِلنَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - إِنَّ قَوْمًا يَأْتُونَا بِاللَّحْمِ لَا نَدْرِي أَذُكِرَ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ أَمْ لَا فَقَالَ « سَمُّوا عَلَيْهِ أَنْتُمْ وَكُلُوهُ». قَالَتْ وَكَانُوا حَدِيثِي عَهْدٍ بِالْكُفْرِ.

تَابَعَهُ عَلِيٌّ عَنِ الدَّرَاوَرْدِيِّ. وَتَابَعَهُ أَبُو خَالِدٍ وَالطُّفَاوِيُّ. [ر: ۱۹۵۲]

دحضرت امام بخاری رحمه الله مقصد دادې که کلی وال یااعرابی ذبح کول غواړی نوددې ذبحیه درست ده لکه څنګه چې روایت باب کښې تصریح ده

اکثرونسخوکښې (ذبحیه الاعراب) نه پس (ونحوهم) الفاظ دی البته دکشمیهنی روایت کښې د(وبحوهم) الفاظ دی.[۳]

**قوله**: (وكانوا حديثي عهد بالكفر): یعنی هغه تپوس کولووالا نوې نوې دکفرنه اسلام طرفته رواستلې شوې وو.

دحدیث باب نه بعضې خلقوتسمیه علی الذبیحه په عدم وجوب باندې استدلال کړې دې اووئیلې ئې دی چې تسمیه علی الذبیحه که واجب وې نو حضورنبی کریم ﷺ به دې خلقو لره به داعراب ذبیحه خوړلو اجازت نه ورکولوددې یوجواب خودادې چې داداسلام دشروع واقعه ده. نوحضرت امام مالک رحمه الله ددې په آخرکښې دااضافه کړې ده چې:

---

[۱]) عمدة القاری ج۲۱ص۱۱۷)
[۲]) شرح بخاری للکرمانی ج۲۰ ص۹۹)
[۳]) عمدة القاری :ج ۲۱ص۱۱۸، فتح الباری:ج ۹ص ۷۹۱).

(وذالك فى اول الاسلام) [1]

دويم جواب دادې چې غوښه راوړنكى هغه اعراب دتسميه دحكم نه جاهل نه وو. ددې وجې حضورنبى كريم ﷺ سوال كوونكى لره يوشان تنبيه اوفرمائيله چه تاسوبسم الله وائې، اود راوړنكو متعلق هم داګمان كول پكاردى چې هغوى بسم الله لولى [2]

**قوله**: (تابعه علي عن الداوردي): يعنى على بن المدينى دحضرت امام بخارى رحمه الله دشيخ الشيخ اسامه بن حفص متابعت كړې دې اسامه داروايت دهشام بن عروه نه نقل كړې دې اوعلى بن المدينى دعبدالعزيزبن محمددراوردى نه نقل كړې دې، اسماعيلى دتعليق موصولا نقل كړې دې [3]

**قوله**: (وتابعه ابوخالد والطفاوي): داسامه متابعت سليمان بن حبان ابوخالدهم كړې دې دامتابعت حضرت امام بخارى رحمه الله په كتاب التوحيد كښې موصولا نقل كړې دې [4]

اومحمدبن عبدالرحمان طفاوى هم داسامه متابعت كړې دې، طفاوى (بضم الطاء) طفا وه بنت حزم بن زيادطرفته منسوب دى دطفاوى متابعت حضرت امام بخارى رحمه الله په كتاب البيوع كښې موصولا كړې دې [5]

## ۲۲_ بَاب ذَبَائِحِ أَهْلِ الْكِتَابِ وَشُحُومِهَا مِنْ أَهْلِ الْحَرْبِ وَغَيْرِهِمْ

وَقَوْلِهِ تَعَالَى (الْيَوْمَ أُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبَاتُ وَطَعَامُ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ حِلٌّ لَكُمْ وَطَعَامُكُمْ حِلٌّ لَهُمْ). وَقَالَ الزُّهْرِيُّ لَا بَأْسَ بِذَبِيحَةِ نَصَارَى الْعَرَبِ، وَإِنْ سَمِعْتَهُ يُسَمِّي لِغَيْرِ اللَّهِ فَلَا تَأْكُلْ، وَإِنْ لَمْ تَسْمَعْهُ فَقَدْ أَحَلَّهُ اللَّهُ، وَعَلِمَ كُفْرَهُمْ. وَيُذْكَرُ عَنْ عَلِيٍّ نَحْوُهُ. وَقَالَ الْحَسَنُ وَإِبْرَاهِيمُ لَا بَأْسَ بِذَبِيحَةِ الْأَقْلَفِ. وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ طَعَامُهُمْ ذَبَائِحُهُمْ

[٥١٧٩] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ هِلَالٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُغَفَّلٍ - رضى الله عنه - قَالَ كُنَّا مُحَاصِرِينَ قَصْرَ خَيْبَرَ، فَرَمَى إِنْسَانٌ بِجِرَابٍ فِيهِ شَحْمٌ، فَنَزَوْتُ لِآخُذَهُ، فَالْتَفَتُّ فَإِذَا النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم فَاسْتَحْيَيْتُ مِنْهُ. [ر: ٢٩٨٤]

**د ترجمة الباب مقصد**: دحضرت امام بخارى رحمه الله مقصد دادې چې داهل كتابو ذبائح اوددې ذبائحوشحوم (چربى) دواړه استعمالول جائزدى هم دادجمهورومسلک دې.

حضرت امام مالک رحمه الله اوحضرت امام محمد نه روايت داهم دې چې كوم څيزونه داهل كتاب دپاره حرام ګرزولې شوى وو، دهغې استعمال جائزنه دې لكه شحوم دى، دا چونكه

---

[1] عمدة القارى :ج۲۱ص فتح البارى ج۹ص ۷۹۱)

[2] عمدة القارى :ج۲۱ص۱۱۸،فتح البارى ج ۹ص۷۹۳)

[3] عمدة القارى ج۲۱ص۱۱۸ فتح البارى ج ۹ص ۷۹۱)

[4] عمدة القارى ج۲۱ص۱۱۸، فتح البارى ج۹ص۷۹۱)

[5] عمدة القارى ج۲۱ص۱۱۸ فتح البارى ج۹ص۷۹۱)

اهل كتاب دپاره حرام وو ،لهذا هيڅ يو مسلمان دپاره داهل كتاب ذبح شوى ځناورو شحوم جائزنه دى [1]

حضرت امام بخارى رحمه الله دخپل معمول مطابق ترجمة الباب كښې دقرآن پاک آيت په طورد استدلال پيش كړې دې ايت كريمه «وطعام الذين اوتوا الكتاب» كښې دطعام نه داهل كتاب ذبائح مراددى [2]

داهل كتاب ذبائح بالاتفاق حلال دى ليكن دغيرالله دنوم ذبيحه ددوى په نيزهم حرام ده ليكن دنورومشركانو او كافرانو ذبائح حلال نه دى ځكه چې هغوى تسميه نه وائى اودغيرالله په نوم ذبيحه وائى [3]

**داهل كتابو دذبيحه شرطونه:** فقهاء داهل كتاب ذبيحه حلال كيدو دپاره درې شرطونه ليكى:

① اول داچې ذبيحه اسلامى طريقې سره شوې وى.

② دويم داچې د ذبح په وخت دالله تعالى نوم واقعتااغستلې وى ـ

③ دريم دا چې ذبح كونكې واقعتا اهل كتاب وى ـ

په دې كښې چې هريوشرط فوت شونوذبيحه به جائزه نه وى ـ مثلاكه چرته معلومه شى چې دذبح وخت دالله تعالى دنوم په ځائې صرف دحضرت عيسى عليه السلام نوم واخستې شى ياذبح كولو والااهل كتابو كښې نه وى بلكه ملحد وى نوداسې ذبيحه خوراک جائزنه ده [4]

اهل كتابونه هغه خلق مراد دى كوم چې دالله تعالى دوجودقائل دى اوپه تورات او انجيل كښې په يوباندې ايمان لرى اگرچه عقائدئې مشركانه وى. نن صبا ديورپ اهل كتاب عام طورباندې دهريه اوملحددى په هغوى كښې ډيردالله تعالى دوجود قائل هم نه دى ددې وجې دداسې خلقوذبيحه درست نه ده كه دچامتعلق معلوم وى چې هغه واقعتااهل كتابونه وى نودهغه ذبيحه درست ده.

**قوله:** وَقَالَ الزُّهْرِي لاَ بَأْسَ بِذَبِيحَةِ نَصَارِي الْعَرَبِ :امام زهرى رحمه الله فرمائى چې دعربو نصرانيانو ذبيحه استعمالولو كښې هيڅ حرج نشته دې ليكن كه معلوم شى چې هغوى ذبيحه دغيرالله په نوم باندې كوى نوبياهغه خوړل نه دې پكار.

داتعليق عبدالرزاق موصولا نقل كړې دې [5]

**قوله:** وَيُذْكَرُ عَنْ عَلِي نَحْوُهُ: يعنى دامام زهرى رحمه الله دقول پشان يوقول دحضرت على رضي الله عنه نه هم نقل شوې دې. «يذكر» دمجهول صيغه راوړى اوحضرت امام بخارى رحمه الله ددې ضعف طرفته ته اشاره كړې ده

---

[1] عمدة القارى ج۲۱ص ۱۱۹، فتح البارى: ج۹ص ۷۹٤).

[2] عمدة القارى ج۲۱ص۱۱۹،فتح البارى ج۹ص ۷۹٤).

[3] عمدة القارى ج۲۱ص۱۱۹)

[4] فتاوى هنديه :ج۵ص۲۸۵، وردالمختار :ج۶ص۲۹۷).

[5] عمدة القارى:ج۲۱ص۱۱۹، فتح البارى ج۹ص ۷۹٤)

حضرت علی رضی الله عنه نه بعضونصرانیانو دعربو ذبائحو ممانعت هم منقول کړې دې، نو عبدالرزاق په صحیح سند سره دحضرت علی رضی الله عنه دا اثر نقل کړې دې چې «لاتاکلوا ذبائح نصاری بنی تغلب فانهم لم یتمسکوا من دینهم الا بشرب الخمر»[1]

**قوله**: وَقَالَ الْحَسَنُ وَإِبْرَاهِيمُ لَا بَأْسَ بِذَبِيحَةِ الْأَقْلَفِ: (اقلف) غیرمختون ته وائی یعنی داسې سړی چې دهغه سنت (ختنه) نه وی شوې دهغه ذبیحه جائزده چونکه حضرت ابن عباس رضی الله عنه او امام محمد رحمه الله نه عدم جواز منقول دې[2]

ددې وجې حضرت امام بخاری رحمه الله دا اثر نقل کړې دې دحضرت حسن بصری رحمه الله اثر له حضرت عبدالرزاق او دابرهیم نخعی رحمه الله تعلیق له ابوبکر خلال موصولا نقل کړې دې[3]

**قوله**: وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ طَعَامُهُمْ ذَبَائِحُهُمْ: دقران پاک آیت «وطعام الذین اوتوالکتاب» کښې دطعام نه ذبائح مراد دی دحضرت ابن عباس رضی الله عنه تعلیق له طبری رحمه الله موصولا نقل کړې دې[4]

روایت باب کښې دی چې (ترِوت) ترو معنی کنل یاکنستل ده، یعنی څه دچربۍ داتهیلۍ اخستلو دپاره مې او کنلو، داروایت کتاب المغازی کښې غزوه خیبرلاندې تیرشوې دې.

## ۲۳- باب مَا نَدَّ مِنَ الْبَهَائِمِ فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ الْوَحْشِ

وَأَجَازَهُ ابْنُ مَسْعُودٍ، وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ مَا أَعْجَزَكَ مِنَ الْبَهَائِمِ مِمَّا فِي يَدَيْكَ فَهُوَ كَالصَّيْدِ، وَفِي بَعِيرٍ تَرَدَّى فِي بِئْرٍ مِنْ حَيْثُ قَدَرْتَ عَلَيْهِ فَذَكِّهِ، وَرَأَى ذَلِكَ عَلِيٌّ وَابْنُ عُمَرَ وَعَائِشَةُ.

[۵۱۹۰] حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا أَبِي عَنْ عَبَايَةَ بْنِ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّا لَاقُو الْعَدُوِّ غَدًا، وَلَيْسَتْ مَعَنَا مُدًى فَقَالَ «اعْجَلْ أَوْ أَرِنْ مَا أَنْهَرَ الدَّمَ وَذُكِرَ اسْمُ اللَّهِ فَكُلْ، لَيْسَ السِّنَّ وَالظُّفُرَ، وَسَأُحَدِّثُكَ، أَمَّا السِّنُّ فَعَظْمٌ، وَأَمَّا الظُّفُرُ فَمُدَى الْحَبَشَةِ». وَأَصَبْنَا نَهْبَ إِبِلٍ وَغَنَمٍ فَنَدَّ مِنْهَا بَعِيرٌ، فَرَمَاهُ رَجُلٌ بِسَهْمٍ فَحَبَسَهُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- «إِنَّ لِهَذِهِ الإِبِلِ أَوَابِدَ كَأَوَابِدِ الْوَحْشِ، فَإِذَا غَلَبَكُمْ مِنْهَا شَيْءٌ، فَافْعَلُوا بِهِ هَكَذَا». [ر: ۲۳۵۶]

که یو څناور اوتښتی نوهغه دوحشی څناورپه حکم کښې دې، اودتورې یاغشې په ذریعه دې دلرې نه ویشلې شی او خوړلې شی،

حضرت عبدالله بن عباس فرمائی که ستاڅناور اوتښتی اودهغه قابو کښې راوستل مشکل

---

[1] عمدة القاری: ج۲۱ص۱۱۹، فتح الباری ج۹ص۷۹۴)

[2] المغنی لابن قدامه کتاب الصید والذبائح ج۹ص۳۱۱)

[3] عمدة القاری: ج۲۱ص۱۱۹، فتح الباری ج۹ص۷۹۴)

[4] عمدة القاری: ج ۲۱ص۱۱۸)

وی نوهغه دښکارپه حکم کښې دې لهذادلرې نه هغه ویشتل جائزدی. داشان که یوځناور کوهی ته پریوزی نودهغې دذبح کولودپاره دبدن په کومه حصه باندې چې موقع ملاؤشوه، په دې غوزارسره به داذبح ګنړلې شی لکه چادې په پټون باندې ویشتلواوهغه دې نه مړشونودې خوراک جائزدې.

دحضرت علی رضی الله عنه حضرت رضی الله عنه اودحضرت عائشه رضی الله عنها هم دارائې وه.

دحضرت امام ابوحنیفه رحمه الله حضرت امام شافعی رحمه الله او امام احمدبن حنبل اودجمهورعلماء کرامو هم دامسلک دې

حضرت امام مالک رحمه الله فرمائی چې (لایجوزان یذکی اصلا الافی الحلق واللبة)[1]

حضرت ابن مسعود رضی الله عنه تعلیق لره ابن ابی شیبه دحضرت ابن عباس رضی الله عنه تعلیق لره عبدالرزاق اودحضرت علی رضی الله عنه تعلیق لره ابوبکررحمه الله.دحضرت ابن عمر رضی الله عنه تعلیق لره عبدالرزاق اودحضرت عائشه رضی الله عنها تعلیق لره ابن حزم موصولانقل کړې دې.[2]

حدیث باب ثوبابونه مخکښې تیرشوی دې.

## ۲۴- بَاب النَّحْرِ وَالذَّبْحِ

وَقَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ عَنْ عَطَاءٍ لاَ ذَبْحَ وَلاَ مَنْحَرَ إِلاَّ فِي الْمَذْبَحِ وَالْمَنْحَرِ. قُلْتُ أَيَجْزِي مَا يُذْبَحُ أَنْ أَنْحَرَهُ قَالَ نَعَمْ، ذَكَرَ اللَّهُ ذَبْحَ الْبَقَرَةِ، فَإِنْ ذَبَحْتَ شَيْئًا يُنْحَرُ جَازَ، وَالنَّحْرُ أَحَبُّ إِلَيَّ، وَالذَّبْحُ قَطْعُ الأَوْدَاجِ. قُلْتُ فَيُخَلِّفُ الأَوْدَاجَ حَتَّى يَقْطَعَ النِّخَاعَ قَالَ لاَ إِخَالُ.

وَأَخْبَرَنِي نَافِعٌ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ نَهَى عَنِ النَّخْعِ يَقُولُ يَقْطَعُ مَا دُونَ الْعَظْمِ، ثُمَّ يَدَعُ حَتَّى تَمُوتَ.

وَقَوْلُ اللَّهِ تَعَالَى (وَإِذْ قَالَ مُوسَى لِقَوْمِهِ إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تَذْبَحُوا بَقَرَةً) وَقَالَ (فَذَبَحُوهَا وَمَا كَادُوا يَفْعَلُونَ).

وَقَالَ سَعِيدٌ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ الذَّكَاةُ فِي الْحَلْقِ وَاللَّبَّةِ. وَقَالَ ابْنُ عُمَرَ وَابْنُ عَبَّاسٍ وَأَنَسٌ إِذَا قَطَعَ الرَّأْسَ فَلاَ بَأْسَ.

[۵۱۹۱] حَدَّثَنَا خَلاَّدُ بْنُ يَحْيَى حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ قَالَ أَخْبَرَتْنِي فَاطِمَةُ بِنْتُ الْمُنْذِرِ امْرَأَتِي عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ -رضى الله عنهما- قَالَتْ نَحَرْنَا عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فَرَسًا فَأَكَلْنَاهُ.

[۵۱۹۲] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ سَمِعَ عَبْدَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ فَاطِمَةَ عَنْ أَسْمَاءَ قَالَتْ ذَبَحْنَا عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَرَسًا وَنَحْنُ بِالْمَدِينَةِ فَأَكَلْنَاهُ.

[۵۱۹۳] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ هِشَامٍ عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ الْمُنْذِرِ أَنَّ أَسْمَاءَ بِنْتَ أَبِي

---

[1]) عمدة القاری ج۲۱ص ۱۲۰)
[2]) عمدة القاری ج۲۱ص ۱۲۰) فتح الباری ج۹ص ۷۹۶)

بَكْرٍ قَالَتْ نَحَرْنَا عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَرَسًا فَأَكَلْنَاهُ. تَابَعَهُ وَكِيعٌ وَابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ هِشَامٍ فِي النَّحْرِ.[۵۲۰۰]

**د نحر لغوی معنی**: علامه ابن قدامه رحمه الله دنحرمعنی بیانوی اوفرمائی چې «ومعنى النحران يضربها بحربة اونحوهافى الوهدة التى بين اصل عنقها وصدرها»[1] یعنی دځناورد حلق اود سینې په مینځ کښې چې کومه کنده غوندې وی، په هغې کښې نیزې وغیره وهلوته نحروائی

**د ذبح کولو والا ځناور لره دنحر حکم**: په اوښ کښې نحراونوروځناوروکښې ذبح افضل ده[2] البته په دې کښې اختلاف دې چې نحروالا ځناورئې ذبح کړویاذبح کولو ځناورئی نحر کړو نو دا جائز دی که نه ؟

حضرات مالکیه کښې ابن القاسم رحمه الله داناجائزګڼړلې دې لهذاددوی په نیزکه چاوښ ذبح کړونوداجائزنه دی.

دامام احمد رحمه الله په نیزداشان کول مطلقابلا کراهت جائزدی

دحضرت امام ابوحنیفه رحمه الله، حضرت امام مالک رحمه الله حضرت امام شافعی رحمه الله او د جمهورو په نیزذبح والا ځناورنحرکول اونحروالاځناورذبح کول جائزدی خومکروه دی[3]

**قوله**: (وقال ابن جريج عن عطاء لاذبح ولا نحرالا في المذبح والمنحر): (ابن جریج عبدالملک بن عبدالعزیز) حضرت عطاء بن ابی رباح نه نقل کوی چې ذبح (حلق باندې چړې راښکوته وائی اونحرسینه باندې برچه وهلوته وائی حلق اوهم په سینه باندې وی

(مذبح) او (منحر) دواړه دظرف صیغې دی مقصد دادې چې دځناوریوبلې حصې لره ذبح کړه یائې په نیزه او وهله نوهغه ذبح درست نه ده. چې دذبح اختیاری متلق هم داحکم دې. خوکه یو وحشی ځناوروی یاپالونکې ځناوراوتښتی نوپه دې کښې ذبح اضطراری هم جائزده چې دځناور کومه یوه حصه هم اوویشتلی شی نووېنه ترې توې شی نوذبح به صحیح وی.

**قوله**: )قلت ايجزى ما يذبح ان انحره؟ قال نعم): ابن جریج رحمه الله وائی چې ما عطاء بن ابی رباح نه تپوس اوکړوچې کوم ځناورذبح کولې شی که څه دهغې نحراوکړم نودابه کافی وی که نه ؟ نوهغوی اوفرمائیل چې آوکافی دی. الله تعالی په قران پاک کښې دغوا د ذبح کولوحکم کړېې دې داشان که تاسونحروالا ځناورذبح کړئې نوداهم جائزدی لیکن د ذبح کولومقابله کښې نحرځماپه نیززیات خوښ دی دبقره یعنی دغوامتعلق خوقران پاک کښې دذبح لفظ استعمال شوې دې، ارشاددې چې «ان الله يامركم ان تذبحوابقرة» لیکن حدیث کښې دنحرلفظ راغلې دې[4]

[1]) المغنى لابن قدامة كتاب الذبائح :ج۹ص۳۱۷)
[2]) فتح البارى: ج۹ ۶۹۹، عمدة القارى ج ۲۱ص۱۲۱)
[3]) مذکوره تفصیل دپاره اوګورئی عمدة القارى (ج۲۱ص۱۲۱)
[4]) عمدة القارى (ج۲۱ص۱۲۱)

عطاء بن ابی رباح (ذکرالله ذبح البقرة) نه استدلال طرفته اشاره کړې ده چې حدیث کښې خو دبقره دپاره (نحر) راغلې دې اوپه قران پاک کښې دذبح لفظ راغلې دې،معلومه شوچې نحروالا ذبح اوذبح والا نحرکولې شی.

**(قوله: والذبح قطع الاوداج)** :(اوداج: ودج بفتح الواو والدال) جمع ده په مرئی کښې دوینې رګ یانالئې ته وائی دهرخُناورمرئې کښې دوینې رګونه وی هغې ته (ودجان) وائی (۱)
دوینې دارګونه یادوه نالئې اګرچې دوه دی لیکن داکلمه تغلیباځلورو نالودپاره فقهاء استعمالوی، دوه خودادوینې رګونه دی اودوه نالئې نورې دی.

① حلقوم: دساه نالئ ② المرئ: دخوراک نالئ (۲)

**دذبح دپاره څو رګو نه پریکول ضروری دی:** دذبح کولومکمل صورت خودادې چې مذکوره څلور نالئ پریکړی بیاهم که چاپه دې څلورو کښې بعضې پریکړې اوبعضې ئې پرینبودې نوذبح جائزده که نه؟ په دې کښې اختلاف دې. حضرت امام مالک رحمه الله په نیزودجین او حلقوم پریکول واجب دی.اومرئ یعنی دخوراک نالئ پریکول واجب نه ده (۳)
دحضرت امام شافعی رحمه الله په نیزحلقوم اومرئ پریکول واجب دی (ودجین) دوینې نالئ پریکول ضروری نه دی.(۴)
حضرت امام احمدبن حنبل رحمه الله یوروایت هم ددې مطابق دې (۵)
دحضرت امام احمدبن حنبل رحمه الله بل روایت کښې څلور واړه پریکول واجب دی (۶)

حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله (للاکثرحکم الکل) داصولومطابق فرمائی چې په دې څلوروکښې چې کوم درې هم پریکړې شی نودذبیحه دجوازدپاره به کافی وی.
دامام ابویوسف رحمه الله په نیزهم ددریوپریکول کافی دی لیکن هغه فرمائی چې په دې دریو واړوکښې به حلقوم اومرئ شامل وی.دحلقوم اومرئ پریکول ددوی په نیزد جواز د ذبیحه دپاره ضروری دی (۷)
اکثروحنفیانودحضرت امام ابوحنیفه رحمه الله قول اختیاوکړې دې اوهم په دې ئې فتوی ورکړې ده (۸)

**قوله: قلت: فیخلف لاوداج حتی یقطع النخاع قال لااخال** :ابن جریج رحمه الله فرمائی

---

(۱) قال ابن سیده الودجان عرقان من الراس الی السنخروالنجمع اوداج)لسان العرب:ج۲ص۳۹۷)
(۲) بدائع الصنائع ج۵ص۴۱)
(۳) الذخیره للقرافی :ج ٤ص ۱۳۳. فتح الباری ج۹ص۷۹۹)
(۴) کتاب الام ج۲ص۲۵۹و فتح الباری ج۹ص۷۹۹)
(۵) عمدة القاری (ج۲۱ص۱۲۱)
(۶) احکام الذبائح :فتح الباری :۸)
(۷) بدائع الصنائع ج۵ص۴۲،۴۱)
(۸) فتح الباری ج۹ص۷۹۹)

چې ما دعطاء بن ابى رباح نه تپوس اوکړو چې که رګونه روستو پرېښودې شي تردې پورې چې حرام مغز پرېکړې شي نو دا صورت به جائزوي؟ هغوى اوفرمائيل چې دا صحيح نه ګنړم. ابن جريج رحمه الله فرمائى چې نافع رحمه الله ماته بيان کړې دې چې حضرت ابن عمر رضی الله عنه د حرام مغز پرېکولو نه منع فرمائيلې ده.

يخلف د مجهول صيغه ده او داج ددې نائب فاعل دې يعنى رګونه پرېکول او روستو پرېښودل او مخکښې حرام مغز هم پرېکړې شي.

نخاع د نون په فتح او ضمه سره، حرام مغز ته وائى دا د څټ په هډوکى کښې يو سپين رګ وى.[1]

واخبرنی نافع) دا د ابن جريج قول دې.

صاحب هدايه فرمائى که چا ذبح کولو په وخت کښې حرام مغز هم پرېکړل نو دا شان کول مکروه دى، بيا هم ذبيحه خوړل به حرامه نه وى.[2]

د ابن جريج مذکوره تعليق عبدالرزاق موصولا نقل کړې دې [3]

**وقال سعيد بن جبير عن ابن عباس الذكاة فى الحلق واللبة)**: حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائى چې ذبح صرف په حلق او سينه کښې وى. (لبة) د لام په فتحه او د باء په تشديد سره، (موضع القلادة من الصدر) د سينې هغه ځائې ته وائى چرته چه هار (اميل) وى. دې ته منحر وائى [4] ددې تعليق مطلب دا دې چې ذبحې والا ځناوردې حلق سره پرېکړې او نحر والا ځناور (اوښ وغيره) منحر لره يعنى په سينه کښې برچه اووېشتې شي او ذبح دې کړې. ذبح اختيارى کښې حلق او لبه نه علاوه نورې حصې که پرېکړې نو ځناور به حلال نه شي. د حلق په اعلى، اوسط او اسفل په هره حصه باندې چاړه اېښودلې شي او ذبح کولې شي. علامه عينى رحمه الله فرمائى چې (الذكاة فى الحلق واللبة) کښې (فى) د (بين) په معنى کښې ده يعنى د حلق او سينې په مينځ کښې ځناور په ذبح کولې شي.[5]

سعيد بن منصور او امام بيهقى دا تعليق موصولا نقل کړې دې.[6]

حضرت حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چې حضرت امام بخارى رحمه الله دا تعليق ذکر کړې دې او شائد چې ددې حديث د ضعف طرفته ئې اشاره کړې ده چې په دې کښې يو صحابى د حضور نبى کريم صلی الله علیه وسلم نه تپوس کوى چې (يارسول الله صلى الله عليه وسلم اماتكون الذكاة الامن

---

[1] عمدة القارى :ج۲۱ص۱۲۲، هو الذى يكون فى فقار الصلب شبيه بالمخ باالقفايقال له ايضاخيط الرقبة :فتح البارى :ج۹ص۷۹۹)

[2] الهدايه مع فتح القدير كتاب الذبائح :ج۸ص٤١٥)

[3] فتح البارى ج۹ص۷۹۹)

[4] فتح البارى ج۹ص۸۰۰)

[5] عمدة القارى ج۲۱ص۱۲۳)

[6] فتح البارى ج۹ص۸۰۰)

اللبة والحلق قال: فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم لوطعنت فى فخذها لاجزاعنك[1] يعنى په پتون كښې نيزې وهلوسره به ذبح درست وى. ليكن چې كوموخلقوداحديث قوى ګڼړلې دې، هغوى داحديث په ذبح اضطراى باندې محمول كړې دې.[2]

**قوله**: وَقَالَ ابْنُ عُمَرَوَابْنُ عَبَّاسٍ وَأَنَسٌ إِذَاقَطَعَ الرَّأْسَ فَلاَبَأْسَ: يعنى ذبح كولو كښې كه سرپريكړې شى نوهيڅ حرج نشته دې،دحضرت ابن عمر رضی الله عنه اثرلره ابوموسى رحمه الله،دحضرت ابن عباس رضی الله عنه اثرلره ابى شيبه اودحضرت انس رضی الله عنه اثرلره هم ابن ابى شيبه موصولانقل كړې دې[3]

ذبح كولو كښې سرپريكول مكروه دى. بياهم ذبيحه به جائزوى[4]

**قوله**: نَحَرْنَا عَلَى عَهْدِ النَّبِي صلى الله عليه وسلم - فَرَسًا فَأَكَلْنَاهُ: حضرت امام بخارى رحمه الله داحديث په ړومبى ځل دالته ذكركړې دې[5]

حضرت اسماء بنت ابى بكر رضی الله عنهما فرمائى چې مونږدعهدنبوى صلى الله عليه وسلم كښې آس ذبح كړو او اومو خوړلو ړومبې روايت كښې د(نحر) لفظ دې اودويم روايت كښې دذبحنالفظ دې آس نحر كولې هم شى اوذبح هم ليكن ذبح افضل ده نحراوذبح ديوبل په معنى كښې استعماليږى هشام نه روايت كولووالاچرته دنحراوچرته د(ذبحنا) لفظ استعمال كړې دې[6]

امام نووى رحمه الله فرمائى چې دادواړه بيل بيل واقعات دى يو كښې آس ذبح شوې وو اوبل كښې نحر شوې وو.[7]

**قوله**: اتَابَعَهُ وَكِيعٌ وَابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ هِشَامٍ فِي النَّحْرِ: يعنى وكيع اوسفيان ابن عينه دهشام دشاګردجريرمتابعت (نحر) كښې كړې دې.هغوى هم خپل روايت كښې دنحرلفظ استعمال كړې دې،دامتابعت امام احمدموصولا نقل كړې دې.[8]

---

[1] سنن ابى داود كتاب الاضاحى باب ماجاء فى ذبيحه المتردية (رقم الحديث: ۲۸۵۲) ج۳ص۱۰۳)

[2] فتح البارى :ج۹ص۸۰۰)

[3] فتح البارى :ج۹ص۸۰۰)، عمدة القارى :ج۲۱ص ۱۲۳)

[4] اوګورئى هدايه مع فتح القدير كتاب الذبائح :ج۸ص۴۱۵، عمدة القارى ج۲۱ص۱۲۲)

[5] (۵۱۹۳) الحديث اخرجه مسلم فى الذبائح باب فى اكل لحوم الخيل (رقم الحديث ۱۹۴۲)ج۳ص ۱۵۴. واخرجه ابن ماجه فى الذبائح باب لحوم الخيل (رقم الحديث :۳۱۹۰) : ج۲ص ۱۰۶۴، واخرجه النسائى فى الاطعمة باب نسخ تحريم لحوم الخيل (رقم الحديث ۶۶۴٤): ج٤ص۱۵۲) فتح البارى ج۹ص۸۰۱و عمدة القارى ج۲۱ص ۱۲۳)

[6] فتح البارى ج۹ص۸۰۱و عمدة القارى ج۲۱ص ۱۲۳)

[7] عمدة القارى ج۲۱ص ۱۲۳)

[8] (۵۱۹٤) عمدة القارى ج۲۱ص ۱۲۳)

## باب مَا يُكْرَهُ مِنَ الْمُثْلَةِ وَالْمَصْبُورَةِ وَالْمُجَثَّمَةِ

[۵۱۹۴] [1] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ هِشَامِ بْنِ زَيْدٍ قَالَ دَخَلْتُ مَعَ أَنَسٍ عَلَى الْحَكَمِ بْنِ أَيُّوبَ، فَرَأَى غِلْمَانًا - أَوْ فِتْيَانًا - نَصَبُوا دَجَاجَةً يَرْمُونَهَا. فَقَالَ أَنَسٌ نَهَى النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - أَنْ تُصْبَرَ الْبَهَائِمُ.

[۵۱۹۵] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يَعْقُوبَ أَخْبَرَنَا إِسْحَاقُ بْنُ سَعِيدِ بْنِ عَمْرٍو عَنْ أَبِيهِ أَنَّهُ سَمِعَهُ يُحَدِّثُ عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رضى الله عنهما - أَنَّهُ دَخَلَ عَلَى يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ وَغُلاَمٌ مِنْ بَنِي يَحْيَى رَابِطٌ دَجَاجَةً يَرْمِيهَا، فَمَشَى إِلَيْهَا ابْنُ عُمَرَ حَتَّى حَلَّهَا، ثُمَّ أَقْبَلَ بِهَا وَبِالْغُلاَمِ مَعَهُ فَقَالَ ازْجُرُوا غُلاَمَكُمْ عَنْ أَنْ يَصْبِرَ هَذَا الطَّيْرَ لِلْقَتْلِ، فَإِنِّي سَمِعْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - نَهَى أَنْ تُصْبَرَ بَهِيمَةٌ أَوْ غَيْرُهَا لِلْقَتْلِ.

[۵۱۹۶] حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ أَبِي بِشْرٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ كُنْتُ عِنْدَ ابْنِ عُمَرَ فَمَرُّوا بِفِتْيَةٍ أَوْ بِنَفَرٍ نَصَبُوا دَجَاجَةً يَرْمُونَهَا، فَلَمَّا رَأَوُا ابْنَ عُمَرَ تَفَرَّقُوا عَنْهَا، وَقَالَ ابْنُ عُمَرَ مَنْ فَعَلَ هَذَا إِنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - لَعَنَ مَنْ فَعَلَ هَذَا.

تَابَعَهُ سُلَيْمَانُ عَنْ شُعْبَةَ حَدَّثَنَا الْمِنْهَالُ عَنْ سَعِيدٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ لَعَنَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - مَنْ مَثَّلَ بِالْحَيَوَانِ. وَقَالَ عَدِيٌّ عَنْ سَعِيدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم -

[۵۱۹۷] حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ أَخْبَرَنِي عَدِيُّ بْنُ ثَابِتٍ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ يَزِيدَ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - أَنَّهُ نَهَى عَنِ النُّهْبَةِ وَالْمُثْلَةِ. [ر: ۲۳۴۲]

**قوله** (مصبورة): هغه ځناورته وائی چې هغه اوتړلې شي اوغشي ئې پاګولئ سره اوويشتلې شي.

**قوله** (المجثمة): هم دمصبوره په معنی کښې ده داشان که یو ځناور روژلې شوې وی نو دهغې خوړل جائزنه دی [2]

روايت باب، حضرت امام بخاری رحمه الله دالته په رومبی ځل ذکرکړې دي رومبې روايت کښې هشام بن زيد وائی چې څه دحضرت انس رضي الله عنه سره حکم بن ايوب لره ورغلم. حضرت انس رضي الله عنه ځوهلکان ياځوان اوکتل چې يوچرګه ئې تړلې ده اوهغه په غشی باندې اولی، حضرت انس رضي الله عنه

[1] الحديث اخرجه مسلم فی كتاب الصيدوالذبائح باب النهى عن صيد البهائم (رقم الحديث ۱۶۵۶)واخرجه ابوداود فی كتاب الضحاياباب الرفق بالذبيحة (رقم الخديث: ۲۸۱۶) واخرجه ابن ماجه فی كتاب الاضحی باب النهى عن صبر البهائم وعن المثلة (رقم الحديث :۳۲۲۵) واخرجه النسائى فى الضحايا، باب النهى عن المجثمة رقم الخديث: ٤٤٣٦)

[2] عمدة القاری ج۲۱ص ۱۲٤)

اوفرمائيل چې رسول الله ﷺ ځناورتړل اوداپه غشوويشتلونه منع فرمائيلې دہ۔
دويم روايت كښې دى چې حضرت ابن عمر رضي الله عنه يحيى بن سعيد لره ورغلو.نوديحيى ځامنوكښې ئې يواوكتلوچې چرګه ئى تړلې ده اوهغه په كانړې اولى.حضرت ابن عمر رضي الله عنه چرګې طرفته ورغللواوهغه ئى پرانيسته،بيائى دې چرګې طرفته اشاره اوكړه اوهغه هلك ته ئې اووئيل چې خپلوبچولره دمارغانودپاره تړل اووهلونه منع كړه.ځكه چې حضور نبى كريم ﷺ نه ما آوريدلى دى چې حضورنبى كريم ﷺ چوپايه وغيره تړل اوداً وهلونه منع فرمائيلې دہ۔
دباب په دويم روايت كښې حديث اصحاب صحاح نه صرف حضرت بخارى رحمه الله نقل كړې دې.نو علامه عينى رحمه الله فرمائى چې «والحديث من افراده» (١)

**قوله**: ثم اقبل بها وبالغلام معه فقال: يعنى بيائ چرګه واخستله اوخپل ځان سره ولاړهلک ته ئې اووئيل «هذا لطير» علامه كرمانى رحمه الله فرمائې چې د«طير» اطلاق په مفردباندې ډيركم كيږى،مفرد دپاره «طائر» مستعمل دې،«طير» عام طورجمع دپاره رازى.دلته ددې اطلاق په مفردباندې كړې شوې دې.(٢)
حضرت حافظ ابن حجر رحمه الله داردكړې دې،اوفرمائى چې دلته «طير» نه جنس «طير» مراد اخستې شوې دې ددې وجې دطائرپه ځائې دطيرلفظ استعماليږى (٣)
علامه عينى رحمه الله داردكړې دې،اوفرمائى چې اشاره يوطرفته وه چې تعين دپاره كيږى،داسې صورت كښې جنس څنګه مراداخستې شى (٤)

**قوله**: تابعه سليمان عن شعبه: يعنى دابوبشرچې دده نوم جعفربن ابن ابى وحشيه دې متابعت سلميان بن حرب دشعبه نه روايت نقل كړې دې،دامتابعت بيهقى موصولانقل كړې دې (٥)

**قوله**: وقال عدى عن سعيد عن ابن عباس عن النبى ﷺ: ابوبشر اومنهال داروايت دحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه نقل كړې دې اوعدى بن ثابت دسعيدبن جبير رضي الله عنه په طريق داروايت دحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه نه نقل كړې دې
داتعليق امام مسلم موصولانقل كړې دې ددې الفاظ دادى چې «لا تتخذوا شيئا فيه الروح غرضا» يعنى يوذى روح ځيزلره نشانه اوهدف مه جوړوئى (٦)

---

(١) عمدة القارى ج٢١ص١٢٥)
(٢) شرح بخارى للكرمانى :ج ٢٠ص ١٠٤)
(٣) فتح البارى :ج٩ص٨٠٣)
(٤) فتح البارى:ج٩ص٨٠٣)
(٥) عمدة القارى ج٢١ص١٢٥) فتح البارى ج٩ص٨٠٣)
(٦) عمدة القارى ج٢١ص ١٢٥)

دباب آخری روایت کنبې دنهبة لفظ راغلې دې. علامه عینی رحمه الله فرمائی چې هو اخذ مال الغير قهرا وجهرا (۱)

## باب لحم الدَّجَاجِ

[۵۱۹۸] حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا وَكِيعٌ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ أَبِي قِلَابَةَ عَنْ زَهْدَمٍ الْجَرْمِيِّ عَنْ أَبِي مُوسَى - يَعْنِي الأَشْعَرِيَّ - رضى الله عنه - قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - يَأْكُلُ دَجَاجًا.

[۵۱۹۹] حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ بْنُ أَبِي تَمِيمَةَ عَنِ الْقَاسِمِ عَنْ زَهْدَمٍ قَالَ كُنَّا عِنْدَ أَبِي مُوسَى الأَشْعَرِيِّ، وَكَانَ بَيْنَنَا وَبَيْنَ هَذَا الْحَيِّ مِنْ جَرْمٍ إِخَاءٌ، فَأُتِيَ بِطَعَامٍ فِيهِ لَحْمُ دَجَاجٍ، وَفِي الْقَوْمِ رَجُلٌ جَالِسٌ أَحْمَرُ فَلَمْ يَدْنُ مِنْ طَعَامِهِ قَالَ ادْنُ فَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَأْكُلُ مِنْهُ. قَالَ إِنِّي رَأَيْتُهُ أَكَلَ شَيْئًا فَقَذِرْتُهُ، فَحَلَفْتُ أَنْ لاَ آكُلَهُ. فَقَالَ ادْنُ أُخْبِرْكَ - أَوْ أُحَدِّثْكَ - إِنِّي أَتَيْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - فِي نَفَرٍ مِنَ الأَشْعَرِيِّينَ، فَوَافَقْتُهُ وَهْوَ غَضْبَانُ، وَهْوَ يَقْسِمُ نَعَمًا مِنْ نَعَمِ الصَّدَقَةِ فَاسْتَحْمَلْنَاهُ فَحَلَفَ أَنْ لاَ يَحْمِلَنَا، قَالَ «مَا عِنْدِي مَا أَحْمِلُكُمْ عَلَيْهِ». ثُمَّ أُتِيَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - بِنَهْبٍ مِنْ إِبِلٍ فَقَالَ «أَيْنَ الأَشْعَرِيُّونَ أَيْنَ الأَشْعَرِيُّونَ». قَالَ فَأَعْطَانَا خَمْسَ ذَوْدٍ غُرِّ الذُّرَى، فَلَبِثْنَا غَيْرَ بَعِيدٍ، فَقُلْتُ لأَصْحَابِي نَسِيَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَمِينَهُ، فَوَاللَّهِ لَئِنْ تَغَفَّلْنَا رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَمِينَهُ لاَ نُفْلِحُ أَبَدًا. فَرَجَعْنَا إِلَى النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فَقُلْنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّا اسْتَحْمَلْنَاكَ، فَحَلَفْتَ أَنْ لاَ تَحْمِلَنَا فَظَنَنَّا أَنَّكَ نَسِيتَ يَمِينَكَ. فَقَالَ «إِنَّ اللَّهَ هُوَ حَمَلَكُمْ، إِنِّي وَاللَّهِ إِنْ شَاءَ اللَّهُ لاَ أَحْلِفُ عَلَى يَمِينٍ فَأَرَى غَيْرَهَا خَيْرًا مِنْهَا إِلاَّ أَتَيْتُ الَّذِي هُوَ خَيْرٌ، وَتَحَلَّلْتُهَا». [ر: ۲۹۶۴]

دجاج اسم جنس دې دال باندې زير، زبر او پيش ټول اعراب درست دی مفردئې دجاجة ده (۲)

ابرهيم حربی رحمه الله په غريب الحديث کنبې ددې تشريح کړې ده او وئيلی ئی دی چې (دجاج) د دال په کسره سره دچرګ دپاره استعماليږی چې ددې واحد ديك دې او د دال په فتحه سره دچرګې دپاره استعماليږی چې ددې مفرد (دجاجة) دې (۳)

دا (دج، د يدج) نه مشتق دې چې ددې معنی تيزی کول دی چرګه هم چونکه مخکښې روستو

---

۱) عمدة القاری ج۲۱ص ۱۲۵)

۲) فتح الباری ج۹ص۸۰۵، عمدة القاری:ج۲۱ص۱۲۶)

۳) فتح الباری ج۹ص۸۰۵، عمدة القاری:ج۲۱ص۱۲۶)

تيزئې سره زى رازى، ددې وجې دې ته «دجاجة»(۱) وائى چرګه بالاتفاق حلاله ده.
روايت باب کښې زهدم بن مضرب فرمائى چې مونږ حضرت ابوموسى اشعرى رضي الله عنه سره ناست وو زمونږ په مينځ کښې اوجرم قبيلې په مينځ کښې رورولى وه خوراک راوړې شو چې په هغې کښې دچرګې غوښه وه په خلقو کښې يو دسور رنګ سړې وو هغه خوراک ته نزدې رانغلو ابوموسى اشعرى رضي الله عنه هغه ته اووئيل چې نزدې راشه ځکه ماحضورنبى کريم ﷺ دچرګې په غوښه خوړولوليدلې ووهغه سړى اووئيل چې ماچرګه دداسې څيزپه خوراک ليدلې ده چې دهغې نه زمانفرت دې نوماقسم اخوړوچې زۀ به چرګه نه خورم ابوموسى اشعرى رضي الله عنه اوفرمائيل چې نزدې راشه تاته دې اووايم چې زۀ څواشعريانو سره دحضورنبى کريم ﷺ په خدمت کښې حاضرشوم په هغه وخت کښې چې حضورنبى کريم ﷺ دغصې په حالت کښې وو اودصدقې څناورئې تقسيمول مونږ دحضورنبى کريم ﷺ نه دسورلئ دپاره څناوراوغوښتل نو حضونبى کريم ﷺ اوفرمائيل چې مونږ ته به هغه سورلى نه راکوى اوفرمائيل ئې چې ماسره تاسولره دسودلئ دڅناوردرکولودپاره هيڅ نشته دې دې نه پس حضورنبى کريم ﷺ اوفرمائيل چې اشعرى رضي الله عنه چرته دې ؟ اشعرى رضي الله عنه چرته دې ؟ بيا ئې مونږ ته اوچتو کوبونو والا پنځه سپين اوښان راکړل مونږ څه ساعت ايسار وونوما خپلو ملګروته اووئيل چې شائد رسول الله ﷺ خپل قسم هيرکړې دې، که مونږ حضورنبى کريم ﷺ ددوى ﷺ دقسم نه غافل اوساتلو نوپه الله قسم مونږ به هم فلاح اونه مومو. نومونږ دحضور نبى کريم ﷺ خدمت حاضر شواوموواوئيل چې يارسول الله ﷺ مونږ ستاسونه سورلې اوغوښتله نوتاسوقسم اوخوړو اوفرمائيلې مووچې تاسوبه مونږ ته سورلى نه راکوئى، اوبياموم مونږ ته راکړه بس مونږ ته خيال راغلوچې شائدتاسوخپل قسم هيرکړې دې حضورکريم ﷺ اوفرمائيل چې تاسوته الله سورلى درکړې ده، اوچې کله هم زۀ بخدا وايم په يوخبره باندې قسم خورم اوبيابښيګړه ددې نه په غيرکښې اووينم نوهغه کارکوم چې په هغې کښې ښيګړه وى اوکفاره ورکوم اوقسم ماتوم.

**قوله**: (زهدم): زهدم دزاپه فتحه سره دبصرې ثقه راوى دې ددوى دپلارنوم مضرب بضم الميم وبفتح الضادوتشديدالراء المكسوره دې دادقبيله جرم دې، صحيح بخارى کښې ددوى دوه حديثونه دى يوحديث باب اودويم كتاب المناقب کښې تيرشويدې (۲)

**قوله**: كنا عندابى موسى الاشعري وكان بيننا وبين هذاالحى من جرم اخاء:
په دې عبارت کښې شائدراوى نه غلطى شوې ده ځکه چې زهدم جرمى دې هغه پخپله دقبيله جرم نه دې نوبياداوئيل چې زمونږ دقبيله جرم اوابوموسى اشعرى رضي الله عنه په مينځ کښې رورولى وه نودکتاب التوحيدپه آخرکښې حضرت امام بخارى رحمه الله داروايت نقل کړې دې په هغې کښې داالفاظ دى چې «وكان بين هذاالحى من جرم وبين الاشعريين ود، واخاء» حضرت حافظ

۱) فتح البارى ج۹ص۸۰۵، عمدة القارى:ج۲۱ص۱۲۶)
۲) فتح البارى ج۹ص۸۰۶)

ابن حجر رحمه الله فرمائی چې (وهذه الروایة هی المعتمدة)[1]

**قوله**: وفي القوم رجل جالس احمر: حضرت حافظ ابن حجر رحمه الله په ډیررِوایتونه کښې نقل کړی دی چې ددې رجل نه مراد پخپله راوی دې حدیث زهدم دې، البته هغوی خپل ځان مبهم ساتلې دې ( )

**قوله**: انی رایته یاکل شیئاً فقذرته: چرګه وغیره که ګندا وخوری نو ددې په وجه ددې حلت باندې هیڅ اثرنه پریوزی خوکه دومره ډیره ګندګی ئې خوړلې وی چې ددې په وجه ددې په غوښه کښې بدبوپیداشی نو بیاددې خوراک مکروه دې، بعضوورته مکروه تحریمی وئیلی دی او بعضوورته مکروه تنزیهی ([3])

**قوله**: فاعطانا خمس دودغرالذری: (دود) د ذال او واو سکون سره، دریو نه ترلسو پورې داوښانوډلې ته ذود وائی (خمس ذود) پنځه اوښان، دامرکب اضافی دې ابو البقاء فرمائي چې دمرکب اضافی په ځائې (خمسا ذود) پکاردې په دې صورت کښې به (ذود خمسا) نه بدل وی (غر) د (اغر) جمع ده په معنی دسپین (الذری) (بضم الذال) داد (ذروة) جمع ده (ذروة کل شیء اعلاه) دهرڅیزاوچتې حصې ته (ذروة) وائی دلته ددې نه کوبونه مراد دی یعنی پنځه کوبدار اوښان حضورنبی کریم صلی الله علیه وسلم مونږ ته راکړل ([4])

ددې حدیث متعلق باقی بحثونه به انشاء الله په کتاب الایمان والنذرکښې راشی،

## ۲۷-بَاب لُحُومِ الْخَيْلِ

[۵۲۰۰] حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ فَاطِمَةَ عَنْ أَسْمَاءَ قَالَتْ نَحَرْنَا فَرَسًا عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَأَكَلْنَاهُ. [ر: ۵۱۹۱]

[۵۲۰۱] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَلِيٍّ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ -رضي الله عنهم- قَالَ نَهَى النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- يَوْمَ خَيْبَرَ عَنْ لُحُومِ الْحُمُرِ، وَرَخَّصَ فِي لُحُومِ الْخَيْلِ. [ر: ۳۹۸۲]

**داس د غوښې خوړلو حکم**: دحضرت امام شافعي رحمه الله حضرت امام مالک رحمه الله او په حنفیه کښې دصاحبینو او دجمهور علماء کرامو په نیزد آس غوښه خوړل بلاکراهت جائزده ([5])

---

[1] فتح الباری ج۹ص۷۰۶)
[2] فتح الباری ج۹ص۷۰۶)
[3] ردالمختار مع درمختارج۶ص۳۴۰)
[4] مذکوره تشریح دپاره اوګورئ عمدة القاری ج۲۱ص۱۲۷)، فتح الباری ج۹ص۸۰۸)
[5] اوګورئ شرح المهذب :ج۹ص۳و کتاب الاثار (۱۸۰)

دحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله اوامام مالک رحمه الله په نيزمکروه ده (۱)امام اعظم اوامام مالک رحمه الله نه دمکروه تحريمي او مکروه تنزيهي دواړه روايتونه منقول دی.(۲)

جمهوردحديث باب نه استدلال کوی.

داشان دحضرت جابر رضي الله عنه دروايت نه هم استدلال کوی.(ان رسول الله ﷺ نهی يوم الخيبرعن الحوم الحمرالاهلية واذن فی لحوم الخيل)(۳)

حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دامام ابوداود دروايت نه استدلال کوی. (نهی رسول الله ﷺ عن اکل لحوم الخيل والبغال والحمير)(۴)

## ۲۸-بَاب لُحُومِ الْحُمُرِ الإِنْسِيَّةِ

فِيهِ عَنْ سَلَمَةَ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم

[۵۲۰۲] حَدَّثَنَا صَدَقَةُ أَخْبَرَنَا عَبْدَةُ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ سَالِمٍ وَنَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رضى الله عنهما - نَهَى النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - عَنْ لُحُومِ الْحُمُرِ الأَهْلِيَّةِ يَوْمَ خَيْبَرَ.

حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ حَدَّثَنِي نَافِعٌ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - عَنْ لُحُومِ الْحُمُرِ الأَهْلِيَّةِ. تَابَعَهُ ابْنُ الْمُبَارَكِ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ نَافِعٍ. وَقَالَ أَبُو أُسَامَةَ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ سَالِمٍ.

[۵۲۰۳] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ وَالْحَسَنِ ابْنَى مُحَمَّدِ بْنِ عَلِيٍّ عَنْ أَبِيهِمَا عَنْ عَلِيٍّ - رضى الله عنهم - قَالَ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - عَنِ الْمُتْعَةِ عَامَ خَيْبَرَ وَلُحُومِ حُمُرِ الإِنْسِيَّةِ. [ر: ۳۹۷۹]

[۵۲۰۴] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ عَمْرٍو عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَلِيٍّ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - يَوْمَ خَيْبَرَ عَنْ لُحُومِ الْحُمُرِ، وَرَخَّصَ فِي لُحُومِ الْخَيْلِ. [ر: ۳۹۸۲]

[۵۲۰۵] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ شُعْبَةَ قَالَ حَدَّثَنِي عَدِيٌّ عَنِ الْبَرَاءِ وَابْنِ أَبِي أَوْفَى رضى الله عنهم قَالاَ نَهَى النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - عَنْ لُحُومِ الْحُمُرِ. [ر: ۲۹۸۶]

---

(۱) اوجزالمسالک کتاب الصيد،باب مايکره من اکل الدواب:ج۹ص۱۸۰)

(۲) اوجزالمسالک کتاب الصيد،باب مايکروه من اکل الدواب :ج۹ص ۱۸۰. وتکملة فتح الملهم :ج۳ص۵۶۵. وقال ابوحنيفه اکره لحم الخيل فحمله ابوبکرالرازی علی التنزيه وصح عنه اصحاب المحيط والهداية والذخيرة التحريم وهوقول اکثرهم،وعن بعضهم يائم اکله ولايسمی حراما (فتح البارى: ج۹ص۸۱۱)

(۳) صحيح مسلم کتاب الذبائح باب اکل لحوم الخيل (رقم الحديث :۱۹۱۴،۱۹۲۴)

(۴) سنن ابوداود کتاب الاطعمة باب فی اکل لحوم الخيل (رقم الحديث ۳۷۹۰:ج۳ص۳۵۲)

[٥٢٠٦] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ أَخْبَرَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا أَبِي عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ أَنَّ أَبَا إِدْرِيسَ أَخْبَرَهُ أَنَّ أَبَا ثَعْلَبَةَ قَالَ حَرَّمَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - لُحُومَ الْحُمُرِ الأَهْلِيَّةِ. تَابَعَهُ الزُّبَيْدِيُّ وَعُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ.

[٥٢٠٧] وَقَالَ مَالِكٌ وَمَعْمَرٌ وَالْمَاجِشُونُ وَيُونُسُ وَابْنُ إِسْحَاقَ عَنِ الزُّهْرِيِّ نَهَى النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - عَنْ كُلِّ ذِي نَابٍ مِنَ السِّبَاعِ. [٥٢١٠، ٥٤٤٤]

[٥٢٠٨] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ الثَّقَفِيُّ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ - رضى الله عنه - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - جَاءَهُ جَاءٍ فَقَالَ أُكِلَتِ الْحُمُرُ، ثُمَّ جَاءَهُ جَاءٍ فَقَالَ أُكِلَتِ الْحُمُرُ. ثُمَّ جَاءَهُ جَاءٍ فَقَالَ أُفْنِيَتِ الْحُمُرُ. فَأَمَرَ مُنَادِيًا فَنَادَى فِي النَّاسِ إِنَّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ يَنْهَيَانِكُمْ عَنْ لُحُومِ الْحُمُرِ الأَهْلِيَّةِ، فَإِنَّهَا رِجْسٌ. فَأُكْفِئَتِ الْقُدُورُ وَإِنَّهَا لَتَفُورُ بِاللَّحْمِ. [ر: ٣٩٦٣]

[٥٢٠٩] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ عَمْرٌو قُلْتُ لِجَابِرِ بْنِ زَيْدٍ يَزْعُمُونَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - نَهَى عَنْ حُمُرِ الأَهْلِيَّةِ فَقَالَ قَدْ كَانَ يَقُولُ ذَاكَ الْحَكَمُ بْنُ عَمْرٍو الْغِفَارِيُّ عِنْدَنَا بِالْبَصْرَةِ، وَلَكِنْ أَبَى ذَاكَ الْبَحْرُ ابْنُ عَبَّاسٍ وَقَرَأَ (قُلْ لاَ أَجِدُ فِيمَا أُوحِيَ إِلَىَّ مُحَرَّمًا).

**د خردغو ښې حکم:** (حمرو وحشية) بالاتفاق حلال دى، (حمر انسية) يعنى دخرغوښه دجمهورو علماء په نيز حرامه ده.[1]

دحضرت امام مالک رحمه الله نه درې روايتونه منقول دى، يوروايت دجمهورومطابق دويم مطلقا دجواز اودريم دكراهت.[2] حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه نه هم جواز منقول دې، لكه څنگه چې دلته دباب په آخرى روايت كښې دى، حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه دويم روايت كښې توقف منقول دې. نوشعبى ددوى نه نقل كړى دى چې هغوى فرمائى چې: لا ادرى انهى عنه رسول الله ﷺ من اجل انه كان حمولة الناس فكره ان تذهب حمولتهم او حرمها البتة يوم خيبر.[3]

يعنى ماته معلومه نه دى چې دخيبرپه موقع حضور نبى كريم ﷺ دخرونو دغوښونه كوم ممانعت كړې دې، داپه دې وجه ووچې حضور ﷺ سره انديښنه وه چې هسې نه سورلئ ختمې شى څكه خلقوپه خرونوباندې سورلى كوله ياقطعى طورحضورنبى كريم ﷺ داحرام كړل دجمهورعلماء كرامو په نيزداحاديث باب په وجه دخرونوغوښه حرام ده. بعضواحاديثو كښې د(لحوم حمر) دحرمت وجه دابيان شوې ده چې هغه گندگى خوررى. داهم يووجه راغلې ده چې

---

[1] فتح البارى: ج٩ص٨١٨، والابواب والتراجم ج٢ص٩٣)

[2] فتح البارى: ج٩ص٨١٨)

[3] فتح البارى: ج٩ص٨١٨)

داشان به دسورلودپاره څناورختم شي.ليكن دلته باب كښې دحضرت انس ﷺ روايت كښې اصل وجه ذكرشوې ده چې (فانها رجس)

چې كوم حضرات دې لره جائزګڼړي.هغه دابوداود يوروايت نه استدلال كوي.غالب بن ابجر فرمائى چې مونږ په قحط كښې مبتلاء وو.په كوركښې صرف خرپاتې شواوبل څه څيزدخوراك دپاره نه وو.هغوى راغل اوحضرت نبى كريم ﷺ ته ئې شكايت اوكړوچې حضورنبى كريم خودخرونوغوښه حرام كړې ده اوځما په كور كښې صرف دخرونونه سوا بل څه نشته دې،نوحضور نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چې (اطعم اهلك من سمين حمرك فانما حرمتها من اجل جوال القرية يعنى الجلالة) ([1])يعنى خپل كوروالوته دخرغوښه وركولې شې مادګندګئ په وجه دحرام ګنړلې وه.

ليكن حضرت حافظ ابن حجر ﷫ او امام نووى ﷫ فرمائى چې ددې حديث سند ضعيف دې اوددې متن احاديث صحيحه نه مخالف كيدوپه وجه شاذدې ([2])

**قوله**:فيه عن سلمة عن النبى ﷺ: دسلمة بن الاكوع روايت حضرت امام بخارى ﷫ په باب المغازى كښې موصولا نقل كړې دې ([3])

**قوله**:وقال مالك ومعمر والماجشون ويونس وابن اسحاق عن الزهرى......: دامام مالك تعليق په راتلونكى باب كښې موصولا رازى.دمعمراويونس حسن بن سفيان موصولا كړې دې د(ماجشون)(يوسف بن يعقوب)تعليق لره امام مسلم موصولا نقل كړې دې.اودابن اسحاق روايت لره اسحاق بن راهويه موصولا نقل كړې دې.([4])

**قوله**:يقول ذاك الحكم بن عمرو الغفارى عندنا بالبصرة):حميدى په خپل سند كښې دومره اضافه كړې ده چې (قد كان يقول ذالك الحكم بن عمرو عن رسول الله) يعنى دلته دبخارى په روايت كښې خوصرف دومره دى چې (نهى عن لحوم الحمر الانسية) خبره زمونږ په نيز بصره كښې حكم بن عمرو به وئيل ليكن دحميدى روايت كښې دى چې حكم دا خبره دحضور نبى كريم ﷺ نه نقل كوى اومرفوعا ئې بيانوله

**قوله**: ولكن ابن ذالك البحر ابن عباس وقرا(قل لا اجد فيما اوحى الى محرما: (بحر) دحضرت ابن عباس ﷺ صفت دې ځكه چې هغه دعلم سمندر وو صفت ئې

---

[1]) سنن ابى داود كتاب الاطعمة (رقم الحديث :۳۸۰۹)

[2]) فتح البارى : ج۹ص۸۱۸ وشرح مسلم للنوى، كتاب الذبائح،باب تحريم اكل لحم الحمر الانيسه :ج۲ ص۱۴۹)

[3]) كشف البارى كتاب المغازى: ۴۱۴_

[4]) فتح البارى ج۹ص۸۱۷،۸۱۶)

مبالغة موصوف باندي مقدم كړې دي، دابن مردويه روايت كښې تفصيل دې، په هغې كښې دې چې: كان اهل الجاهلية يا كالون اشياء ويتركون اشياء تقذرا فبعث الله نبيه وانزل كتابه واحل حلاله وحرم حرامه فما احل فهو حلال وما حرم فهو حرام وما سكت عنه فهو عفو وتلا هذه (قل لا اجد فيما اوحى الى) حاكم ابن مردود يه دد يې روايت تصحيح كړې ده (١)

## ٢٩ - باب أَكْلِ كُلِّ ذِي نَابٍ مِنَ السِّبَاعِ

[٥٢١٠] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ أَبِي إِدْرِيسَ الْخَوْلَانِيِّ عَنْ أَبِي ثَعْلَبَةَ - رضى الله عنه - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - نَهَى عَنْ أَكْلِ كُلِّ ذِي نَابٍ مِنَ السِّبَاعِ.

تَابَعَهُ يُونُسُ وَمَعْمَرٌ وَابْنُ عُيَيْنَةَ وَالْمَاجِشُونُ عَنِ الزُّهْرِيِّ. [ر: ٥٢٠٦]

**قوله:** (ناب): مخامخ ثلورو غابنونوته وائى. دا دواړه طرفونه ته وى اردو كښې دې ته كچلى وائى (٢) درندې دناب په ذريعه خيرول كوى علامه عينى رحمه الله فرمائى چې (والمراد بالناب مايعدو به على الحيوان ويتقوى به) (٣)

**ددرندو د غوښې حكم:** روايت كښې دى چې حضور نبى كريم صلى الله عليه وسلم دهرهغه ځناور دخوراك نه منع كړې ده چې كوم په ناب باندې خوراک كوى.

دجمهورعلماء په نيزدانهى تحريمه باندې محمول دى، نودناب والا درندو(زمرى، پړانګ وغيره) غوښه حرامه ده. داشان په مخوكې سره ښكار كولووالا ځناور(شاهين، ګرګس وغيره) هم حرام دى ځكه چې دمسلم په روايت كښې دى چې (نهى عن كل ذى ناب من السباع وعن كل ذى مخلب من الطير) (٤)

امام مالك رحمه الله مشهور روايت كښې ناب والا درندې مكروه دى حرام نه دى هغوى د قرآن پاک دآيت دعموم نه استدلال كوى (قل لا اجد فى ما اوحى الى محرما على طاعم يطعمه الا ان يكون ميتة اودما مسفوحا اولحم خنزير) (٥) هغه فرمائى چې په دې آيت كښې چې كوم ځناورحرام كړې شوى دى. په دې كښې ناب والا درندې شاملې نه دى (٦)

---

(١) المستدرك للامام الحاكم كتاب الاطعمة: ج ٤ ص ١١٥)

(٢) القاموس الوحيد ١٧٣١)

(٣) عمدة القارى ج: ٢١ص ١٣٢) _

(٤) صحيح مسلم (مع تكملة) كتاب الصيد: ج٣ص ٥٠٠)

(٥) سورة الانعام: ١٤٥)

(٦) فتح البارى: ج٩ ص ٨٢٠ وروى عنه ان العادى منه حرام كالاسد والذئب والفهد وغيره العادى مكروه كالثعلب (حاشية ادلدسوقى فى شرح الكبير: ج٢ ص ١١٧)

جمهور فرمائی چې داآیت مکی دې اوحدیث باب هجرت نه پس دې. دآیت حکم دنزول دوخت سره متعلق دې چې دکوموڅناورحرمت آیت کښې نه دې بیان شوې.هغه حلال دی.بیا هم مستقبل کښې دتحریم نفی په دې کښې نشته دې[1]

حدیث باب کښې د ذوناب نه کوم درندګان مراد دی: ذوناب نه کوم درندګان مراد دی. حضرت حافظ ابن حجر رحمه الله لیکی چې:

(واختلف القائلون بالتحريم في المراد بماله ناب فقيل انه مايتقوى به ويصول على غيره ويصطاد ويعدو بطبعه غالبا كالاسد والفهد والصقر والعقاب واما مالا يعدو كالضبع والثعلب فلا والى هذا ذهب الشافعي والليث ومن تبعهما وقد ورد في حل الضبع احاديث لا باس بها)[2]

دحضرات حنفیه په نیز حدیث باب په خپل عموم باندې دې. لهذا هرذوناب درنده حرام ده. ضبع هم ذوناب دې.ددې وجې هغه هم حرام ده. آئمه ثلاثه ضبع مباح ګڼړی[3] هغه مستدرک حاکم کښې دحضرت جابر رضی الله عنه دروایت نه استدلال کوی چې حضور نبی کریم صلی الله علیه وسلم دضبع خوړلو اجازت ورکړې دې.

علامه عینی رحمه الله دحضرت جابر رضی الله عنه دحدیث جواب ورکوی اولیکی:

وحدث جابر ليس بمشهور وهو محلل والمحرم يقضى على المبيح احتياطا وقيل: حديث جابر منسوخ وقيل: حديث جابر انفرد به عبد الرحمان بن ابى عمار وليس مشهور بنقل العلم ولا هو حجة اذ انفرد فكيف اذا خالفه من هو اثبت منه)[4]

① یعنی دحضرت جابر رضی الله عنه والا حدیث محلل (یعنی حلالیدو والا) دې اوحدیث باب محرم (یعنی حرام ګرزولو والا) دې اومحرم د مبیح حکم ساقطوی.

② حدیث جابر رضی الله عنه منسوخ وی.

③ دحدیث جابر رضی الله عنه راوی عبدالرحمان مشهور اوقابل حجت نه دې، خاص کرکله چې هغه دخپل نه زیات دثقه روای مخالف کړې دې.

**قوله**: تابعه يونس ومعمروابن عينة والماجشون عن الزهري: یعنی د امام مالك رحمه الله متابعت دې حضراتو کړې دې، ددې نه په مخکې باب کې ددې متتابعاتو موصولاً نقل کونکو ذکر تیرشوې دې. سوا د سفیان ابن عیینه نه، ددوی متابعت امام بخاری رحمه الله په کتاب الطب کې موصولاً نقل کړې دې.[5]

---

[1]) فتح الباری :ج۹ ص ۸۲۰)

[2]) فتح الباری ج ۹ص ۱۲۱۱۲۰)

[3]) عمدة القاری ج۲۱ص۱۳۲)

[4]) عمدة القاری ج۲۱ص۱۳۲) _

[5]) عمدة القاری ج۲۱ص۱۳۲) _

# ۳۰ - باب جلود الميتة

[۵۲۱۱] حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا أَبِى عَنْ صَالِحٍ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ شِهَابٍ أَنَّ عُبَيْدَ اللَّهِ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ أَخْبَرَهُ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَبَّاسٍ - رضى الله عنهما - أَخْبَرَهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - مَرَّ بِشَاةٍ مَيِّتَةٍ فَقَالَ « هَلاَّ اسْتَمْتَعْتُمْ بِإِهَابِهَا ». قَالُوا إِنَّهَا مَيِّتَةٌ. قَالَ « إِنَّمَا حَرُمَ أَكْلُهَا »

[۵۲۱۲] حَدَّثَنَا خَطَّابُ بْنُ عُثْمَانَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حِمْيَرَ عَنْ ثَابِتِ بْنِ عَجْلاَنَ قَالَ سَمِعْتُ سَعِيدَ بْنَ جُبَيْرٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ - رضى الله عنهما - يَقُولُ مَرَّ النَّبِىُّ - صلى الله عليه وسلم - بِعَنْزٍ مَيِّتَةٍ فَقَالَ « مَا عَلَى أَهْلِهَا لَوِ انْتَفَعُوا بِإِهَابِهَا ». [ر: ۱۴۲۱]

يعنى دحضرت امام مالک رحمه الله متابعت دې حضراتو کړې دې.ددې نه مخکښې باب کښې دامتابعات موصولا نقل کونکو ذکرتيرشوې دې سوا دسفيان ابن عينيه نه، ددوى متابعت حضرت امام بخارى رحمه الله په كتاب الطب كښې موصولا نقل كړې دې.[1]

**دځناورو دڅرمنو نه دانتفاع حكم** : دمړ شوى ځناورو دڅرمنونه انتفاع جائزه ده كه نه، امام بخارى رحمه الله دا مسئله په دې باب كښې ذكر كړې ده ـ

① دجمهور علماؤ په نيز د دباغت نه پس دځناورو دڅرمن نه انتفاع جائزه ده،هغوى يوخو دحديث باب نه استدلال كوى، دويم دغه حضرات دعبدالله بن عباس رضى الله عنهما دروايت نه استدلال كوى. دكوم الفاظ چې دا دى،، ايما اهاب دبغ فقد طهر،،[2] يعنى چې كومې څرمنې ته هم دباغت وركړئ شى نو هغه پاكيږى ـ

البته حضرات حنفيه ددې نه دانسان اوخنزير څرمن مستثنى كړې ده.

خنزير خوددې وجې چې هغه نجس العين دې، لقوله تعالى: ﴿فَإِنَّهُ رِجْسٌ﴾ اودانسان څرمن ئې دده دشرف اواحترام په وجه مستثنى ګرزولې ده.امام محمد هاتهى لره هم دمستثنى كيدو وجه نجس واله ګرزولې دې[3]

حضرات شافعيه خنزير سره سپې هم مستثنى ګرزولې دې.ځكه چې سپې ددوى په نيزنجس العين دې.[4]

دحضرت امام مالک رحمه الله اوحضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله آخرى قول هم ددې مطابق دې.[5]

---

[1]) عمدة القارى ج۲۱ص۱۳۲) ـ

[2]) سنن الترمذى،كتاب اللباس، باب ماجاء فى جلود الميتة اذا دبغت، (رقم الحديث : ۱۷۲۷) ـ

[3]) فتح القدير ى،كتاب الطهارة باب الماء الذى يجوز به الوضوء وما لايجوز(ج ۱ ص۱۸(ـ

[4]) عمدة القارى(ج ۲۱ ص ۱۳۳) ـ

[5]) عمدة القارى(ج ۲۱ ص ۱۳۳) ـ

۞ دويم قول دادې چې جلودميته نه ددباغت نه مخكښې اوددباغت نه پس دواړه صورتونو كښې ددې نه انتفاع جائزه ده. ابن شهاب دا اختيار كړې دى.[1]

۞ دريم قول دحضرت امام مالك رحمه الله اودحضرت امام احمدبن حنبل رحمه الله دې، ددوى په نيزدباغت نه پس هم جلود نه انتفاع حاصلول جائز نه دى.[2]

داحضرات دحضرت عبدالله بن عكيم ليثى رضي الله عنه دروايت نه استدلال كوى، چې په هغې كښې هغوى فرمائى چې مونږله حضورنبى كريم ﷺ خط مبارك دحضورنبى كريم دوفات نه څوورځې مخكښې راغلو، په هغې كښې ووچې «الاتنتفعوا من الميتة باهب ولاعصب»[3] ددې حديث مختلف جوابات وركړې شوى دى. لكه دامضطرب المتن اومضطرب السند دې، علامه عينى رحمه الله ليكى چې : «والجواب الصحيح عنه ان حديث ابن عباس المذكور من الصحاح وانه سماع وحديث ابن عكيم كتابة فلا يقاوم»

يعنى حديث باب، حديث صحيح دې. اوسماعا دې اودابن عكيم حديث په ذريعه دكتابت نقل شوې دې، داشان دابن عكيم په صحابى كيدوكښې هم احتلاف دې. ددهٔ په تابعى كيدو كښې حديث به مرسل وى اودموصول حديث مقابله كښې حجت نشى جوړيدې

داحضرات دابوداود اوترمذى دروايت نه هم استدلال كوى.«انه عليه السلام نهى عن جلود السباع ان تفترش»[4]

ليكن جمهورودانهى انتفاع قبل الدباغ باندې محمول كړې ده. چې ددباغت نه مخكښې څرمن نه انتقاع اخستل درست نه دى.[1]

لكه څنګه چې مخكښې راغلى دى چې دحضرت امام مالك رحمه الله اوحضرت امام احمدبن حنبل رحمه الله آخرى قول دجمهورومطابق دې، هغوى ددې خپل قول نه رجوع كړې ده.

حديث باب كښې د«اهاب»لفظ راغلې دې، دباغت نه مخكښې څرمنې ته «اهاب»بعضو وئيلى دى چې مطلق څرمنې ته «اهاب»وائى، كه قبل الدباغت نه وى اوكه بعد الدباغت نه وى. ددې جمع «اهب» رازى. په همزه اوهاء دواړوباندې فتحه اوضمه دواړه جائزدى.[5] «عنز بفتح العين وسكون النون»چيلۍ ته وائى،

**سند باندې يواعتراض اودهغې جواب:** دلته دباب آخرى روايت كښې دحضرت امام بخارى رحمه الله

---

[1] عمدة القارى(ج ۲۱ ص۱۳۳) _

[2] فتح القدير كتاب الطهادة :ج۱ص ۸۱، وعمدة القارى(ج ۲۱ ص۱۳۳) _

[3] عمدة القارى(ج ۲۱ ص۱۳۳) _

[4] سنن ترمذى كتاب للباس باب ماجاء فى النهى عن جلودالسباع (رقم الحديث ۱۷۷۰،۱۷۱) وسنن ابى داود كتاب اللباس باب ماجاء فى جلودالنموروالسباع (رقم الحديث:۴۱۳۲) _

[5] عمدة القارى :(ج۲۱ص ۱۳۳) _

شيخ خطاب بن عثمان، د دوی شيخ محمد بن حميراو د دوی شيخ ثابت بن عجلان دي، دا درې واړه د شام د ښار حمص دي، صحيح بخاری کښې د خطاب بن عثمان او ثابت بن عجلان صرف دا يو حديث دې، البته د محمد بن حميريو حديث باب الهجرة کښې هم تيرشوې دې.[1]
دا درې واړه روايان متکلم فيه دی، خطاب بن عثمان باره کښې ابن حبان او دار قطنی فرمائی چې (ربما اخطاء)[2]
د محمد بن حمير متعلق ابو حاتم فرمائی چې (لايحتج به)[3]
او ثابت متعلق حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی چې (انا متوقف فيه)[4]
او عقيلی د دهٔ متعلق فرمائی چې (لايتابع في حديثه)[5]
نو کله چې دا درې واړه متکلم فيه دی، بيا حضرت امام بخاری رحمه الله د دوی حديث څنګه نقل اوفرمائيلو.
حضرت حافظ ابن حجر رحمه الله د دې جواب ورکوی چې (ان هولاء من المتابعات لا من الاصول والاصل فيه الذی قبله)[6] يعنی د دې راويانو حديث لره حضرت امام بخاری رحمه الله په طور د تائيد او په طور د متابعت ذکر کړې دې، اصل حديث خو مخکښې والا دې، دا دويم حديث په طور د متابعت دې او د متابعت په طور باندې متکلم فيه راويانو روايت ذکر کولو کښې هيڅ حرج نشته دې.
علامه عينی رحمه الله فرمائی چې د حضرت امام بخاری رحمه الله شيخ خطاب ابدال کښې شميرلې کيدو [7] او دار قطنی د (ربما اخطا) وئيلو نه باوجود د دوی توثيق کړې دې.[8]
محمد بن حمير لره هم يحيی بن معين اد حيم ثقه ګرزولې دې.[9] امام نسائی رحمه الله د دوی باره کښې فرمائی چې (ليس به باس)[10]

---

[1] عمدة القاری :(ج۲۱ص ۱۳۳) _
[2] تهذيب الکمال :ج۸ص ۲۶۹، رقم الترجمه :۱۶۹۸) _
[3] الجرح والتعديل الترجمی ۱۳۱۵، وتهذيب الکمال :ج۸ ص:۲۶۹_
[4] تهذيب التهذيب :ج۱ص ۱۰_
[5] کتاب الضعفاء للعقيلی ج۱ص۱۷۶، رقم الترجمه :۲۱۹) _
[6] فتح الباری : ج۹ص۸۲۳_
[7] عمدة القاری :(ج۲۱ص ۱۳۳) و تهذيب الکمال :ج۸ص ۲۶۹. _
[8] تهذيب التهذيب :ج۳ص۱۴۶، واسماء التابعين للدارقطنی الترجمة :۲۸۷) _
[9] تهذيب الکمال ج۲۵ص۱۱۸، رقم الترجمه ۵۱۷۰)
[10] تهذيب الکمال ج۲۵ص۱۱۸، رقم الترجمه ۵۱۷۰)، ابن حبان دهٔ لره په کتاب الثقات (ج۷ص۴۴۱) کښې ذکر کړی دی) _

# ۳۱- باب المسك

[۵۲۱۳] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ عَنْ عَبْدِ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا عُمَارَةُ بْنُ الْقَعْقَاعِ عَنْ أَبِي زُرْعَةَ بْنِ عَمْرِو بْنِ جَرِيرٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «مَا مِنْ مَكْلُومٍ يُكْلَمُ فِي اللَّهِ إِلَّا جَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَكَلْمُهُ يَدْمَى، اللَّوْنُ لَوْنُ دَمٍ وَالرِّيحُ رِيحُ مِسْكٍ». [ر: ۲۳۵]

[۵۲۱۴] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدٍ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي مُوسَى - رضى الله عنه - عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «مَثَلُ الْجَلِيسِ الصَّالِحِ وَالسَّوْءِ كَحَامِلِ الْمِسْكِ وَنَافِخِ الْكِيرِ، فَحَامِلُ الْمِسْكِ إِمَّا أَنْ يُحْذِيَكَ، وَإِمَّا أَنْ تَبْتَاعَ مِنْهُ، وَإِمَّا أَنْ تَجِدَ مِنْهُ رِيحًا طَيِّبَةً، وَنَافِخُ الْكِيرِ إِمَّا أَنْ يُحْرِقَ ثِيَابَكَ، وَإِمَّا أَنْ تَجِدَ رِيحًا خَبِيثَةً». [ر: ۱۹۹۵]

دثابت بن عجلان په باره کښې ابوحاتم فرمائی ،، صالح الحدیث، عقیلی ددوی ذکرپه ضعفاء کښې کړې دې اوپه دهٔ باندې ذهبی اوابن قطان نکیرفرمائیلې دې.(۱)

لهذا داراوی من جمله ثقه دې.اوددې قابل دې صحیح بخاری کښې ددوی احادیث ذکرشوی دی.

**د مشکو داستعمال حکم**: مشک داوسئ دنامه نه وتونکې خوشبوداري مادې ته وائی. د مشکو استعمال سړواوښځودارو دپاره بالاتفاق جائزدی.

بعضې حضراتو دحضرت فارق اعظم رضی اللہ عنہ، عمربن عبدالعزیز رحمۃ اللہ، حضرت حسن بصری رحمۃ اللہ اوعطاء بن ابی رباح وغیره نه ددوی کراهت نقل کړې دې.ځکه چې دا داسې دی چې لکه څنګه میته نه یوحصه بیله کړې شی.(۲)

ابن منذرفرمائی چې صرف عطاء نه کراهت منقول دې.باقی کسانونه دکراهت روایت درست نه دې، مشک لره په (ماقطع من المیتة) باندې قیاس کول صحیح نه دی.ځکه چې امام ابوداود رحمۃ اللہ دحضرت ابوسعیدخدری رضی اللہ عنہ نه مرفوعانقل فرمائیلې دی چې حضورنبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم فرمائی چې (اطیب طیبکم المسک)(۳)

**قوله**: مکلوم: زخمی ته وائی، کلم باب ضرب نه دزخمی کولوپه معنی کښې رازی.

**قوله**: کیر: بټۍ ته وائی (دچمړې وغیره پم چې هغې سره بټۍ لره اوور اولګولې شی)(نافخ الکیر) بټۍ لره اوور ورکونکې، مرادترې لوهاردې.

**قوله**: یحذیك: په معنی د(یعطیك) داد(احذاء) نه دې.چې ددې معنی ورکولووالا اوعطاء کولووالا ده.(۴)

---

(۱) تهذیب التهذیب ج۲ ص۱۰، ومیزان الاعتدال ج۱ص (۳۶۵)_
(۲) عمدة القاری (ج ۲۱ص ۱۳۴)_
(۳) سنن ابی داود کتاب الجنائزباب فی المسک للمیت (رقم الحدیث :۳۱۸۵: ج۳ص ۲۰۰)_
(۴) سنن ابی داود کتاب الجنائز.باب فی المسک للمیت : ۳۱۵۸:ج۳ص ۲۰۰_

## ۳۲- باب: الارنب

[۵۲۱۵] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ هِشَامِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ أَنَسٍ -رضي الله عنه- قَالَ أَنْفَجْنَا أَرْنَبًا وَنَحْنُ بِمَرِّ الظَّهْرَانِ، فَسَعَى الْقَوْمُ فَلَغِبُوا، فَأَخَذْتُهَا فَجِئْتُ بِهَا إِلَى أَبِي طَلْحَةَ فَذَبَحَهَا، فَبَعَثَ بِوَرِكَيْهَا -أَوْ قَالَ بِفَخِذَيْهَا- إِلَى النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فَقَبِلَهَا. [ر: ۲۴۳۳]

**دسوي (خرګوش) حکم** : سوه دجمهورعلماء په نیزحلاله ده. حضرت عمروبن العاص، حضرت عبدالرحمان ابن ابی لیلی اوحضرت عکرمه نه ددې کراهت منقول دې،رافعی دحضرت امام ابوحنیفه رحمه الله نه ددې حرمت نقل کړې دې لیکن هغه قول درست نه دې، د احنافوپه نیزهم خرګوش بلاکراهت جائزدې.(۱)

دا حضرات دخزیمه بن جزء دروایت نه استدلال کوی ,,**قلت یا رسول الله ماتقول فی الارنب؟: قال لا آکله ولااحرمه، قلت: فانی آکل مالاتحرمه، ولم یا رسول الله؟ قال: (نبئت انها تدمی)**،،(۲)

په دې حدیث کښې حضورنبی کریم ﷺ دسوې متعلق فرمائی چې څه داخورم اونه ئې حرام ګڼړم.ځکه چې ماته دې باره کښې وئیلې شوی دی چې ددې حیض رازی

ددې حدیث نه دسوې کراهت باندې داحضرات استدلال کوی.لیکن ددې سند ضعیف.اوحدیث ثابتیدوپه صورت کښې به داکراهت په طبعی کراهت باندې محمول وی.

امام ابویوسف رحمه الله په خپل کتاب الاثارکښې روایت نقل کړې دې چې په دې کښې تصریح ده چې یوسړی دسوې متعلق اووئیل چې ددې حیض رازی دوی اوفرمائیل چې هیڅ هم مه خورئی.(۳)

جاحظ دسوې متعلق فرمائی دایوکال ماده وی اویوکال نر،ددې حیض هم رازی (په دې وجه بعضودې ته مکروه وئیلی دی) اوکله چې دااوده کیږی نوددې سترګې غړیدلې وی.(۴)

## ۳۳- باب الضب

[۵۲۱۶] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُسْلِمٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ دِينَارٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ -رضي الله عنهما- قَالَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- «الضَّبُّ لَسْتُ آكُلُهُ وَلاَ أُحَرِّمُهُ». [۶۸۳۹]

[۵۲۱۷] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ بْنِ سَهْلٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ -رضي الله عنهما- عَنْ خَالِدِ بْنِ الْوَلِيدِ أَنَّهُ دَخَلَ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ-

---

(۱) عمدة القاری (ج۲۱ص۱۳۵) _

(۲) فتح الباری (ج۹ص ۸۲۶) _

(۳) اعلاء السنن ج۱۷ص ۱۹۴،) وتکملة فتح الملهم : ج۳ص۴۳۷، کتاب الصید والذبائح) _

(۴) کتاب الحیوان للجاحظ :ج۳ص۴۰۶، ج۳۵۲۹ وعمدة القاری :(ج۲۱ص۱۳۵) _

صلى الله عليه وسلم - بَيْتَ مَيْمُونَةَ فَأُتِيَ بِضَبٍّ مَحْنُوذٍ، فَأَهْوَى إِلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - بِيَدِهِ فَقَالَ بَعْضُ النِّسْوَةِ أَخْبِرُوا رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - بِمَا يُرِيدُ أَنْ يَأْكُلَ. فَقَالُوا هُوَ ضَبٌّ يَا رَسُولَ اللَّهِ. فَرَفَعَ يَدَهُ، فَقُلْتُ أَحَرَامٌ هُوَ يَا رَسُولَ اللَّهِ فَقَالَ «لاَ، وَلَكِنْ لَمْ يَكُنْ بِأَرْضِ قَوْمِي فَأَجِدُنِي أَعَافُهُ». قَالَ خَالِدٌ فَاجْتَرَرْتُهُ فَأَكَلْتُهُ وَرَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَنْظُرُ. [ر: ۵۰۷۶]

د ضب متعلق تفصيل تيرشوې دې.

## ۳۴= باب إِذَا وَقَعَتِ الْفَأْرَةُ فِي السَّمْنِ الْجَامِدِ أَوِ الذَّائِبِ

[۵۲۱۸] حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ قَالَ أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ أَنَّهُ سَمِعَ ابْنَ عَبَّاسٍ يُحَدِّثُهُ عَنْ مَيْمُونَةَ أَنَّ فَأْرَةً وَقَعَتْ فِي سَمْنٍ فَمَاتَتْ، فَسُئِلَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - عَنْهَا فَقَالَ «أَلْقُوهَا وَمَا حَوْلَهَا وَكُلُوهُ».

قِيلَ لِسُفْيَانَ فَإِنَّ مَعْمَرًا يُحَدِّثُهُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ مَا سَمِعْتُ الزُّهْرِيَّ يَقُولُ إِلاَّ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ مَيْمُونَةَ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - وَلَقَدْ سَمِعْتُهُ مِنْهُ مِرَارًا.

[۵۲۱۹] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ عَنْ يُونُسَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنِ الدَّابَّةِ تَمُوتُ فِي الزَّيْتِ وَالسَّمْنِ وَهْوَ جَامِدٌ أَوْ غَيْرُ جَامِدٍ، الْفَأْرَةِ أَوْ غَيْرِهَا قَالَ بَلَغَنَا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - أَمَرَ بِفَأْرَةٍ مَاتَتْ فِي سَمْنٍ، فَأَمَرَ بِمَا قَرُبَ مِنْهَا فَطُرِحَ ثُمَّ أُكِلَ، عَنْ حَدِيثِ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ.

[۵۲۲۰] حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ مَيْمُونَةَ - رضى الله عنهم - قَالَتْ سُئِلَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - عَنْ فَأْرَةٍ سَقَطَتْ فِي سَمْنٍ فَقَالَ «أَلْقُوهَا وَمَا حَوْلَهَا وَكُلُوهُ». [ر: ۲۳۳]

غوړوكښې كه مږه وغيره پريوزى نوكه هغه چكه شوى نه وى، مائع اوويلى شوى وى نوداسې صورت كښې داكثروعلماء په نيزهغه غوړى نجس دى، ددې خوراک ترست نه دې. اوكه كلك اوچكه زى نودمنګك دويستلونه پس ددې ګيرچاپيره غوړى دې ويستلې شى باقى استعمالولې شى [1] شيرې اوشهدو وغيره هم داحكم دې، حديث باب كښې د سمن جامدحكم بيان شوې دې، نوابن العربى رحمه الله (وماحولها) نه استدلال كوى اوفرمائى چې ددې نه (سمن جامد) مراددى ځكه چې ماحول په سمن جامد كښې متعين كولې شى سمن مائع كښې دماحول تعين نه شى كولې. [2] _

[1] عمدة القارى ج ۲۱ص۱۳۸) وفتح البارى ج۹ص۷۳۵) _
[2] عمدة القارى ج ۲۱ص۱۳۸) وفتح البارى ج۹ص۷۳۵)

باقي دګیرچاپیره نه ځومره غوړي ویستل پکاردي.په دې سلسله کښې څه مخصوص مقدارمنقول نه دې بلکه دامبتلی به رائې باندې منحصردې،دحضرت عطاء بن یسارنه یومرسل روایت نقل کړې دې چې یو کف (تلی) په قدردې رواوویستلې شي.(۱)_

طبراني دحضرت ابو الدرداء رضي الله عنه نه یومرفوع روایت نقل کړې دې چې دواړه تلی دی یوځائې کړې شي ددریولپوهومره دې راویستلې شي لیکن سندضعیف دې.(۲)_

بعضې حضراتوسمن جامداومائع کښې فرق نه دې کړې او وائي چې حدیث باب کښې مطلقا (القوها وماحولها وکلوه) فرمائیلی دی.لهذا سمن مائع هم د(ماحول) ویستلوسره پاکیږي.(۳)

لیکن جمهوروائي چې حدیث باب کښې دسمن جامدحکم بیان شویدې.اوددی دلیل دحضرت ابوهریره رضي الله عنه روایت دې،چې په هغې کښې تصریح راغلې ده.نوپه هغې کښې دی چې (اذا وقعت الفارة في السمن فان کان جامدا فالقوها وماحولها وان کان مائعا فلا تقربوه)(۴)

په دې کښې دجامداومائع فرق صراحتابیان کړې شوې دې.

**دحضرت امام بخاري رحمه الله مسلک:** ① حضرت امام بخاري رحمه الله چونکه ترجمة الباب کښې سمن جامد او ذائب دواړو ذکرکړي دی.ددې وجې بعضې حضراتووئیلې دی چې ددوی په نیز جامد او ذائب د دواړوحکم یودې اوهغه داچې نجاست پریوتلوسره غوړي ناپاک نه وی که جامدوی اوکه مائع.

② بعضوشراحو فرمائیلی دی چې دحضرت امام بخاري رحمه الله مسلک دجمهورومطابق دې،حضرت امام بخاري رحمه الله په ترجمة الباب کښې سمن جامداوذائب دواړوذکرکړې دې، حدیث باب نه صرف سمن جامدحکم معلوم شو(ځکه چې هغه سمن جامدسره متعلق دی) چې په دې کښې که نجاست پریوزي نوغوړي به نجس شي،ماحول لره داخواکولونه پس خوړل ئې جائزدی.ددې مفهوم مخالف دادې که هغه غوړي مائع دی نونجاست پویوتلوسره به نجس شي.ګویاچې حضرت امام بخاري رحمه الله دحدیث مفهوم سره نور اجزاء سمن مائع حکم دجمهورومطابق ثابت کړو.نومولانارشیداحمدګنګوهي رحمه الله فرمائي چې:

(دلالة الروایة علی جزئي الترجمة ظاهرة فان الحولیة لا تتحقق الا في الجامد فعلم ان الذائب لا یبقی طاهرا)

③ مولانا انورشاه کشمیري رحمه الله فرمائي چې حضرت امام بخاري رحمه الله اصل کښې نجاست جامده اونجاست مائعه کښې فرق کول غواړي که نجاست جامده پریوزي نوغوړي ناپاک نه وي که غوړي جامد وي اوکه مائع.اوکه نجاست مائع پریوزي نوغوړي به نجس وي نومړې پریوتلو سره به نجس نه وي ځکه چې هغه نجس جامد دې.نوفیض الباري کښې دی چې:

---

۱) عمدة القاري ج ۲۱ص۱۳۸) وفتح الباري ج۹ص۷۳۵)
۲) عمدة القاري ج ۲۱ص۱۳۸) وفتح الباري ج۹ص۷۳۵)
۳) عمدة القاري ج ۲۱ص۱۳۸)
۴) سنن ابی داودکتاب الاطعمة باب في الفارقة تقع في السمن (رقم الحدیث :۳۸۴۲)_

((وقد مرمنی انه اختار الروایة غیرالمشهورة عن احمد وهی الفرق بین النجاسة الجامدة والمائعة فالاولی لاتنجس سواء وقعت فی الجامداوالذائب وتنجس الثانیة وعلیها حمل تبویب المصنف فی الطهارة بوقوع الفارة اولافانها نجاسة وبالبول فی الماء الراکدثانیا فانه نجاسة مائعة فکانه اشاربالفرق بینهما وتاویل هذه الترجمة عندی انه ذکرفیها الجامدلکون الحدیث فیه عنده فان القاء ماحولها لایمکن الا فی الجامدثم ذکرالذائب ولم یذکرحکمه لینظرفیه الناظراما الزهری فانه وان سئل عن السمن مطلقا لکنه لکن لم یجب الاعن الجامد ولم یذکرللمائع حکما وذالك لانه حدیث البخاری یدل بمفهومه علی ان المائع یتنجس))[1]

**چې په کومو غوړو کښې نجاست پریوزی نو دهغې نه دانتفاع حکم** سمن مائع (ویلي شوی غوړ) کښې که مږه پویوزی نودجمهوروپه نیزهغه ناپاک شی.لیکن په دې کښې اختلاف دې چې ددې غوړونه څه فائده حاصلولې شی که نه؟

① دامام احمد رحمه الله په نیز دداسې قسمه غوړو نه هیڅ قسمه فائده حاصلول صحیح نه دی[2]ځکه چې دحضرت ابوهریره رضی الله عنه په روایت کښې صراحت سره دی ,,وان کان مائعافلاتقربوه،،

لیکن جمهور وائی چې ددې نه ,, فلا تقربوه للاکل،، مراد دې، دخوراک نه ممانعت دې، دانتفاع نه نه_

دحضرت امام مالک رحمه الله په نیزداسې غوړونه مطلقادڅه قسم فائده حاصلول درست نه دی،[3] ځکه چې بعضوروایتونو کښې دی چې (ان الله تعالی اذاحرم اکل شئ حرم ثمنه))چې دکوم څیزخوړل حرام دی،دهغې ثمن هم حرام دی، اوچونکه دداسې غوړو استعمال صحیح نه دې لهذاددې بیع هم درست نه ده. حنیفه وائی چې په دې حدیث کښې دنجس لعینه حکم بیان شوې دې.اومذکوره غوړې نجس لعینه نه دی.[4]

دحضرات حنیفه په نیزدخوراک نه علاوه داسې قسمه غوړونه هرقسم فائده اخستل جائزدی.[5]

ځکه چې بعضوروایتونوکښې دا الفاظ هم راغلی دی چې (وان کان السمن مائعا انتفعوابه ولا تاکلوه))اویوروایت کښې ددې تیلومتعلق راغلی دی چې په هغې کښې منګږ پریوتې وی (فاستصبحوابه وادهنوابه))[6]

---

[1]) فیض الباری (ج ٤ص ٣٤٤).لامع الدراری : عمدة القاری : (ج٢١ص ٤٢١، تعلیقات لامع الدراری :ج ٩ص ٤٢٢).

[2]) عمدة القاری (ج٢١ص١٣٨)_

[3]) عمدة القاری ج ٢١ص ١٣٨)

[4]) عمدة القاری ج ٢١ص ١٣٨)

[5]) عمدة القاری ج ٢١ص ١٣٨)

[6]) عمدة القاری ج ٢١ص ١٣٨)

ستصباح چراغ بلولوته وائى، يعنى داسې غوړى اوتيل چې هغې سره چراغ وغيره بلول صحيح دى.

«قيل لسفيان فان معمرا يحدثه عن الزهرى عن سعيد بن المسيب عن ابى هريرة رضى الله عنه قال ماسمعت الزهرى رحمه الله يقول الاعن عبيدالله عن ابن عباس رضى الله عنهما عن ميمونة عن النبى صلى الله عليه وسلم ولقد سمعت منه مرارا»

حديث باب سفيان بن عينيه زهرى عن عبيدالله بن عباس رضى الله عنهما په طريق باندې نقل كړې دې، چې دسفيان نه تپوس اوكړوچې معمر داحديث زهرى عن سعيدالمسيب عن ابى هريره په طريق باندې نقل كوى، نوسفيان اووئيل چې مادا حديث دزهرى نه.عبيدالله عن ابن عباس رضى الله عنهما په طريقه مې څوځله آوريدلې دې.

## ۳۵- بَابُ الْوَسْمِ وَالْعَلَمِ فِي الصُّورَةِ

[۵۲۲۱] حَدَّثَنَا عُبَيْدُاللَّهِ بْنُ مُوسَى عَنْ حَنْظَلَةَ عَنْ سَالِمٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّهُ كَرِهَ أَنْ تُعْلَمَ الصُّورَةُ. وَقَالَ ابْنُ عُمَرَ نَهَى النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - أَنْ تُضْرَبَ. تَابَعَهُ قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا الْعَنْقَزِيُّ عَنْ حَنْظَلَةَ وَقَالَ تُضْرَبُ الصُّورَةُ.

[۵۲۲۲] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ هِشَامِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ أَنَسٍ قَالَ دَخَلْتُ عَلَى النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- بِأَخٍ لِي يُحَنِّكُهُ، وَهُوَ فِي مِرْبَدٍ لَهُ، فَرَأَيْتُهُ يَسِمُ شَاةً -حَسِبْتُهُ قَالَ- فِي آذَانِهَا. [ر: ۱۴۳۱]

**قوله: وسم:** دواو په فتح اودسين په سكون سره، اوعلم دواړويومعنى ده.يعنى علامت اونښان.(۱)

ابن الاثيرفرمائى چې وسم خاص اوعلم به عام وى.(۲)

دصورت نه مخ مراددې.(وسم فى الوجه باالاجماع منهى عنه) دې.دسړى مخ لره داغل ياپرې نښان لګول مطلقاحرام دى.

مسلم شريف كښې دى چې حضرت جابر رضى الله عنه حديث دې چې حضورنبى كريم صلى الله عليه وسلم يوخر سره تيرشو اووې كتل چې هغه ته چاپه مخ باندې داغ وركړې دې نوحضورنبى كريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چې (لعن الله الذى وسمه)(۳)

دمخ نه علاوه دځناورو دنوربدن په څه حصه باندې داغ لګول كه چاتاڅه فائده وركولوده پاره وى نوجائزدې ليكن په دې شرط چې هغه نښان كم وى، كه كم نه وى نوحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزمكروه دې ځكه چې په دې كښې دحيوان تعذيب هم دې. اودامثله كښې

---

(۱) عمدة القارى ج ۲۱ص ۱۳۸)

(۲) النهاية لابن الاثير : ج۵ص ۱۷۶)

(۳) صحيح مسلم (مع التكملة) كتاب اللباس والزينة باب النهى عنه ضرب الحيوان فى وجهه :ج ٤ ص۱۸۲)

هم رازي اوتعذيب دحيوان اومثله دواړه منهي عنه دي.[1] جمهوروائي چې هغه نهي عام ده اوحديث وسم خاص دې.[2]

**قوله:** وقال ابن عمر نهى النبي ﷺ ان تضرب: داماقبل سندسره متصل دې، حضرت ابن عمر رضي الله عنه فرمائي چې حضورنبي كريم ﷺ منع فرمائيلې ده په مخ وهل. په دې روايت كښې (ان تضرب) دې مفعول به ذكرنه دې. ددې وجې حضرت امام بخاري رحمه الله مخكښې دابن قتيبه روايت نقل كوى چې په هغې كښې د(الوجه)تصريح ده. (تابعه ابن قتيبه) يعنى ابن قتيبه دحضرت امام بخاري رحمه الله دشيخ عبيد الله بن موسى متابعت كړې دې.

**قوله:** عنقزي: دعين فتحه،نون ساكن،دقاف فتحه سره، (عنقز) طرفته منسوب ده. دا يو خوشبو داروابنو ته وائي.چونكه هغوى بهٔ داوابنه خوځولودډې وجې دې طرفته منسوب شو.[3] ابن حبان دوى په كتاب الثقات كښې ذكركړى دى.[4]
حضرت امام احمدبن حنبل رحمه الله اوامام نسائي رحمه الله ددې توثيق كړې ده.[5]

**قوله:** دخلت على النبي ﷺ باخ لي: دادحضرت انس رحمه الله مورشريك روروو.ددوى نوم عبدالله بن ابى طلحه وو.

**قوله:** حسبته قال في آذانها: دادشعبه قول دې.(حسبته) كښې دننه ضميرمنصوب هشام بن زيدطرفته راجع دې.شعبه فرمائي چې ځماخيال دادې چې هشام بن زيد د(في اذنها) الفاظ هم وئيلى وو. يعنى حضورنبي كريم ﷺ دچيلئ غوږونه داغل،حضرت حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چې: ((هذا محل الترجمة وهوالعدول عن الوسم فى الوجه الى الوسم فى الاذن فيستفاد منه ان الاذن ليست من الوجه))[6]

**قوله:** مربد: (دميم زير. دراء په سكون اود باء په فتحه سره) داوبنانو باړې ته وائي.
كه يوجماعت ته غنيمت ملاؤشو اوپه هغې كښې څه كسانو دنور ملګرو دتپوس او جازت نه بغيردغنيمت چيلئ يا اوبنان وغيره ذبح كړى نو ددې خوراك جائزنه دې، ځكه چې دتقسيم نه وړاندې هغه دټولومشترك مال وى. دټولو داجازت نه بغير په دې كښې دڅه قسمه تصرف اختيار نه دې حاصل.[7]

---

[1]) عمدة القارى ج ۲۱ص ۱۳۹،۱٤۰)_
[2]) فتح البارى :ج ۹ص ۸۳۸) _
[3]) عمدة القارى ج ۲۱ص ۱۳۹،۱٤۰)و فتح البارى :ج ۹ص ۸۳۷) _
[4]) ثقات ابن حبان (ج۸ص٤۸۲).
[5]) الجرح والتعديل : ۶الترجمة : ۱٤۵۰، وتهذيب الكمال : ج۲۲ص۲۲۲، رقم الترجمه : ٤٤٤٤) _
[6]) فتح البارى :ج ۹ص ۸۳۸) _
[7]) عمدة القارى (ج۲۱ص۱٤۱) _

دحضرت رافع په حديث كښې دى چې حضوراكرم ﷺ دداسې كونكو كتوئ البته كړې وى. ځكه چې هغوى اجازت نه وو اغستې چې تفصيل ئې وړاندې تيرشوې دې.

## بَابٌ إِذَا أَصَابَ قَوْمٌ غَنِيمَةً فَذَبَحَ بَعْضُهُمْ غَنَمًا أَوْ إِبِلاً بِغَيْرِ أَمْرِ أَصْحَابِهِمْ لَمْ تُؤْكَلْ

لِحَدِيثِ رَافِعٍ عَنِ النَّبِىِّ - صلى الله عليه وسلم -. وَقَالَ طَاوُسٌ وَعِكْرِمَةُ فِى ذَبِيحَةِ السَّارِقِ اطْرَحُوهُ.

[۵۲۲۳] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَسْرُوقٍ عَنْ عَبَايَةَ بْنِ رِفَاعَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ قَالَ قُلْتُ لِلنَّبِىِّ - صلى الله عليه وسلم - إِنَّنَا نَلْقَى الْعَدُوَّ غَدًا، وَلَيْسَ مَعَنَا مُدًى. فَقَالَ «مَا أَنْهَرَ الدَّمَ وَذُكِرَ اسْمُ اللَّهِ فَكُلُوا، مَا لَمْ يَكُنْ سِنٌّ وَلاَ ظُفُرٌ، وَسَأُحَدِّثُكُمْ عَنْ ذَلِكَ، أَمَّا السِّنُّ فَعَظْمٌ، وَأَمَّا الظُّفُرُ فَمُدَى الْحَبَشَةِ». وَتَقَدَّمَ سَرَعَانُ النَّاسِ فَأَصَابُوا مِنَ الْغَنَائِمِ وَالنَّبِىُّ - صلى الله عليه وسلم - فِى آخِرِ النَّاسِ فَنَصَبُوا قُدُورًا فَأَمَرَ بِهَا فَأُكْفِئَتْ وَقَسَمَ بَيْنَهُمْ وَعَدَلَ بَعِيرًا بِعَشْرِ شِيَاهٍ، ثُمَّ نَدَّ بَعِيرٌ مِنْ أَوَائِلِ الْقَوْمِ وَلَمْ يَكُنْ مَعَهُمْ خَيْلٌ فَرَمَاهُ رَجُلٌ بِسَهْمٍ فَحَبَسَهُ اللَّهُ. فَقَالَ «إِنَّ هَذِهِ الْبَهَائِمَ أَوَابِدَ كَأَوَابِدِ الْوَحْشِ فَمَا فَعَلَ مِنْهَا هَذَا فَافْعَلُوا مِثْلَ هَذَا». [ر: ۲۳۵۶]

**قوله**: وَقَالَ طَاوُسٌ وَعِكْرِمَةُ فِى ذَبِيحَةِ السَّارِقِ اطْرَحُوهُ: طاوس اوعكرمه دغل دذبيحه متعلق فرمائى چې دااوغورزوئى، يعنى دا مه خورئى. داحكم دهغه ذبيحه متعلق دې چې نه دمملوك وى اونه دمالك دطرفنه هغه وكيل وى لهذاچې كوم سړى ته ولايت ياوكالت حاصل نه وى. دهغه ذبيحه درست نه ده. عبدالرزاق دطاوس اوعكرمه داتعليق موصولانقل كړې دې.[1]

**قوله**: مريد: دميم زيردراء سكون اوباء فتحه سره) داوبښ باړ ته وائى يوډلې ته مال دغنيمت ملاؤشى اوپه دوى كښې څه خلق دنورو ملګرونه تېوس اوكړى اودهغوى دداجازت نه بغيردغنيمت چيلئ ياااوبښ ذبح كړى نودهغې خوراک جائزنه دې. ځكه چې دتقسيم نه مخكښې هغه ټول مشتركه مال دې. يوته دبل داجازت نه بغيرپه هغې كښې دتصرف كولواختيار حاصل نه دې.[2]

دحضرت نافع حديث كښې دى چې حضورنبى كريم ﷺ داشان كولو والوباندې كتوئى البته كړې وى. ځكه چې هغوى اجازت نه وواخستې چې دهغې تفصيل تيرشوې دې.

---

[1]) فتح البارى: ج ۹ص ۱۴۱) ـ
[2]) عمدة القارى: (ج ۲۱ص ۱۴۱) ـ

## ٣٧=باب إذا ندّ بعير لقوم فرماه بعضهم بسهم فقتله فأراد إصلاحهم فهو جائز

لخبر رافع عن النبي -صلى الله عليه وسلم-.

[٥٢٢٤] حدثنا ابن سلام أخبرنا عمر بن عبيد الطنافسي عن سعيد بن مسروق عن عباية بن رفاعة عن جده رافع بن خديج -رضي الله عنه- قال كنا مع النبي -صلى الله عليه وسلم- في سفر فندّ بعير من الإبل - قال - فرماه رجل بسهم فحبسه، قال ثم قال «إن لها أوابد كأوابد الوحش فما غلبكم منها فاصنعوا به هكذا». قال قلت يا رسول الله إنا نكون في المغازي والأسفار فنريد أن نذبح فلا تكون مدى قال «أرن ما نهر -أو أنهر- الدم وذكر اسم الله فكل، غير السن والظفر، فإن السن عظم، والظفر مدى الحبشة». [ر: ٢٣٥٦]

که دیوقوم اوښ اوتښتي اوپه هغوی کښې یوکس په غشي اولي اوددې نه مقصد ددوی نېيګړه وی نو داددې حدیث په بناء جائزدې چې کوم حضرت رافع حضورنبی کریم ﷺ نه نقل کړې دې (فاراد صلاحهم) یعنې دې سړي لره دقوم مقصد معلوم شو اوددوی نېيګړې دپاره هغه داّ اوښ راايسار ولودپاره هغه اولي نوداجائز دی. اوویشتو والا به ضامن نه وی لیکن که داجازت نه بغیرئې اویشتلونوضامن به وی[1]داحدیث مخکښې باب کښې تیرشوې دې.

## ٣٨=باب أكل المضطر

لقوله تعالى (يا أيها الذين آمنوا كلوا من طيبات ما رزقناكم واشكروا لله إن كنتم إياه تعبدون * إنما حرم عليكم الميتة والدم ولحم الخنزير وما أهل به لغير الله فمن اضطر غير باغ ولا عاد فلا إثم عليه)،

وقال (فمن اضطر في مخمصة غير متجانف لإثم) وقوله (فكلوا مما ذكر اسم الله عليه إن كنتم بآياته مؤمنين * وما لكم أن لا تأكلوا مما ذكر اسم الله عليه وقد فصل لكم ما حرم عليكم إلا ما اضطررتم إليه وإن كثيرا ليضلون بأهوائهم بغير علم إن ربك هو أعلم بالمعتدين)

(قل لا أجد فيما أوحي إلي محرما على طاعم يطعمه إلا أن يكون ميتة أو دما مسفوحا أو لحم خنزير فإنه رجس أو فسقا أهل لغير الله به فمن اضطر غير باغ ولا عاد فإن ربك غفور رحيم).

وقال (فكلوا مما رزقكم الله حلالا طيبا واشكروا نعمة الله إن كنتم إياه تعبدون * إنما حرم عليكم الميتة والدم ولحم الخنزير وما أهل لغير الله به فمن اضطر غير باغ ولا عاد فإن الله غفور رحيم)

[1]) عمدة القارى ج٢١ص١٣١) _

**مضطر کوم یو سړي دي**: مضطر هغه سړی ته وائی چې داسې حالت کښې وی که هغه څه ونه خوری نو ددهٔ دهلاکیدو خطره وی. دا دجمهورو مسلک دې. بعضو مالکیه د دریو ورځو قید لګولې دې چې کوم سړی ته په حالت اضطرار کښې حلال څیزدخوړولو ملاؤ نشی نو هغه ته مضطر وائی.(۱) که یو حلال څیز نه ملاویږی نو حرام څیزپه قدر دضرورت د استعمالولو اجازت دې دحضرت امام مالک رحمه الله په نیزپه مړهٔ خیټه خوراک کولې شی دامام شافعی رحمه الله یوقول ددې مطابق هم دې. دحنفیه په نیزصرف دومره خوراک کولې شی چې دې سره دهغه بدن کښې دژوند یولحمه برقرار پاتې شی ځکه چې دقرآن پاک آیت «غیرباغ ولا عاد» داقید لګولې دې چې هغه دخوراک لذت متلاشی نه وی اونه دحدنه تجاوز کولووالا وی.(۲)

داشان دسورت مائده آیت کښې «غیرمتجانف» الفاظ دی «متجانف لاثم» تفسیردا کړې شوې دې چې دحد نه زیاتی اونکړی. (۳)

حضرت امام بخاری رحمه الله دسورة بقرة، سورة مائده، سورة انعام اوسورة نحل ددې څلورو واړو سورتونوآیتونو ذکرفرمائیلی دی چې په هغې کښې دمضطراحکام بیان شوی دی.

**دحرام څیز په طورد دوائی استعمالولو شرطونه**: چې د کوم سړې ځان په خطره کښې وی. هغه دځان بچ کولو والا حرام څیزپه طور دوائی استعمالولې شی. لیکن فقهاء کرامو ددې دپاره پنځه شرطونه لیکلی دی:

① حالت اضطرار کښې وی یعنی دهغه ځان په خطره کښې وی.
② بله څه دوائی کار نه ورکوی یا موجود نه وی.
③ دې دوائی سره دمرض ښه کیدل یقنی وی.
④ ددې استعمال سره لذت حاصلول مقصود نه وی.
⑤ اود ضرورت نه دې زیات استعمال نه کړې. (۴)

داضطراری حالت مسئله خومذکوره شرطونوسره دنص قرآن پاک نه ثابت او اجماعی حکم دې. لیکن عاموبیماروکښې هم ناپاک یاحرامه دوائی استعمالول جائزدي یانه؟ په دې مسئله کښې فقهائې کرامو اختلاف کړې دی. اکثرفقهائې کرامو فرمائیلی دی چې اضطرار او مذکوره شرطونه نه بغیردحرامې دوائی استعمال جائز نه دی بعضې نوروفقهائې

---

(۱) عمدة القاری ج۲۱ص۱۴۱)

(۲) فمن اضطر غیر باغ ولاعاد ای فی غیریعنی ولاعدوان مجاوزة الحد فلا اثم علیه فی ذالک قال مجاهدفمن اضطرغیر ولا عاد قاطعاللسبیل اومفارقا للائمة اوخار جافی کعصیة الله تعالی.ولا عادمتزود منها وقیل غیر فی اکلها شهوة وتلذذ ولا عاد ولا یاکل حتی یشبع ولکن بالک مایمسک مقه (وانظر عمدة القاری ج۲۱ص۱۴۳)

(۳) فتح الباری ج ۹ص ۸۴۰).

(۴) معارف القرآن :ج ۲ص۳۲۶) _

کرامودې ته جائزوئيلې دی ليکن دهغوی مسلک ضعيف دې نو اصل حکم هم دادې چې عامو بيمارو کښې تر کمه پورې چې حالت اضطرار مذکوره شرطونه موجود نه وی. دحرامې دوائی استعمال جائز نه دې.

فقهائې متاخرينو مجوده زمانه کښې دحرامو اوناپاکو دوايانو دکثرت اوابتلاء عام او د عوامو د ضعف باندې نظرا چولونه پس ئې ددې اجازت ورکړې دې چې بل څه حلال اوپاکه دوائی ددې مرض دپاره کارورکوونکې نه وی موجوده نوعلامه شامی رحمه الله ليکی چې:

(اختلف فى التداوى بالمحرم وظاهر المذهب المنع كما فى رضاع البحر ولكن نقل المصنف ثم وههنا عن الحاوى قيل يرخص اذعلم فيه الشفاء ولم يعلم دواء آخر كما رخص فى الخمر للعطشان وعليه الفتوى)

يعنی حرام څيزونه په طوردوائی استعمالولو کښې اختلاف دې اوظاهر مذهب کښې ددې ممانعت راغلې دې لکه څنګه چې بحرائق کتاب ارضاع کښې مذکوردی ليکن مصنف تنوير ددې ځائې رضاع کښې هم اودلته هم حاوی نه نقل کړی دی چې بعضو عالمانو فرمائيلی دی چې دوائی اوعلاج دپاره دحراموڅيزونواستعمال په دې شرط باندې جائزدې چې ددې دوائی استعمال سره شفاء عادتا يقينی وی اوڅه حلاله دوائی اوددې بدل نه شی کيدې لکه څنګه چې دتږی دپاره دشرابو ګوټ دڅکلو اجازت ورکړې شوې دې اوهم په دې باندې فتوی ده.

مذکوره تفصيل نه دهغه ټولو انګريزی دوائی استعمال معلوم شوچې يورپ وغيره نه راځی چې په هغې شراب وغيره نجس څيزونه معلوم وی اويقينی وی اوچې په کومو دوايانو کښې دحرام اونجس اجزاء و جزدمشکوک وی. دهغې په استعمال کښې نورزيات ګنجائش دې بياهم احتياط بهرحال احتياط دې خصوصا چې کله چاته څه شديدضرورت نه وی.[1]

[1] معارف القرآن ج۱ص۴۲۷، ۴۲۶)_

# ٧٦-كتاب الاضاحي

[الاحاديث: ۵۲۲۵، ۵۲۲۶]

په كتاب الاضاحى كښې شپاړس بابونه دي اوڅلورڅلويښت مرفوع احاديث دى په دې كښې پنځلس معلق دى اوباقي موصول دى اته ديرش احاديث په كښې مكرردى اوپنځه په اول ځل راغلى دى په دې كښې څلور متفق عليه دى.دصحابوﷺ اوتابعينو وغيره په دې كښې اووه آثاردى.

بسم الله الرحمن الرحيم

## كتاب الاضاحي

### باب سُنَّةِ الأُضْحِيَّةِ

وَقَالَ ابْنُ عُمَرَهِيَ سُنَّةٌ وَمَعْرُوفٌ.

[۵۲۲۵] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ زُبَيْدٍ الإِيَامِيِّ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنِ الْبَرَاءِ-رضى الله عنه-قَالَ قَالَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم-«إِنَّ أَوَّلَ مَا نَبْدَأُ بِهِ فِي يَوْمِنَا هَذَا أَنْ نُصَلِّيَ ثُمَّ نَرْجِعَ فَنَنْحَرَ، مَنْ فَعَلَهُ فَقَدْ أَصَابَ سُنَّتَنَا، وَمَنْ ذَبَحَ قَبْلُ فَإِنَّمَا هُوَ لَحْمٌ قَدَّمَهُ لأَهْلِهِ، لَيْسَ مِنَ النُّسُكِ فِي شَيْءٍ». فَقَامَ أَبُو بُرْدَةَ بْنُ نِيَارٍ وَقَدْ ذَبَحَ فَقَالَ إِنَّ عِنْدِي جَذَعَةً. فَقَالَ «اذْبَحْهَا وَلَنْ تَجْزِيَ عَنْ أَحَدٍ بَعْدَكَ».

قَالَ مُطَرِّفٌ عَنْ عَامِرٍ عَنِ الْبَرَاءِ قَالَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم-«مَنْ ذَبَحَ بَعْدَ الصَّلاَةِ تَمَّ نُسُكُهُ، وَأَصَابَ سُنَّةَ الْمُسْلِمِينَ».

[۵۲۲۶] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ-رضى الله عنه-قَالَ قَالَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم-«مَنْ ذَبَحَ قَبْلَ الصَّلاَةِ فَإِنَّمَا ذَبَحَ لِنَفْسِهِ، وَمَنْ ذَبَحَ بَعْدَ الصَّلاَةِ فَقَدْ تَمَّ نُسُكُهُ، وَأَصَابَ سُنَّةَ الْمُسْلِمِينَ». [ر: ۹۱۱]

**قوله**: اضاحي: جمع د «اضحية» ده اوپه دې كښې څلورلغات دى

① اضحية (بضم الهمزة) ددې جمع (اضاحى) ده.

② اضاحية (بكسر الهمزة) ددې جمع هم (اضاحى) ده.

③ اضحاة په وزن د (ارطاة) ددې جمع (اضحى) راځي (وبه سمى يوم الاضحى)

④ ضحية په وزن د (غشية) ددې جمع (ضحايا) راځي [1]

[1]) اوګورئ لسان العرب: ج۱۹ ص۲۱۱) وعمدة القارى (ج۲۱ص۱۴۴) وشرح مسلم للنووى (ج۲ ص۱۵۳)

په لغت کښې اضحية هغه چيلئ ته وائي چې هغه د ضحوة يعنى څاښت په وخت کښې ذبح کولې شى.[1]

اصطلاح فقهه کښې د اضحية تعريف دا دې چې ‹ذبح حيوان مخصوص بنية القربة فى وقت مخصوص›[2]

**قربانى واجب ده که سنت؟** ① د امام ابو حنيفه رحمه الله په نيز قربانى په مالدار کس باندې واجب ده د امام مالک رحمه الله يو روايت هم د دې مطابق دې.[3]

② د امام شافعى او امام احمد او په احنافو کښې د صاحبينو رحمهما الله په نيز قربانى سنت ده.[4] د امام مالک يو قول هم د دې مطابق دې.[5]

د احضرات په لاندېنى احاديثو باندې استدلال کوى:

① د صحيح مسلم په روايت کښې دى ‹من اراد ان يضحى فدخل العشر، فلا ياخذ من شعره ولا بشرته شيا› په دې حديث کښې ئې قربانى په ارادې پورې معلق کړې ده حال دا چې واجب معلق بالاراده نشى کولې معلومه شوه چې قربانى سنت ده.[6]

خو دا استدلال ضعيف دې ځکه چې د ارادې اطلاق عدم وجوب لره مستلزم نه دې د امر واجب ادا کول هم په ارادې پورې معلق کولې شى لکه څنګه چې د حج په باره کښې دى ‹من اراد ان يحج فليعجل›[7] دلته د ارادې لفظ د اطلاق نه عدم وجوب مرادنه دې دغه شان په ‹من اراد ان يضحى› کښې هم مراد دا دې چې کوم کس د قربانئ اراده لرى برابره ده که هغه په ده باندې واجب وى او که نه وى نو هغه دې ويخته وغيره د ذوالحجې په اولنئ لسوورځو کښې نه کټ کوى د ‹اراد› لفظ د عموم د پاره استعمال شوې دې. د دې د پاره چې واجب او غيره واجب دواړه په دې کښې راشى.[8]

② د احضرات دويم استدلال د سنن دارقطنى په راويت سره کوى نبى صلى الله عليه وسلم فرمائيلى دى:

---

[1] عمدة القارى :(ج۲۱ص ۱٤٤) قال القسطلانى قال عياض سميت بذلک لانها تفعل فى الضحى وهو ارتفاع النهار فسميت بزمن فعلها (ارشاد السارى (ج ۱۲ص ۳۰۰) _

[2] اوګورئى الدر المختار کتاب الاضحيه : ج۵ص ۲۱۹،وفتح القدير کتاب الاضحيه: ج۸ص ٤۲٤)

[3] عمدة القارى :ج ۲۱ص ۱٤٤)واو جز المسالک کتاب الضحايا(ج۹ص۲۲۵) وشرح مسلم للنووى(ج۲ص۱۵۳)

[4] تکملة فتح الملهم(ج۳ص۵٤۷)_ وبداية المجتهد کتاب الضحايا باب حکم الضحايا(ج۱ص ٤۲۹) والمغنى لابن قدامة (ج۹ص۳٤۵) والمجموع شرح المهذب کتاب الاضاحى (ج۸ص ۳۵۰) _

[5] بدايع المجتهد کتاب الضحايا باب حکم الضحايا(ج۱ص ٤۳۹) والمجموع شرح المهذب (۳۵۰۱۸)_

[6] صحيح مسلم کتاب الاضاحى باب النهى فى من دخل عليه عشر ذى الحجة رقم الحديث ۱۹۷۷) (ج۳ص۱۵۶۵)_

[7] المغنى لابن قدامة کتاب الاضاحى (ج۹ص۳٤۵) _

[8] المغنى لابن قدامة کتاب الاضاحى (ج۹ص ۳٤۵)_

[9] بذل المجهود دتکملة فتح الملهم)

(ثلاث کتب علی وهن لکم تطوع: الوتر، والنحر، ورکعتا الفجر)[1]

خوداحدیث ضعیف دې چې قابل دحجت نه دې [2] اوعلی سبیل التسلیم دامام صاحب دطرفه ددې جواب دادې چې په دې حدیث کښې ..(کتبت) لفظ راغلې دې کوم چې دفرض دپاره راځی، یعنی دادرې څیزونه زمادپاره فرض دی اوستاسودپاره فرض نه دی نوپه دې سره دامت په حق کښې دفرضیت نفی کیږی دوجوب نفی نه کیږی دفرض اووجوب په مینځ فرق واضح دې [3]

③ ددې حضراتودریم استدلال دحضرت صدیق اکبراوفاروق اعظم رضی الله عنهما اثرباندې کیږی چې هغوی صرف یویادوه کاله قربانی کړې ده مستقل قربانی ئې نه ده کړې. [4]

ددې جواب داورکړې شوې دې چې قربانی په موسر(مالدار) واجبیږی اودا دواړه موسرنه ووځکه چې دواړوحضراتوبه دبیت المال نه په قدردکفایت وظیفه اخستله. دمالدارئ په اندازه نه ئې اخستله. [5]

د وجوب دلائل : ① په قرآن کریم کښې دی (فصل لربك وانحر)،، انحر،،(قربانی کوه) امردې اوامردوجوب دپاره ارځی [6] ددې تقاضاخوداده چې قربانی فرض خوچونکه دنحرپه تفسیر کښې نوراقوال هم شته، ددې وجې ددې په دلالت کښې ظنیت راغلو، نوددې نه صرف وجوب ثابیږی.

② دابن ماجه په مرفوع روایت کښې دی (من کان له سعة ولم یضح فلا یقربن مصلانا)[7] حاکم ددې حدیث تصحیح کړې ده [8] اوحافظ ابن حجر رحمه الله فرمائیلی دی (و رجاله ثقات)[9] په دې حدیث کښې داستطاعت باوجودد قربانئ نه کونکودپاره وعیدبیان شوې دې چې هغه دې زمونږ عیدګاه ته نه راځی اووعید په ترک دواجب باندې راځی.

③ حجة الوداع په موقع باندې نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل ((یاایها الناس علی کل اهل بیت فی کل عام اضحاة وعتیرة..(علی)) دوجوب دپاره راځی نوبیا، .عتیره،، خومنسوخ شوه خواضحیه په نسخ باندې څه دلیل نشته [10]

---

[1] سنن الدارقطنی، کتاب الوترباب صفة الوتروانه لیس بفرض.. الخ رقم الحدیث (ج۲_۱،۲۱)_

[2] فتح الباری(۱۰ص٤) _

[3] بذل المجهودکتاب الضحایا(ج۱۳ص۷) _

[4] بذل المجهودکتاب الضحایا(ج۱۳ص۶) _

[5] بذل المجهودکتاب الضحایا(ج۱۳ص۸) _

[6] تفسیر طبری (ج۳۰ص۲۱۱) _

[7] سنن ابن ماجه کتاب الاضاحی واجب ام لارقم الحدیث (۳۱۲۳) (ج ۲ص ۱۰٤٤)_

[8] فتح الباری (ج ٤ص ۱۰)_

[9] فتح الباری (ج ٤ص ۱۰)_

[10] فتح الباری (ج ٤ص ۱۰)_ بذل المجهودکتاب الضحایا(ج۱۳ص۷) _

عتیرۀ درجب په میاشت کښې قربانۍ ته وائی ددې تفصیل په عقیقه کښې تیرشوې دې

④ دحضرت ابن عمر رضی الله عنهما حدیث دې «اقام رسول الله ﷺ بالمدینة عشر سنین یضحی» داحدیث په مواظبت دلالت کوی اومواظبت بغیردترک نه دلیل دوجوب دې

**قوله قَالَ ابنُ عمرَ هِيَ سنة ومعروف :** حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما فرمائی چې قربانی سنت اونیکی ده علامه عینی رحمه الله فرمائی «المعروف اسم جامع لکل ماعرف من طاعة الله عزوجل والتقرب الیه والاحسان الی الناس، ولکل ماندب الیه الشرع ونهی عنه من المحسنات والمقبحات وهومن الصفات الغالبة ای امرمعروف بین الناس اذا روه، لاینکرونه» (۱)

دحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما داتعلیق حمادبن ابی سلمه موصولا نقل کړې دې (۲)

## باب قِسْمَةِ الإِمَامِ الأَضَاحِيَ بَيْنَ النَّاسِ

[۵۲۲۷] حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ فَضَالَةَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ يَحْيَى عَنْ بَعْجَةَ الْجُهَنِيِّ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ الْجُهَنِيِّ قَالَ قَسَمَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - بَيْنَ أَصْحَابِهِ ضَحَايَا، فَصَارَتْ لِعُقْبَةَ جَذَعَةٌ. فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ صَارَتْ جَذَعَةٌ. قَالَ «ضَحِّ بِهَا». [ر ۲۱۷۸]

نبی کریم ﷺ په حضرات صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې دقربانۍ څاروی تقسیم کړل. مالدارنو ته خوبه ئې دمال فئ نه ورکړې وی اوغریبانانوته دصدقې دمال نه. امام بخاری رحمه الله داباب قائم کړلواودقربانۍ داهمیت طرف ته ئې اشاره اوکړه چې دنبی کریم ﷺ په دې موقع دقربانۍ څاروی په صحابه کرامو کښې تقسیم کولودپاره وو. علامه عینی رحمه الله لیکی «وانما اراد البخاری، والله علم، ان اعطاء الشارع اضحیا لاصحابه دلیل علی تاکدها وندبهم الیها»

دبعجه بن عبدالله په بخاری کښې صرف دایوحدیث دې امام نسائی ابن حبان، علامه ذهبی اوحافظ ابن حجر رحمه الله ددۀ توثیق کړې دې په یوسل هجرئ کښې دوی وفات شوی دی (۳)

## ۳- باب: الأُضْحِيَّةِ لِلْمُسَافِرِ وَالنِّسَاءِ

[۵۲۲۸] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْقَاسِمِ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ - رضى الله عنها - أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - دَخَلَ عَلَيْهَا وَحَاضَتْ بِسَرِفَ، قَبْلَ أَنْ تَدْخُلَ مَكَّةَ وَهْىَ تَبْكِي فَقَالَ «مَا لَكِ أَنُفِسْتِ». قَالَتْ نَعَمْ. قَالَ «إِنَّ هَذَا أَمْرٌ كَتَبَهُ اللَّهُ عَلَى بَنَاتِ آدَمَ، فَاقْضِي مَا يَقْضِي الْحَاجُّ غَيْرَ أَنْ لاَ تَطُوفِي بِالْبَيْتِ». فَلَمَّا كُنَّا بِمِنًى

---

(۱) عمدة القاری: ج۲۱ص۱۴۴)

(۲) فتح الباری (ج۱ص۴)_

(۳) ددوی دحالاتو دپاره اوګورئ تاریخ البخاری الکبیر(جص۱۴۹) اکمال ابن ماکولا:(ج۱ص۳۳۶) والکاشف (ج۱ص۱۶۰) وتهذیب التهذیب (ج ۱ص ۴۷۳) وتهذیب الکمال (ج۴ص۱۹۱)_

أُتِيتُ بِلَحْمِ بَقَرٍ، فَقُلْتُ مَا هَذَا قَالُوا ضَحَّى رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - عَنْ أَزْوَاجِهِ بِالْبَقَرِ.[ر: ۲۹۰]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې امام بخاری رحمه الله په دې ترجمة الباب سره دهغه خلقو تردید کوی څوک چې وائی چې په ښځوباندې قرباني واجب نه ده[1]

علامه عيني رحمه الله فرمائی چې امام بخاری مقصدپه مسافراوښځوباندې دقربانۍ وجوب ثابتوی[2]

**د مسافرد پاره د قربانۍ حکم** : په مسافر باندې دقربانۍ دوجوب په باره کښې امامانو اختلاف دې

① دامام شافعی رحمه الله په نیزدمسافردپاره هم قربانی مسنون ده لکه څنګه چې دمقیم دپاره سنت ده[3]

② دامام ابوحنيفه رحمه الله په نیزقربانی صرف په مقیم باندې واجب ده په مسافرباندې نشته دامام مالک قول هم ددې مطابق دې[4]

**دښځو دقربانۍ حکم** : دویمه مسئله دښځودقربانۍ ده دامام ابوحنيفه رحمه الله په نیزبه ښځوباندې قربانی واجب ده اوامام شافعی وغیره خومطلقا دقربانۍ دوجوب قائل نه دی هغوی دښځودپاره دامستحب ګڼړی[5]

په ترجمة الباب اوحدیث کښې مناسبت نشته ځکه چې په حدیث ددم تمتع ذکردې داضحیه (قربانۍ) نه دې

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې په حدیث کښې چې دکومې بقره دذبح ذکردې داداضحیه (قربانۍ) په طورباندې وه.دهدی دم تمتع په طورباندې نه وه[6]

دلته خوحافظ دافرمائیلی دی خوپه کتاب الحج کښې هغوی دې خبرې ته ترجیح ورکړې ده چې داذبح دهدی دتمتع په حیثت سره وه،[7]

حضرت شیخ الحدیث مولانامحمدزکریا رحمه الله فرمائی چې دامام بخاری رحمه الله عام عادت داهم دې چې دوی دظاهری لفظ نه استدلال کوی اوچونکه په حدیث کښې لفظ دضحی راغلې دې ددې وجې هغوی په اضحیه باندې استدلال کوی دوی لیکی :

ان من داب الامام البخاری ایضا الاستدلال بظاهر اللفظ والوارد فی الحدیث لفظ ضحی»[8]

---

[1] فتح الباری (ج ۱۰ص ۶)_

[2] عمدة القاری (ج ۲۱ص ۱٤۶)_

[3] المجموع شرح المهذب باب الاضحية (ج۸ص ۳۸۳) _

[4] المجموع شرح المهذب باب الاضحية (ج۸ص ۳۸۳) _

[5] عمدة القاری (ج ۲۱ص ۱٤۶)_

[6] فتح الباری (ج ۱۰ص ۶۰) _

[7] الابواب والتراجم (ج۲ص ۹٤) _

[8] الابواب والتراجم (ج۲ص ۹٤) _

## ۴- باب ما يُشْتَهى مِنَ اللَّحمِ يومَ النَّحرِ

[٥٢٢٩] حَدَّثَنا صَدَقَةُ أَخْبَرَنا ابنُ عُلَيَّةَ عَنْ أَيُّوبَ عَنِ ابنِ سِيرِينَ عَنْ أَنَسِ بنِ مالِكٍ قالَ قالَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- يَوْمَ النَّحْرِ «مَنْ كانَ ذَبَحَ قَبْلَ الصَّلاةِ فَلْيُعِدْ». فَقامَ رَجُلٌ فَقالَ يا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ هٰذا يَوْمٌ يُشْتَهى فِيهِ اللَّحْمُ -وَذَكَرَ جِيرانَهُ- وَعِنْدِي جَذَعَةٌ خَيْرٌ مِنْ شاتَيْ لَحْمٍ. فَرَخَّصَ لَهُ فِي ذٰلِكَ، فَلا أَدْرِي أَبَلَغَتِ الرُّخْصَةُ مَنْ سِواهُ أَمْ لا، ثُمَّ انْكَفَأَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- إِلى كَبْشَيْنِ فَذَبَحَهُما، وَقامَ النّاسُ إِلى غُنَيْمَةٍ فَتَوَزَّعُوها أَوْ قالَ فَتَجَزَّعُوها. [ر: ٩١١]

**دترجمة الباب مقصد** : دحديث اوترجمة الباب مقصدواضح دي چې ديوم النحر (دلوئ اختر ورځ) كښې دغوښې خوراک هريوكس ته شوق وى خودامام بخارى رحمه الله ددې ترجمې نه مقصدغالبا ددې روايت بعضې طرقوكښې راغلى ديوې جملې تشريح ده دمسلم په روايات كښې هغه جمله داسې ده (من هذا يوما اللحم فيه مكروه) [۱] ددې جملې په تشريح كښې مختلف اقوال دى.

① بعضې محدثينو وئيلې دى (اللحم) دحاء په فتحې سره دباب سمع نه مصدردې (لحم لحما) ددې معنى دغوښې خوائش كول راځى مطلب داددې چې په دې ورځ دكور خلق بغير دقربانئ نه ساتل داسې چې هغوى دغوښې خوړلوخواهش پيداشى دامكروه دى ([۲])
امام بخارى دا باب قائم كړلواوددې ذكرشوې جملې تفسيرطرف ته اشاره كوى اګرچه علامه قرطبى فرمائيلى دى چې (لحم) بفتح الخاء، روايت صحيح نه دې ([۳])

② دويم قول داددې چې دلته مضاف محذوف دې اوتقديردعبارت داسې دې (طلب الحم فيه مكروه) يعنى په دې ورځ كښې غوښه غوښتل اوطلب كول مكروه دې ([۴])
خو داولنى قول تائيدددې.نه هم كيږى چې په بعضې رواياتوكښې (مقروم) لفظ راغلې دې او (قرم اشتهاء اللحم) دغوښې خواهش ته وائى ([۵])

**قوله** :ذكر جيرانه اي ذكر احتياج جيرانه : يعنى هغه دخپلوګاونډيانودفقراواحتياج ذكراوكړوچې مادقربانئ په كولوكښې ځكه جلتى اوكړه چې خپل كوراوګاونډيانوباندې زر غوښه اوخروم.

[۱] صحيح مسلم كتاب الاضاحى باب وقتها رقم الحديث (١٩٦١) ج٣ص١٥٥٢)_
[۲] شرح مسلم للنووى كتاب الاضاحى (ج٢ص ١٥٤) _
[۳] الابواب والتراجم (ج٢ص ٩٤)
[۴] شرح مسلم للنووى كتاب الاضاحى (ج٢ص ١٥٤) _
[۵] شرح مسلم للنووى كتاب الاضاحى (ج٢ص ١٥٤)

**قوله**: وَعِنْدِي جَذَعَةٌ خَيْرٌ مِنْ شَاتَيْ لَحْمٍ: يعنی ماسره دچیلئ یو بچې دې کوم چې ددواؤ چیلودغوښې نه بهتردې اوصحت منددې ـ

**قوله**: وَقَامَ النَّاسُ إِلَى غُنَيْمَةٍ فَتَوَزَّعُوهَا أَوْ قَالَ فَتَجَزَّعُوهَا: يعنی خلق چیلوته لاړل اوهغه ئې تقسیم کړې (دذبح کولوډپاره) یائې وئیلې دی دتجزع معنی ده ټکړې ټکړې کول دلته دې نه دذبح کولو دپاره دچیلوجداجدا کول مراد دی.

## ٥- باب مَنْ قَالَ الأَضْحَى يَوْمَ النَّحْرِ

[٥٢٣٠] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلاَمٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنِ ابْنِ أَبِي بَكْرَةَ عَنْ أَبِي بَكْرَةَ - رضى الله عنه - عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «الزَّمَانُ قَدِ اسْتَدَارَ كَهَيْئَتِهِ يَوْمَ خَلَقَ اللَّهُ السَّمَوَاتِ وَالأَرْضَ، السَّنَةُ اثْنَا عَشَرَ شَهْرًا، مِنْهَا أَرْبَعَةٌ حُرُمٌ، ثَلاَثٌ مُتَوَالِيَاتٌ ذُو الْقَعْدَةِ وَذُو الْحِجَّةِ وَالْمُحَرَّمُ، وَرَجَبُ مُضَرَ الَّذِي بَيْنَ جُمَادَى وَشَعْبَانَ، أَىُّ شَهْرٍ هَذَا». قُلْنَا اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. فَسَكَتَ حَتَّى ظَنَنَّا أَنَّهُ سَيُسَمِّيهِ بِغَيْرِ اسْمِهِ، قَالَ «أَلَيْسَ ذَا الْحِجَّةِ». قُلْنَا بَلَى. قَالَ «أَىُّ بَلَدٍ هَذَا». قُلْنَا اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. فَسَكَتَ حَتَّى ظَنَنَّا أَنَّهُ سَيُسَمِّيهِ بِغَيْرِ اسْمِهِ، قَالَ «أَلَيْسَ الْبَلْدَةَ». قُلْنَا بَلَى. قَالَ «فَأَىُّ يَوْمٍ هَذَا». قُلْنَا اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ، فَسَكَتَ حَتَّى ظَنَنَّا أَنَّهُ سَيُسَمِّيهِ بِغَيْرِ اسْمِهِ قَالَ «أَلَيْسَ يَوْمَ النَّحْرِ». قُلْنَا بَلَى. قَالَ «فَإِنَّ دِمَاءَكُمْ وَأَمْوَالَكُمْ - قَالَ مُحَمَّدٌ وَأَحْسِبُهُ قَالَ - وَأَعْرَاضَكُمْ عَلَيْكُمْ حَرَامٌ كَحُرْمَةِ يَوْمِكُمْ هَذَا، فِي بَلَدِكُمْ هَذَا فِي شَهْرِكُمْ، وَسَتَلْقَوْنَ رَبَّكُمْ فَيَسْأَلُكُمْ عَنْ أَعْمَالِكُمْ، أَلاَ فَلاَ تَرْجِعُوا بَعْدِي ضُلاَّلاً، يَضْرِبُ بَعْضُكُمْ رِقَابَ بَعْضٍ، أَلاَ لِيُبَلِّغِ الشَّاهِدُ الْغَائِبَ، فَلَعَلَّ بَعْضَ مَنْ يُبَلَّغُهُ أَنْ يَكُونَ أَوْعَى لَهُ مِنْ بَعْضِ مَنْ سَمِعَهُ - وَكَانَ مُحَمَّدٌ إِذَا ذَكَرَهُ قَالَ صَدَقَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - ثُمَّ قَالَ - أَلاَ هَلْ بَلَّغْتُ أَلاَ هَلْ بَلَّغْتُ». [ر: ٦٧]

**دقربانئ ورځې**: څوورځوپورې قربانئ جائزده په دې کښې داماما نو اختلاف دې

① دامام ابوحنیفه، امام مالک ا وامام احمد رحمهم الله په نیزددریوورځوپورې قربانی کیدې شی (۱)

② دامام شافعی رحمه الله په نیزترڅلورو ورځوپورې قربانی کیدې شی یوم النحراوددې نه پس درې ورځې (۲)

③ دابن سیرین، داودظاهری اوسعیدبن جبیر رحمهم الله په نیز دقربانئ صرف یوه ورځ یوم النحرده. امام بخاری رحمه الله دغه دااختیار کړې دې (۳)

---

(۱) عمدة القاری (ج۲۱ص۱٤٧) ونیل الاطار: کتاب المناسک، باب بیان وقت الذبح (ج ٥ص١٤٢)_

(۲) عمدة القاری (۲۱/۱٤٨) _

(۳) عمدة القاری (۲۱/۱٤٨) _

هغوی په حدیث باب باندې استدلال کړې دې په کوم کښې چې دی «الیس یوم النحر؟ قلنا بلی» په دې کښې «یوم» هغوی نحر طرف ته مضاف کړې ده او په «النحر» کښې لام لام دجنس دې یعنی دنحر طرف یوه ورځ ده[1]

خو دجمهورو دطرف نه ددې جواب دادې چې دلته د«النحر» نه نحر کامل مراددې لام دکمال دپاره په کثرت سره استعمالیږی[2]

دامام شافعی رحمه الله په نیزد قربانۍ څلورورځې دی دوی په صحیح ابن حبان کښې دحضرت جبیربن مطعم رضی الله عنه په روایت استدلال کوی چې نبی کریم ﷺ «کل فجاج منی منحر وفی کل ایام التشریق ذبح»[3]

خو داروایت عبدالرحمن بن ابی حسن دحضرت جبیر رضی الله عنه سره نه دې نقل شوې نو داحدیث منقطع شو[4]

ددې دویم استدلال په بیهقی کښې دحضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما په روایت باندې دې چې هغوی فرمائیلی دی «الاضحی ثلاثة ایام بعد یوم النحر»[5]

دائمه ثلاثة استدلال دحضرت علی رضی الله عنه په اثرباندې دې دوی فرمائیلی دی «ایام النحر ثلاثة ایام النحر ثلاثه ایام اولهن افضلهن» دحضرت ابن عباس اوحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهم نه هم دغه شان روایت منقول دې[6]

قال محمد واحسبه یعنی راوی دحدیث محمدبن سرین فرمائی چې زماخیال دې چې حضرت ابن ابی بکر رضی الله عنه په خپل حدیث کښې د«اعراضکم» لفظ هم فرمائیلي دې لکه چې د«دماءکم واموالکم» په باره کښې خوهغوی ته یقین دې او د«اعراضکم» په باره کښې ئې شک دې دامحمدبن سرین رحمه الله په «احسبه» سره ښکاره کړې دې.

## باب الأضحی والمنحر بالمصلی

[۵۲۳۱] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي بَكْرٍ الْمُقَدَّمِي حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ الْحَارِثِ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ عَنْ نَافِعٍ قَالَ كَانَ عَبْدُ اللَّهِ يَنْحَرُ فِي الْمَنْحَرِ. قَالَ عُبَيْدُ اللَّهِ يَعْنِي مَنْحَرَ النَّبِيِّ صلی الله علیه وسلم

[1] عمدة القاری (ج۲۱ص۱۴۸)
[2] عمدة القاری (ج۲۱ص۱۴۸)
[3] نیل الاوطار : کتاب المناسک، باب بیان وقت الذبح (ج۵ص۱۴۲) وعمدة القاری (ج۲۱ص۴۸) وسنن الکبری للبیقی، کتاب الضحایا باب من قال الاضحی جائز یوم النحر (ج۹ص۲۹۵)_
[4] نصب الرایة کتاب الحج باب الهدی (ج۳ص۱۶۲) واعلاء السنن (ج ۱۷ص ۲۳۴) وتلخیص الحبیر حافظ ابن حجر رحمه الله په دې کښې فرمائی (وهذا الزیادة بمحفوظة کتاب الضحایا (ج ٤ص ۱٤۲) و(ج۱ص ۲۱۶)_
[5] عمدة القاری وسنن بیهقی کتاب الضحایا (ج۹ص۹۶)_
[6] عمدة القاری ج۲۱ص۱۴۸)_

[۵۲۳۲] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ كَثِيرِ بْنِ فَرْقَدٍ عَنْ نَافِعٍ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ - رضي الله عنهما - أَخْبَرَهُ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَذْبَحُ وَيَنْحَرُ بِالْمُصَلَّى. [ر: ۹۳۹]

په دې باب کښې دقربانئ بيان دې. اوداهم بيان شوی دی چې دقربانئ ذبح کولوځائې عيدګاه ده، دترجمة الباب مقصد بيانوی، علامه عينی رحمه الله فرمائی:

والمقصود من هذه الترجمة بيان السنة في ذبح الامام وهو أن يذبح في المصلى لئلا يذبح أحد قبله ليذبحوا بعده بيقين وليتعلموا ايضا صفة الذبح فانه مما يحتاج فيه الى البيان[1]

دباب په رومبی حدیث کښې دی چې حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما به هغه ځائې کښې قربانی کوله چې کوم ځې کښې به چې حضرت نبی کريم صلى الله عليه وسلم ځناورذبح کولو.

## ۷ - بَاب فِي أُضْحِيَّةِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - بِكَبْشَيْنِ أَقْرَنَيْنِ وَيُذْكَرُ سَمِينَيْنِ

وَقَالَ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ سَمِعْتُ أَبَا أُمَامَةَ بْنَ سَهْلٍ قَالَ كُنَّا نُسَمِّنُ الْأُضْحِيَّةَ بِالْمَدِينَةِ، وَكَانَ الْمُسْلِمُونَ يُسَمِّنُونَ.

[۵۲۳۳][2] حَدَّثَنَا آدَمُ بْنُ أَبِي إِيَاسٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ صُهَيْبٍ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ - رضي الله عنه - قَالَ كَانَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - يُضَحِّي بِكَبْشَيْنِ وَأَنَا أُضَحِّي بِكَبْشَيْنِ.

[۵۲۳۴] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ أَبِي قِلَابَةَ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - انْكَفَأَ إِلَى كَبْشَيْنِ أَقْرَنَيْنِ أَمْلَحَيْنِ فَذَبَحَهُمَا بِيَدِهِ. تَابَعَهُ وُهَيْبٌ عَنْ أَيُّوبَ. وَقَالَ إِسْمَاعِيلُ وَحَاتِمُ بْنُ وَرْدَانَ عَنْ أَيُّوبَ عَنِ ابْنِ سِيرِينَ عَنْ أَنَسٍ. [۵۲۳۸، ۵۲۴۴، ۵۲۴۵، ۶۹۶۴، وانظر: ۵۲۴۱]

[۵۲۳۵] حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يَزِيدَ عَنْ أَبِي الْخَيْرِ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ - رضي الله عنه أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - أَعْطَاهُ غَنَمًا يَقْسِمُهَا عَلَى صَحَابَتِهِ ضَحَايَا، فَبَقِيَ عَتُودٌ فَذَكَرَهُ لِلنَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ «ضَحِّ أَنْتَ بِهِ». [ر: ۲۱۷۸]

---

[1] عمدة القاری ج۲۱ص۱۴۹)_

[2] الحديث اخرجه البخاری ايضا فيه رقم الحديث :۵۲۳۴) وايضا في باب من ذبح الاضاحی بيده (رقم الحديث: ۵۲۳۸).وايضا في وضع القدم صفع الذبيحه (رقم الحديث: ۵۲۴۴) وايضافی باب التكبيرعند الذبائح (رقم الحديث :۵۲۴۵) وايضافی باب من ذبح قبل الصلوة واعاد(۵۲۴۱).

**دترجمة الباب مقصد:** ددې ترجمة الباب دوه مقصدونه بیان کړې شوی دی.

① حضرت امام بخاری رحمه الله وئیل غواړی چې «کبش» یعنی دګډې قربانی افضله ده،امام ترمذی رحمه الله نه یوروایت هم نقل شوې دې «خیرالاضیة الکبش».

② دحضرت امام بخاری رحمه الله مقصد داهم کیدیشی چې دقربانئ ځناوردې ښه څورب وی.نوپه یوحدیث کښې دی چې «سمنوا ضحایاکم فانهاعلی الصراط مطایاکم» اګرچه داحدیث ضعیف دې،حضرت امام بخاری رحمه الله ترجمة الباب نه پس دحضرت ابوامامه رضی الله عنه حدیث ذکرکوی اودې طرفته اشاره فرمائی.

علامه ابن عابدین رحمه الله فرمائی که دغواحصه اوچیلئ دواړه په قیمت کښې اوغوښه کښې برابر وی نوبیا چلیئ افضل ده.ځکه چې وړه غوښه دغټې غوښې په مقابله کښې به ښه ګڼړلې شی. لیکن که دغوا دحصې غوښه زیاته وی نوبیاهغه افضل ده.ګډ دګډې نه افضل دې اوچیلې دچیلئ نه افضل دې،داپه هغه وخت کښې دی کله چې غوښه اوقیمت دواړه برابروی (۱)

**قوله:** <u>وقال یحیی بن سعید، سمعت اباامامة بن سهل</u>: داېومامه نوم اسعددې،اودې صحابی دې،حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم ددۀ نامه مبارکه اېښودې وه. اودبرکت دپاره ئې دعاکړې وه. ابن التین دوی په کبارویعنی تابعینو کښې شمیرکړې دې.(۲) داتعلیق ابونعیم موصولانقل کړې دې (۳)

**قوله:** <u>انکفاالی کبشین اقرنین املحین فذبحهما بیده</u>: په اصحاب صحاح کښې داحدیث صرف حضرت امام بخاری رحمه الله نقل کړې دې (۴)یعنی حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم دوه ښکروالا اوچتوګډانوطرفته متوجې شو.اودواړه ئې په خپل لاس سره ذبح کړل.

«انکفا ای مال وانعطف» متوجې شو «املحین» املح هوالذی فیه سوادوبیاض (۵)

جوهری وائی چې «الاملح الابیض یخالط بیاضه سواده» (۶) اوابوعبیده دکسائی نه نقل کړی دی چې «الاملح الذی فیه البیاض والسوادویکون البیاض اکثر»(۷)

**قوله:** <u>تابعه وهیب عن ایوب</u>: یعنی عبدالوهاب متابعت دوهیب بن خالد کړې دې.هغوی

---

(۱) ردالمختار کتاب الاضحیه : ج۵ص۲۷).
(۲) عمدة القاری : ج۲۱ص ۱۵۰) _
(۳) فتح الباری :ج۱۰ص۱۲) _
(۴) فتح الباری :ج۱۰ص۱۲)_
(۵) عمدة القاری : ج۲۱ص ۱۵۰) _
(۶) عمدة القاری : ج۲۱ص ۱۵۰) _و فتح الباری :ج۱۰ص۱۲)
(۷) عمدة القاری : ج۲۱ص ۱۵۱)، والنهایة الابن الاثیر:ج ٤ص ۳۵٤).

هم دايوب سختياني نه داروايت نقل كړې دې. اسماعيلي دامتابعت موصولانقل كړې دې.[1]

**قوله**: (وقال اسماعيل وحاتم وايوب عن ابن سيرين عن انس ﷺ: دلته (قال) اووئيل. حالانكه ددې نه مخكښې (تابعه) وئيلې دى. دواړو كښې فرق دې چې قول على السبيل المذاكره استعماليږى اومتابعت دحديث نقل كولو دپاره استعماليږى. داسماعيل بن عليه تعليق حضرت امام بخارى رحمه الله څلوربابونونه پس موصولانقل كړې دې. اوحاتم بن وردان حديث امام مسلم رحمه الله موصولا نقل كړې دې.[2]

**قوله**: فبقي عتود: عتود دچيلئ هغه بچى ته وائى چې هغه دكال نه وى، ابن بطال فرمائى چې عتود دچيلئ دپنځو مياشتو بچى ته وائى.[3]

## ٨- باب قَوْلِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- لأَبِي بُرْدَةَ «ضَحِّ بِالْجَذَعِ مِنَ الْمَعَزِ وَلَنْ تَجْزِيَ عَنْ أَحَدٍ بَعْدَكَ»

[٥٢٣٦] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا مُطَرِّفٌ عَنْ عَامِرٍ عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ - رضى الله عنهما - قَالَ ضَحَّى خَالٌ لِي يُقَالُ لَهُ أَبُو بُرْدَةَ قَبْلَ الصَّلاَةِ، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- «شَاتُكَ شَاةُ لَحْمٍ». فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ عِنْدِي دَاجِنًا جَذَعَةً مِنَ الْمَعَزِ. قَالَ «اذْبَحْهَا وَلَنْ تَصْلُحَ لِغَيْرِكَ». ثُمَّ قَالَ «مَنْ ذَبَحَ قَبْلَ الصَّلاَةِ فَإِنَّمَا يَذْبَحُ لِنَفْسِهِ، وَمَنْ ذَبَحَ بَعْدَ الصَّلاَةِ فَقَدْ تَمَّ نُسُكُهُ، وَأَصَابَ سُنَّةَ الْمُسْلِمِينَ».

تَابَعَهُ عُبَيْدَةُ عَنِ الشَّعْبِيِّ وَإِبْرَاهِيمَ. وَتَابَعَهُ وَكِيعٌ عَنْ حُرَيْثٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ. وَقَالَ عَاصِمٌ وَدَاوُدُ عَنِ الشَّعْبِيِّ عِنْدِي عَنَاقُ لَبَنٍ. وَقَالَ زُبَيْدٌ وَفِرَاسٌ عَنِ الشَّعْبِيِّ عِنْدِي جَذَعَةٌ. وَقَالَ أَبُو الأَحْوَصِ حَدَّثَنَا مَنْصُورٌ عَنَاقٌ جَذَعَةٌ. وَقَالَ ابْنُ عَوْنٍ عَنَاقٌ جَذَعٌ، عَنَاقُ لَبَنٍ.

[٥٢٣٧] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَلَمَةَ عَنْ أَبِي جُحَيْفَةَ عَنِ الْبَرَاءِ قَالَ ذَبَحَ أَبُو بُرْدَةَ قَبْلَ الصَّلاَةِ فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- «أَبْدِلْهَا». قَالَ لَيْسَ عِنْدِي إِلاَّ جَذَعَةٌ - قَالَ شُعْبَةُ وَأَحْسِبُهُ قَالَ - هِيَ خَيْرٌ مِنْ مُسِنَّةٍ. قَالَ «اجْعَلْهَا مَكَانَهَا، وَلَنْ تَجْزِيَ عَنْ أَحَدٍ بَعْدَكَ».

وَقَالَ حَاتِمُ بْنُ وَرْدَانَ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- وَقَالَ عَنَاقٌ جَذَعَةٌ. [ر: ٩٠٨]

**قوله**: (معز): چيلئ ته وائى او (ضان) ګډې ته. دچيلئ او ګډې دشپږو مياشتو بچې ته (جذع)

---

[1] عمدة القارى: ج٢١ص١٥١). و فتح البارى: ج١٠ص١٣).

[2] عمدة القارى: ج٢١ص١٥١).

[3] فتح البارى: ج١٠ص١٤). عمدة القارى: ج٢١ص١٥١).

وائی دچیلئ اوګډې دیوکال بچې ته «ثنی» وائی.داشان دغواد دوؤکالوبچی ته اوداوښ دپنځو کالو بچی ته «ثنی» وائی. اوددې نه کم عمروالاته «جذع» وائی.(١)
حضرات فقهاء کرام په دې خبره باندې اتفاق کوی چې دجذع قربانی صرف دګډصحیح ده.په چیلئ اواوښ اوغواکښې جذع کافی نه ده بلکه ددې «ثنی» کیدل ضروری دی.
داحضرات دحضرت ابوهریره رضي الله عنه دروایت نه استدلال کوی.حضرت نبی کریم فرمائیلی دی چې «نعمت الاضحية الجذع من الضان» (٢)
هم داشان دابن ماجه روایت کښې دی چې «يجوز الجذع من الضان ضحية» (٣).
داحضرات مسلم شریف کښې دحضرت جابر رضي الله عنه دروایت نه داستدلال کوی. «لاتذبحو االامسنة الا ان يعسر عليكم فتذبحوا جذعة من الضان» (٤)په دې کښې دجذعة دقربانئ اجازت ورکړې شوې دې، چې کله دمسنه حصول مشکل وی.
جمهوردحضرت جابر رضي الله عنه حدیث لره استحباب اوافضیلت باندې محمول کوی.(٥)
په حدیث باب کښې حضرت ابوبرده رضي الله عنه ته دچیلئ دجذعة اجازت ورکړې شوې دې. لیکن څنګه چې په حدیث کښې وضاحت دې،داددوی خصوصیت وو.حضرت نبی کریم صلى الله عليه وسلم فرمائیلی دی چې «ولن تجزئ عن احد بعدك»

**قوله: شاتك شاة لحم:** یعنی ستاچیلئ دغوښې چیلئ ده. قربانی ستاونه شوه «داجن الشاة التي تالف البيوت وتستانس وليس لها سن معين» یعنی هغه چیلئ چې په کورکښې اوپاللې شی هغې ته داجن وئیلې شی.(٦)

**قوله: تابعه عبيدة عن الشعبي وابراهيم:** یعنی عبیده بن ابن معتب دشعبی اوابراهیم نخعی نه دمطرف متابعت کړې دې.ابراهیم نخعی دامتابعت منقطع کړې دې. ځکه چې هغوی دهیڅ یوصحابي نه هیڅ روایت براه راست نه دې نقل کړې،ابن المدینی ددوی باره کښې پاتې شوې دې.(٧)

---

(١) مذکوره تفصیل دپاره اوګورئی بذل المجهود: ج١٣ص١٨، داتفسیردحنابله اوحنیفه په نیزدې. دشوافع اومالکیه په نیزجذع دیوکال بچې ته وائی.اوګورئی الاقناع للشربینی :ج٢ص٢٥٩، وشرح مسلم للابی :ج٥ص ٢٩٤، ومجمع بحارالانوارج١ص٣٣٥، والنهاية :٢٥٠. والمغنى لابن قدامة :ج٩ص٣٤٩)_
(٢) سنن الترمذی،كتاب الاضحى،باب ماجاءفى الجذع من الضان فى الاضحى:ج٤ص٤٧،رقم الحديث :١٤٩٩)
(٣) سنن ابن ماجه،كتاب الاضحى باب ماتجزئ من الضحى (رقم الحديث :٣١٣٩) ورجاله ثقات كمافى نيل الاوطار:ج ٤ص ٣٤٦).
(٤) فتح البارى :ج١٠ص١٨، اوداشان اوګورئ المغنى لابن قدامة :ج ص٣٤٨)_
(٥) صحيح مسلم،كتاب الاضحى،باب سنن الاضحية (:١٩٦٣) _
(٦) عمدة القارى : ج٢١ص١٥٢)،
(٧) تهذيب الكمال :ج٢ص٢٣٧،وطبقات ابن سعد :ج٦ص٢٧١،وتاريخ البخارى الكبير:ج١ص٣٣٤).

ابوحاتم فرمائی چې «ادرك انسا ولم يسمع منه»[1] يحيى بن معين فرمائی چې «مراسل ابراهيم احب الى من مراسيل الشعبى»[2] دعبيده بن معتب په بخاری کښې هم دابوتعليق دې.[3]

**قوله**: تابعه وكيع عن حريث عن الشعبي: يعنی وكيع دعبيده متابعت کړې دې. داابوالشيخ موصولا نقل کړې دی.[4]

**حريث بن عمرواسدى** ابن معين ددهٔ متعلق اوفرمائيل چې «لاشئ»[5]

ابوحاتم فرمائی چې «ضعيف الحديث»[6]

امام نسائی فرمائی چې «متروك الحديث»[7]

امام ترمذی اوابن ماجه ددوی روايات نقل کړی دی[8] په بخاری کښې ددوی صرف دايوتعليق دې[9]

**قوله**: وقال عاصم وداود عن الشعبي: عندي عناق لبن: په پورته روايت کښې دی چې حضرت ابوبرده نبی کريم ﷺ ته عرض کړې ووچې «ان عندی داجنا جذعة من المعز» اوعاصم اوداود په روايت کښې دی چې «عندی عناق لبن» پئ الفاظ دی.

**قوله**: عناق: دچيلئ هغه بچی ته وئيلې شی چې دهغې عمريوکال نه کم وی د«لبن» طرفته اشاره داضافت کوی اوددې صغرسنی طرفته اشاره کول مقصوددی.

داودی وائی چې عناق دمونث اومذکردواړو دپاره استعماليږی.

دعاصم اودداود داتعليق امام مسلم رحمه الله موصولا نقل کړې دې[10]

**قوله**: وَقَالَ زُبَيْدٌ وَفِرَاسٌ عَنِ الشَّعْبِيِّ عِنْدِي جَذَعَةٌ: زبيدبن الحارث اوفراس تعليق لره حضرت امام بخاری رحمه الله موصولا نقل کړې دې.

**قوله**: وَقَالَ أَبُو الأَحْوَصِ حَدَّثَنَا مَنْصُورٌ عَنَاقٌ جَذَعَةٌ: په دې تعليق کښې دوه لفظونه دی.هغه هم حضرت امام بخاری رحمه الله موصولا نقل کړې دې.

---

[1]) عمدة القاری : ج۲۱ص۱۵۲).
[2]) تهذيب الكمال :ج۲ص۲۳۷،وتهذيب التهذيب :ج۱ص۱۷۷، وسيرعلام النبلاء :ج٤ص۵٤۲).
[3]) فتح الباری ج۱۰ص۲۰)
[4]) فتح الباری ج۱۰ص۲۰) _
[5]) الجرح والتعديل :۳الترجمة: ۱۱۷۹، وتهذيب الكمال :ج۵ص۵٦۳، الترجمة ۱۱۷۳).
[6]) الجرح والتعديل :۳الترجمة: ۱۱۷۹،
[7]) ضعفاء الحديث للنسائی،الترجمة : ۱۲۰، وتهذيب الكمال :ج۵ص۵٦٤) _
[8]) تهذيب الكمال ج۵ص۵٦۵) _
[9]) عمدة القاری:ج۲۱ص۱۵۲)_
[10]) عمدة القاری:ج۲۱ص۱۵۲)_

**قوله**: وَقَالَ ابْنُ عَوْنٍ عَنَاقٌ جَذَعٌ، عَنَاقُ لَبَنٍ: په دې تعليق كښې دوه الفظونه جمع شوى دى. (عناق او جذع) موصوف صفت دى او (عناق لبن) مركب اضافى دې. حضرت امام بخارى رحمه الله دا په كتاب الايمان كښې موصولانقل كړې دى.

**قوله**: وَقَالَ حَاتِمُ بْنُ وَرْدَانَ.........عَنَاقٌ جَذَعَةٌ: په دې كښې عناق اوجذعة دوه لفظونه استعمال شوى دى په تركيب كښې (جذعة) د (عناق) دپاره عطف دې امام مسلم رحمه الله دا تعليق موصولانقل كړې دې.(۱)

## ۹- بَاب مَنْ ذَبَحَ الأَضَاحِيَ بِيَدِهِ.

[۵۲۳۸] حَدَّثَنَا آدَمُ بْنُ أَبِي إِيَاسٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ أَنَسٍ قَالَ ضَحَّى النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- بِكَبْشَيْنِ أَمْلَحَيْنِ، فَرَأَيْتُهُ وَاضِعًا قَدَمَهُ عَلَى صِفَاحِهِمَا يُسَمِّي وَيُكَبِّرُ، فَذَبَحَهُمَا بِيَدِهِ. [ر: ۵۲۳۳]

قربانى په خپل لاس سره ذبح كول مندوب اوبهتردى. په دې شرط چې دذبح طريقه ورځى. خپله په خپل لاس سره ذبح كول شرط نه دى. حضرت نبى كريم ﷺ په خپل لاس سره دوه ګډان ذبح كړى وو. لكه څنګه چې په حديث باب كښې دى. دمالكيه په يوروايت كښې پخپله ذبح كول شرط دى.(۲)

**قوله**: صِفَاحِهِمَا: داد صفحة جمع ده (وصفحة كل شئ جانبه.

علامه عينى رحمه الله يو اشكال اودهغې جواب تحرير كوى اوفرمائى چې:

(وقيل: الذابح لايضع رجله الاعلى صفحة فلم قال: على صفاحهما واجيب لعله على مذهب من قال ان اقل الجمع اثنان كقوله تعالى (فقد صغت قلوبكما) فكانه قال: صفحتيهما واضافة المثنى الى المثنى تفيد التوزيع فكان معناه وضع رجله على صفحة كل منهما والحكمة فيه التقوى على الاظهار عليها ويكون اسرع لموتها وليس ذالك من تعذيبها المنهى عنه اذ لايقدر على ذبحها الابعتذيبها))(۳)

يعنى لفظ (صفاح) جمع دې اودا مفردذكركول پكاردى ځكه چې ذبح كونكى ددې په يوطرف باندې قدم ايږدى. ددې جواب وركړې شوچې دجمع صيغه ددواوؤدپاره استعماليږى ځكه چې دبعضې عالمانوپه نيزدوه اقل جمع ده لكه څنګه چې دقران پاك په آيت مبارك كښې دى چې (فقد صغت قلوبكما) اوپه دې كښې (قلوب) جمع ده اوددې نه دوه قلب مراد دى. اود تثنيه اضافت چې كله دتثنيه طرفته وى نودادتوزيع اوتقسيم فائده وركوى. يعنى چې

---

۱) عمدة القارى: ۲۱ص ۱۵٤)_
۲) عمدة القارى: ۲۱ص ۱۵٤)_
۳) عمدة القارى: ۲۱ص ۱۵٤)_

دوه څیزونه دواړ څیزونو طرفته منسوب کړې شی نو هریو حصه کښې به یو یو رازی. دلته (صفحتین) تثنیه دوه کبشین طرفته منسوب کړې شوې ده نو د هر کبش حصه کښې یو صحفه راغله او معنی داشوه چې دوی په هریو صحفه باندې قدم کیخودو. داشان قدم ایښودو سره دځناور مرګ زر واقع کیږی زر. داپه هغه تعذیب حیوان کښې داخل نه وی چې دکوم ممانعت کړې شوې دې. ځکه چې ځناور ذبح کولو سره د دارنګ تعذیب نه خلاصی نشته.

## (۱۰) بَابٌ مَنْ ذَبَحَ ضَحِيَّةَ غَيْرِهِ.

وَأَعَانَ رَجُلٌ ابْنَ عُمَرَ فِي بَدَنَتِهِ. وَأَمَرَ أَبُو مُوسَى بَنَاتِهِ أَنْ يُضَحِّينَ بِأَيْدِيهِنَّ.

[۵۲۳۹] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْقَاسِمِ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ - رضي الله عنها - قَالَتْ دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - بِسَرِفَ وَأَنَا أَبْكِي، فَقَالَ «مَا لَكِ أَنَفِسْتِ». قُلْتُ نَعَمْ. قَالَ «هَذَا أَمْرٌ كَتَبَهُ اللَّهُ عَلَى بَنَاتِ آدَمَ اقْضِي مَا يَقْضِي الْحَاجُّ غَيْرَ أَنْ لاَ تَطُوفِي بِالْبَيْتِ». وَضَحَّى رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - عَنْ نِسَائِهِ بِالْبَقَرِ. [ر: ۲۹۰]

حضرت امام بخاری رحمه الله داباب راوړو او اشاره فرمائی چې سابقه باب کښې په خپل لاس سره ذبح کولو چې کومه طریقه ذکرشوې ده. هغه دقربانئ دصحت دپاره شرط نه ده. هرڅوک ددۀ دطرفنه ذبح کولې شی [۱] البته داسې صورت کښې مندوب هم دادی چې قربانی کولو والا پخپله په دې موقع حاضروی.

حضرت نبی کریم ﷺ حضرت فاطمه رضي الله عنها ته فرمائیلی وو چې قومی الی اضحیتك فاشهدیها فانه یغفرلك عند اول قطرة تقطر من دمها كل ذنب عملتیه» [۲]

**قوله**: أَعَانَ رَجُلٌ ابْنَ عُمَرَ فِي بَدَنَتِهِ: حضرت ابن عمر رضي الله عنهما دبدنه قربانی کوله. یو سړی دوی سره مدداوکړو. کله چې په قربانئ کښې تعاون کولو اودچانه مدداخستل جائزدی نو نائب جوړول هم جائزدی. داشان ددې تعلیق مطابقت ددې باب نه واضح کیږی [۳]. داتعلیق عبدالرزاق موصولا نقل کړې دې [۴]

**قوله**: وَأَمَرَ أَبُو مُوسَى بَنَاتِهِ أَنْ يُضَحِّينَ بِأَيْدِيهِنَّ: ددې اثر ترجمة الباب سره هیڅ مناسبت نشته دې بلکه دترجمة الباب نه بلکل برعکس دې ځکه چې په ترجمة الباب کښې په قربانئ کښې دنیابت مسئله بیان شوې ده، حالانکه په دې کښې پخپله دقربانئ کولو حکم دې [۵]

---

[۱] الابواب والتراجم: ج۲ص۹۵ _

[۲] المستدرک للامام الحاکم کتاب الاضحی: ج٤ص۲۲۲)-

[۳] فتح الباری: ج۱۰ص۲۳)_

[۴] فتح الباری: ج۱۰ص۲۳)_

[۵] فتح الباری: ج۱۰ص۲۳)_

## ١١ باب: الذَّبحِ بَعدَ الصَّلاَةِ

[٥٢٤٠] حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بنُ المِنهَالِ حَدَّثَنَا شُعبَةُ قَالَ أَخبَرَنِي زُبَيدٌ قَالَ سَمِعتُ الشَّعبِيَّ عَنِ البَرَاءِ -رضي الله عنه- قَالَ سَمِعتُ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- يَخطُبُ فَقَالَ «إِنَّ أَوَّلَ مَا نَبدَأُ مِن يَومِنَا هَذَا أَن نُصَلِّيَ، ثُمَّ نَرجِعَ فَنَنحَرَ، فَمَن فَعَلَ هَذَا فَقَد أَصَابَ سُنَّتَنَا، وَمَن نَحَرَ فَإِنَّمَا هُوَ لَحمٌ يُقَدِّمُهُ لأَهلِهِ، لَيسَ مِنَ النُّسُكِ فِي شَيءٍ». فَقَالَ أَبُو بُردَةَ يَا رَسُولَ اللَّهِ ذَبَحتُ قَبلَ أَن أُصَلِّيَ، وَعِندِي جَذَعَةٌ خَيرٌ مِن مُسِنَّةٍ. فَقَالَ «اجعَلهَا مَكَانَهَا، وَلَن تَجزِيَ أَو تُوفِيَ عَن أَحَدٍ بَعدَكَ». [ر: ٩٠٨]

دقربانۍ وخت داختردمونځ نه پس شروع کيږی په دې باب کښې هم داوخت بيانول مقصود دی. لکه څنګه چې په روستی باب کښې تفصيل رازی.

روايت باب کښې حضرت براء بن عازب رضی الله عنه فرمائی چې مادحضرت نبی کريم ﷺ نه په خطبه کښې واوريدل چې حضرت نبی عليه السلام اوفرمائيل چې نن ورځ به مونږ اول مونځ کوؤبيابه واپس څواوقربانی به کوؤ، چې چاداسې اوکړل نوهغه سنت طريقه اوموندو اوچې چا (دمونځ نه مخکښې قربانی اوکړه نوهغه دخپل کوروالودپاره دغوښې انتظام اوکړو. په قربانۍ کښې ددهٔ هيڅ حصه نشته دې. ابوبرده عرض اوکړوچې يارسول الله ﷺ چې ماخودمونځ نه مخکښې قربانی اوکړه اوماسره دچيلۍ يوجذعه (دشپږومياشتوبچې) شته دې چې دمسنه (ديوکال) دبچې نه بالکل بهتردې، حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې ته هغه دقربانۍ په بدله کښې ذبح کړه اوستانه پس به هيچاد پاره کافی نه وی.

## ١٢-باب مَن ذَبَحَ قَبلَ الصَّلاَةِ أَعَادَ.

[٥٢٤١] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بنُ عَبدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا إِسمَاعِيلُ بنُ إِبرَاهِيمَ عَن أَيُّوبَ عَن مُحَمَّدٍ عَن أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «مَن ذَبَحَ قَبلَ الصَّلاَةِ فَليُعِد». فَقَالَ رَجُلٌ هَذَا يَومٌ يُشتَهَى فِيهِ اللَّحمُ - وَذَكَرَ مِن جِيرَانِهِ فَكَأَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - عَذَرَهُ - وَعِندِي جَذَعَةٌ خَيرٌ مِن شَاتَينِ. فَرَخَّصَ لَهُ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - فَلاَ أَدرِي بَلَغَتِ الرُّخصَةُ أَم لاَ، ثُمَّ انكَفَأَ إِلَى كَبشَينِ - يَعنِي فَذَبَحَهُمَا - ثُمَّ انكَفَأَ النَّاسُ إِلَى غُنَيمَةٍ فَذَبَحُوهَا. [ر: ٩١١، ٥٢٣٣]

[٥٢٤٢] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعبَةُ حَدَّثَنَا الأَسوَدُ بنُ قَيسٍ سَمِعتُ جُندَبَ بنَ سُفيَانَ البَجَلِيَّ قَالَ شَهِدتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - يَومَ النَّحرِ فَقَالَ «مَن ذَبَحَ قَبلَ أَن يُصَلِّيَ فَليُعِد مَكَانَهَا أُخرَى، وَمَن لَم يَذبَح فَليَذبَح». [ر: ٩٤٢]

[٥٢٤٣] حَدَّثَنَا مُوسَى بنُ إِسمَاعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَن فِرَاسٍ عَن عَامِرٍ عَنِ البَرَاءِ قَالَ صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - ذَاتَ يَومٍ فَقَالَ «مَن صَلَّى صَلاَتَنَا

وَاسْتَقْبَلَ قِبْلَتَنَا، فَلَا يَذْبَحْ حَتَّى يَنْصَرِفَ». فَقَامَ أَبُو بُرْدَةَ بْنُ نِيَارٍ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ فَعَلْتُ. فَقَالَ «هُوَ شَيْءٌ عَجَّلْتَهُ». قَالَ فَإِنَّ عِنْدِي جَذَعَةً هِيَ خَيْرٌ مِنْ مُسِنَّتَيْنِ آذْبَحُهَا قَالَ «نَعَمْ، ثُمَّ لَا تَجْزِي عَنْ أَحَدٍ بَعْدَكَ». قَالَ عَامِرٌ هِيَ خَيْرُ نَسِيكَتِهِ.[ر: ۹۰۸]

**دقربانۍ وخت** : حضرت امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې دقربانۍ وخت بیان کړې دې دقربانۍ په وخت کښې دائمه اختلاف دې.

① دحضرات حنيفه په نيزپه ښارونوکښې دقربانۍ وخت داخترد مونځ نه پس دې اوپه کلوکښې دصبح صادق دراختونه پس شروع کيږي.(١)

② دحضرات مالکيه په نيزدامام ددقربانۍ کولونه پس دعام سړی دقربانۍ وخت شروع کيږي، که چادامام دقربانئی نه مخکښې څناورذبح کړو نوددوی په نيزدوباره به قرباني کوی.(٢)

③ دحضرت امام شافعی رحمه الله په نيزچې کله دنمر د ختونه پس داخترمونځ کړې وی اوکه نه.(٣) دحضرت امام احمدبن حنبل رحمه الله يوروايت هم ددې مطابق دې.(٤)

احاديث باب دحنيفه دلائل دی. دحضرت امام بخاری رحمه الله رجحان هم دې طرفته معلوميږي.

**قوله**: وَذَكَرَ هَنَةً مِنْ جِيرَانِهِ: (هنة) نه حاجت مراد دې. يعنى هغوی دخپلو ګاونډيانو فقر او احتياج بيان کړوچې هغوی دغوښې حاجت مندوو. ددې وجې ئې زرقرباني اوکړه.

**قوله**: عذرة: يعنى حضرت نبی کريم صلی الله عليه وسلم هغه لره معذوره اوګرزولو، (عذر) دباب ضرب نه دې، په معنى دعذرقبلول.

**قوله**: ثُمَّ لَا تَجْزِي عَنْ أَحَدٍ بَعْدَكَ: دااجازت په حضرات صحابه کراموکښې يوحضرت ابوبرده رضی الله عنه ته ورکړې شوې وواويوحضرت عقبه بن عامر رضی الله عنه ته چې دهغوی حديث تيرشويدی.(٥)

**قوله**: قَالَ عَامِرٌ هِيَ خَيْرُ نَسِيكَتِهِ: دحديث راوی حضرت عامرشعبی رضی الله عنه فرمائی چې داجذعه دابوبرده بهترينه قربانی وه. په دې باندې اشکال کيږي چې (خير) داسم تفضيل صيغه ده. نوددې معنی ده چې دويمه قربانی داولی قربانۍ نه بهتروه. اواوله ذبح شرعی لحاظ سره قربانی نه وه. ددې جواب ورکړې شوچې اول ته اګرچه حقيقت کښې قربانی وئيل درست نه دی ليکن صورة دې ته قربانی وئيلې شی. علامه عينی ليکی چه، قيل: اسم التفضيل

---

(١) بذل المجهود کتاب الضحايا. باب مايجوزفی الضحايا من السن: ج١٣ص٢٣)_

(٢) الشرح الصغير: ج١ص٩٩) _

(٣) المغنی لابن قدامة: ج٩ص٣٥٨) _

(٤) المغنی لابن قدامة: ج٩ص٣٥٨) _

(٥) صحيح مسلم: (مع التکملة): ج٣ص٥٦٠)_

یقتضی الشرکة والذبیحة الاولی لم تکن نسیکة اوجیب بانه وان وقعت لحم شاة له فیها ثواب لکونه قاصدا جبران الجیران وهی ایضا عبادة اوصورتها کانت صورة النسیکة(۱)

## ۱۳- بَاب وَضْعِ الْقَدَمِ عَلَى صَفْحِ الذَّبِيحَةِ

[۵۲۴۴] حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ حَدَّثَنَا أَنَسٌ - رضی الله عنه - أَنَّ النَّبِيَّ - صلی الله علیه وسلم - كَانَ يُضَحِّي بِكَبْشَيْنِ أَمْلَحَيْنِ أَقْرَنَيْنِ، وَوَضَعَ رِجْلَهُ عَلَى صَفْحَتِهِمَا، وَيَذْبَحُهُمَا بِيَدِهِ. [ر: ۵۲۳۳]

## ۱۴- بَاب التَّكْبِيرِ عِنْدَ الذَّبْحِ

[۵۲۴۵] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ ضَحَّى النَّبِيُّ - صلی الله علیه وسلم - بِكَبْشَيْنِ أَمْلَحَيْنِ أَقْرَنَيْنِ، ذَبَحَهُمَا بِيَدِهِ، وَسَمَّى وَكَبَّرَ وَوَضَعَ رِجْلَهُ عَلَى صِفَاحِهِمَا. [ر: ۵۲۳۳]

## ۱۵- بَاب إِذَا بَعَثَ بِهَدْيِهِ لِيُذْبَحَ لَمْ يَحْرُمْ عَلَيْهِ شَيْءٌ

[۵۲۴۶] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيلُ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ مَسْرُوقٍ أَنَّهُ أَتَى عَائِشَةَ، فَقَالَ لَهَا يَا أُمَّ الْمُؤْمِنِينَ إِنَّ رَجُلاً يَبْعَثُ بِالْهَدْيِ إِلَى الْكَعْبَةِ، وَيَجْلِسُ فِي الْمِصْرِ، فَيُوصِي أَنْ تُقَلَّدَ بَدَنَتُهُ، فَلاَ يَزَالُ مِنْ ذَلِكَ الْيَوْمِ مُحْرِمًا حَتَّى يَحِلَّ النَّاسُ. قَالَ فَسَمِعْتُ تَصْفِيقَهَا مِنْ وَرَاءِ الْحِجَابِ فَقَالَتْ لَقَدْ كُنْتُ أَفْتِلُ قَلاَئِدَ هَدْيِ رَسُولِ اللَّهِ - صلی الله علیه وسلم - فَيَبْعَثُ هَدْيَهُ إِلَى الْكَعْبَةِ، فَمَا يَحْرُمُ عَلَيْهِ مِمَّا حَلَّ لِلرِّجَالِ مِنْ أَهْلِهِ، حَتَّى يَرْجِعَ النَّاسُ. [ر: ۱۶۰۹]

دحضرت امام بخاری رحمه الله مقصد ددې ترجمة الباب نه دامسئله بیانول دی که څوک سړې دخپلې هدی څناورحرم طرفته لیږی نو په ده باندې هیڅ څیزنه حرامیږی. یعنی دهدئی لیږلوپه وجه داحرام پابندئی په ده باندې نه لږی. هدی هغه څناورته وئی چې هغه دذبح کولودپاره حرم ته لیږلې شی.

په حدیث باب کښې دحضرت عائشه رضی الله عنها نه حضرت مسروق رحمه الله تپوس کوی چې یوسړی خانه کعبې طرفته هدی لیږی اوخپله په خپل ښار کښې ناست وی، اووصیت کوی ددهٔ د قربانئ دځناور په غاړه کښې دې قلاده واچولې شی، اوددې ورځې نه دخلقو دحلالیدو پورې دې محرم جوړیږی (نودداسې سړی خپل ځان په حالت داحرام کښې کنړل څنګه دی؟). د مسروق بیان دې چې مادپردې نه دې طرفته دحضرت عائشه رضی الله عنها د لاسونو پړقولو آواز واوریدو (هغوی ډیردتعجب په طوردې سړی په حالت باندې افسوس اوکړواویولاس ئې په

(۱) عمدة القاری: ج۲۱ص۱۵۷).

بل لاس باندې اووهلو، اوې فرمائيل چې مابه رسول الله ﷺ دهدی دځناورپه غاړه کښې هاراچولو.بیابه حضرت نبی کریم ﷺ خپله هدی خانه کعبې طرفته لیږله.اوپه حضرت نبی کریم ﷺ به هیڅ هغه څیزنه حرامیدوکوم چې به سړوباندې دخپلوبیبیانونه حلال وی. تردې پورې چې خلق به واپس شو.مقصدداووچې داشان دهدی لیږلوسره سړې محرم نه جوړیږی.

حضرت امام بخاری ﷺ داباب قائموی اوپه هغه خلقوباندې ردکوی چې کوم وائی چې هدی حرم طرفته لیږلوسره سړې محرم کیږی.حضرت ابن عمر رضی الله عنه اوحضرت ابن عباس رضی الله عنه نه داقول منقول دې.(۱) لیکن دجمهورومسلک هغه دې کوم چې حضرت امام بخاری رحمه الله بیان کړې دې.(۲)

## ۱۶-بَاب مَا يُؤْكَلُ مِنْ لُحُومِ الأَضَاحِي وَمَا يُتَزَوَّدُ مِنْهَا.

[۵۲۴۷]حَدَّثَنَا عَلِي بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ عَمْرٌو أَخْبَرَنِي عَطَاءٌ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ - رضی الله عنهما - قَالَ كُنَّا نَتَزَوَّدُ لُحُومَ الأَضَاحِي عَلَى عَهْدِ النَّبِي - صلى الله عليه وسلم - إِلَى الْمَدِينَةِ، وَقَالَ غَيْرَ مَرَّةٍ لُحُومَ الْهَدْيِ.[ر: ۱۶۳۲]

**دقربانئ غوښه کله خوړلې شی؟**: دقربانئ غوښه دترڅوورځوپورې خوړلې شی؟ په دې کښې دائمه اربعه اوجمهورعالمانومسلک دادې چې په دې سلسله کښې دورځوهیڅ تحدیدنشته دې ترکومې پورې چې خوری نوخوړلې شی.(۳)

دعبدالله بن واقداوبعضې ظاهریه په نیزددریوورځونه زیات ذخیره کول دقربانئ غوښه خوړل درست نه دی،(۴)

ددوی استدلال ددې روایتونوباندې دې چې په کوموکښې چې ددریوورځونه زیات دذخیره کولوممانعت راغلې دې،لکه امام مسلم رحمه الله دحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه په طریق سره دحضرت نبی کریم ﷺ نه دا ارشادنقل کړې دې چې حضرت نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی چې «لایاکل احدکم من لحماضحیته فوق ثلاثة ایام»(۵)

خوجمهوردامنسوخ ګرځوی لکه څنګه چې دباب په احادیثوکښې تصریح موجوده.

[۵۲۴۸]حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي سُلَيْمَانُ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ عَنِ الْقَاسِمِ أَنَّ ابْنَ خَبَّابٍ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا سَعِيدٍ يُحَدِّثُ أَنَّهُ كَانَ غَائِبًا، فَقَدِمَ فَقُدِّمَ إِلَيْهِ لَحْمٌ. قَالَ وَهَذَا

---

(۱) عمدة القاری ج۲۱ص۱۵۸)_

(۲) عمدة القاری ج۲۱ص۱۵۸)_

(۳) عمدة القاری ج۲۱ص۱۵۸)_

(۴) عمدة القاری ج۲۱ص۱۵۸)_

(۵) صحیح مسلم،کتاب الاضحی باب بیان ماکان من النهی عن اکل لحوم الاضحی بعد ثلاث فی اول الاسلام...۱۹۶۹)

مِنْ لَحْمِ ضَحَايَانَا. فَقَالَ أَخِّرُوهُ لاَ أَذُوقُهُ. قَالَ ثُمَّ قُمْتُ فَخَرَجْتُ حَتَّى آتِيَ أَخِي قَتَادَةَ - وَكَانَ أَخَاهُ لأُمِّهِ، وَكَانَ بَدْرِيًّا - فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لَهُ فَقَالَ إِنَّهُ قَدْ حَدَثَ بَعْدَكَ أَمْرٌ. ار: ٣٧٧٥]

دباب په دې رومبې حديث كښې حضرت جابر رضي الله عنه فرمائى چې مونږ دحضرت نبى كريم ﷺ په زمانه كښې مدينې ته دتلو وخت پورې به ذخيره كوله. ددې نه معلوم شو چې ددريو ورځونه زياته دقربانۍ غوښه ايښودلې شى.

ددې حديث سند ټول رجال مدنى دى. په دې كښې درې تابعي يحى بن سعيد رحمه الله، قاسم بن محمد رحمه الله اوعبدالله بن حباب رحمه الله اودوه صحابه كرام رضي الله عنهم دى، حضرت ابوسعيد رضي الله عنه اوحضرت قتاده بن نعمان رضي الله عنه (١)

په روايت كښې ابوسعيد خدرى رضي الله عنه چرته په سفرباندې لاړل. چې واپس شونو دوى ته غوښه كينودې شوه اواوويلې شوچې دازمونږ دقربانۍ غوښه ده. هغوى اووئيل چې دالرې كړه څه په اونه څكم. حضرت ابوسعيد رضي الله عنه فرمائى چې څه اودريدم اوروان شوم. اوخپل رور ابوقتاده رضي الله عنه لره ورغلم هغه ددۀ ناخاكه رور وو. اوبدرى وو. ماهغه ته ټوله واقعه بيان كړه نوهغوى اووئيل چې ستا (دتلونه پس) بيانوې حكم راغلې دې (اوممانعت سابقه منسوخ شوې دې)

**قوله**: فَخَرَجْتُ حَتَّى آتِيَ أَخِي اباقَتَادَةَ - وَكَانَ أَخَاهُ لأُمِّهِ: په دې كښې د (ابا) لفظ درست نه دې. صحيح روايت (اخى قتاده) دې يعنى خپل ناخكه رورقتاده بن نعمان رضي الله عنه لره راغلو. قتاده بدرى صحابى رضي الله عنه وواو دحضرت اوبوسعيد ناخكه رورو. ددوى دمور انيسه بنت ابى خارجه وو (٢)

**قوله**: وَكَانَ بَدْرِيًّا - فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لَهُ فَقَالَ إِنَّهُ قَدْ حَدَثَ بَعْدَكَ أَمْرٌ: ددريو ورځونه پس دقربانۍ دغوښې چې كوم ممانعت وو. هغه منسوخ شوې دې، مسنداحمد كښې روايت كښې تفصيل دې، حضرت ابوسعيد (فرمائى چې:

(كان رسول الله (ص) قد نهانا ان كل لحوم نسكنا فوق ثلاث، قال: فخرجت فى سفر ثم قدمت على اهلى وذالك بعد الاضحى بايام فاتتنى صاحبتى بسلق قد جعلت فيه قديدا فقالت هذا من ضحايانا، فقلت له اولم ينهنا قالت انه قد رخص للناس بعد ذالك فلم اصدقها حتى بعث الى اخى قتادة بن النعمان..... (٣)

[٥٢٤٩] حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الأَكْوَعِ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «مَنْ ضَحَّى مِنْكُمْ فَلاَ يُصْبِحَنَّ بَعْدَ ثَالِثَةٍ وَفِي بَيْتِهِ مِنْهُ شَىْءٌ

---

(١) عمدة القارى، ج٢١ص١٥٨)_

(٢) فتح البارى: ج١٠ص٣٠)وعمدة القارى، ج٢١ص١٥٨)_

(٣) عمدة القارى، ج٢١ص١٥٨)_

». فَلَمَّا كَانَ الْعَامُ الْمُقْبِلُ قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ نَفْعَلُ كَمَا فَعَلْنَا عَامَ الْمَاضِي قَالَ « كُلُوا وَأَطْعِمُوا وَادَّخِرُوا فَإِنَّ ذَلِكَ الْعَامَ كَانَ بِالنَّاسِ جَهْدٌ فَأَرَدْتُ أَنْ تُعِينُوا فِيهَا ».

حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې په تاسوکښې کوم کس قربانی اوکړی، هغه دې درې ورځې پس په دې حال کښې نه صباکوی چې دده په کورکښې دقربانۍ غوښې نه څه وی، هرکله چې بل کال راغلونوخلقوعرض اوکړوچې یارسول الله ﷺ آیامونږ.خلق هغه شان اوکړو څنګه چې مونږتیرشوی کال کړی وو؟حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې پخپله خورئ په بل خورئ اوجمع کوئ،تیرشوی کال چونکه خلق په اولړه کښې وونودې وجې ماراده کړې وه چې تاسوخلق په دې کښې مدداوکړئ.

**قوله**: (فلایصبحن بعد ثالثة): «لایصبحن» دباب افعال نه دنهی غائب معروف صیغه ده اوددې مصدر«اصباح» دې،صباکول،«ثالثة»موصوف محذوف دې «ای لیلة ثالثة»، چې دکومودریوورځونه پس غوښه ذخیره کول ممنوع وو.هغه کومې درې ورځې وې،په دې کښې دواقوال دی.

① دقربانۍ دوخت نه دادرې ورځې به شمیرلې کیږی یعنی که په یولسم تاریخ باندې قربانۍ اوکړی نوددیارلسم تاریخ نه پس غوښه ایښودلو اجازت نشته ددې.[1]

② ددې دریو ورځوابتداء به دیوم النحرنه وی.قربانی که په لسمه ورځ اوکړی یاپه یولسم دولسم باندې اوکړی.بهرصورت ددولسم تاریخ نه پس دغوښه ذخیره کولو اجازت نشته دې.[2]

ددې دویم مطلب تائید دحضرت جابر رضی الله عنه درِوایت نه کیږی.چې په هغې کښې دی چې (کنا لاناکل من لحوم بدننا فوق ثلاث منی)[3] اودمنی ددریوواړوورځوابتداء دیوم النحرنه کیږی.

په دې حدیث کښې داخبره هم معلومه شوه چې په ړومبی کال ددریوورځونه زیات ذخیره کولوممانعت دیوخاص علت په وجه وو،کله چې علت زائل شونوهغه ممانعت زائل شو.

**قوله**: فَأَرَدْتُ أَنْ تُعِينُوا فِيهَا: د«فیها» ضمیر«مشقة» طرفته راجع دې چې دلفظ«جهد»نه مفهوم کیږی[4] مراددې نه اولړه ده، یعنی په اولړه کښې خلقوسره تعاون کولواراده وه. ددې وجې غوښه ددریوورځونه زیات پورې ذخیره کول منع فرمائیلې شوی وو.

[۵۲۵۰] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنِي أَخِي عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ عَنْ عَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ عَائِشَةَ - رضي الله عنها - قَالَتِ الضَّحِيَّةُ كُنَّا نُمَلِّحُ مِنْهُ، فَنَقْدَمُ بِهِ إِلَى النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - بِالْمَدِينَةِ فَقَالَ « لاَ تَأْكُلُوا إِلاَّ ثَلاَثَةَ أَيَّامٍ ». وَلَيْسَتْ

---

[1]) فتح الباری.ج ۱۰ص ۳٤)._

[2]) فتح الباری.ج ۱۰ص ۳٤)._

[3]) فتح الباری.ج ۱۰ص ۳٤)._

[4]) فتح الباری.ج ۱۰ص ۳٤)._

بِعَزِيمَةٍ، وَلَكِنْ أَرَادَ أَنْ يُطْعِمَ مِنْهُ وَاللَّهُ أَعْلَمُ.
په اصحاب صحاح كښې داحديث صرف حضرت امام بخاری رحمه الله نقل كړې دې نوعلامه عينی رحمه الله فرمائی چې «والحديث من افراده»([1])

**قوله**: الضَّحِيَّةُ كُنَّا نُمَلِّحُ مِنْهَا: يعنی مونږ خلقو په دقربانۍ په غوښه باندې مالګه واچوله اوهغه په اينښودله. مالګه لګولوسره غوښه زرنه خرابيږي.

**قوله**: فَنَقْدَمُ بِهِ إِلَى النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم: «قدم» دباب سمع نه هم كيديش «قدم»س قدوما» راتلل. دلته دباء په وجه معتدی دې اونقدم دباب تفعيل نه هم كيديش په معنی دپيش كولويعنی مونږ ستاسوپه خدمت كښې هغه غوښه پيش كړه.([2])

**قوله**: «لَا تَأْكُلُوا إِلَّا ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ. وَلَيْسَتْ بِعَزِيمَةٍ: «لاتاكلو» نه ده، ترمذی په يوروايت كښې دی چې حضرت عائشه رضی الله عنها نه تپوس اوكړې شو چې «اكان رسول الله صلى الله عليه وسلم ينهی عن لحوم الاضحی»([3]) نوهغوی اوفرمائيل چې «لا» په ظاهره په دواړوروايتونوكښې منافات دی.
علامه عينی رحمه الله ددې جواب وركوی اوفرمائی چې حضرت عائشې رضی الله عنها دنهی تحريم نفی كړې ده. مطلقا دنهی نفی ئې نه ده كړې، نومخكښې جمله «ليست بعزيمة» په دې باندې دليل دې. يعنی هغه نهی دكراهت وه. دتحريم نهی نه وه چې منسوخ شوه.([4]) بعضې حضراتو وئيلې دی چې هغه دكراهت نهی نه ده منسوخ شوې، اوس هم باقی ده لكه څنګه چې مخكښې تيرشو.

«نطعم» دباب افعال نه دې «ولكن ارادان نطعم منه ای نطعم غيرنا» يعنی تاسواوغوښتل چې مونږنوروباندې هم داغوښه اخوروو.

[۵۲۵۱] حَدَّثَنَا حِبَّانُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ قَالَ أَخْبَرَنِي يُونُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو عُبَيْدٍ مَوْلَى ابْنِ أَزْهَرَ أَنَّهُ شَهِدَ الْعِيدَ يَوْمَ الْأَضْحَى مَعَ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ - رضی الله عنه - فَصَلَّى قَبْلَ الْخُطْبَةِ، ثُمَّ خَطَبَ النَّاسَ فَقَالَ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَدْ نَهَاكُمْ عَنْ صِيَامِ هَذَيْنِ الْعِيدَيْنِ، أَمَّا أَحَدُهُمَا فَيَوْمُ فِطْرِكُمْ مِنْ صِيَامِكُمْ وَأَمَّا الْآخَرُ فَيَوْمٌ تَأْكُلُونَ نُسُكَكُمْ.
قَالَ أَبُو عُبَيْدٍ ثُمَّ شَهِدْتُ مَعَ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ فَكَانَ ذَلِكَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، فَصَلَّى قَبْلَ الْخُطْبَةِ ثُمَّ خَطَبَ فَقَالَ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّ هَذَا يَوْمٌ قَدِ اجْتَمَعَ لَكُمْ فِيهِ عِيدَانِ، فَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يَنْتَظِرَ

---

[1]) عمدة القاری :ج۲۱ص ۱۶۰).
[2]) عمدة القاری (ج۲۱ص ۱۶۰)_
[3]) سنن الترمذی كتاب الاضحی باب ماجاء
[4]) عمدة القاری (ج۲۱ص ۱۶۰)_

الْجُمُعَةَ مِنْ أَهْلِ الْعَوَالِي فَلْيَنْتَظِرْ، وَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يَرْجِعَ فَقَدْ أَذِنْتُ لَهُ.

قَالَ أَبُو عُبَيْدٍ ثُمَّ شَهِدْتُهُ مَعَ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، فَصَلَّى قَبْلَ الْخُطْبَةِ، ثُمَّ خَطَبَ النَّاسَ فَقَالَ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - نَهَاكُمْ أَنْ تَأْكُلُوا لُحُومَ نُسُكِكُمْ فَوْقَ ثَلاَثٍ. وَعَنْ مَعْمَرٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ أَبِي عُبَيْدٍ نَحْوَهُ.[ر: ١٨٨٩]

**ابو عبیده مولی بن ازهر** دابو عبیدنوم سعدبن عبیددې اودې دعبدالرحمان بن ازهر آزاد شوې غلام دې

**قوله**: ثُمَّ شَهِدْتُ مَعَ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ: دابو عبیده بیان دې چې بیاځه حضرت عثمان رضی الله عنه سره داخترپه ورځ شریک شوم، اخترد جمعې په ورځ.، هغوی دخطبې نه مخکښې مونځ اوکړوبیائې خطبه اوفرمائیله اووې فرمائیل چې ائې خلقو نن تاسوباندې دوه اخترونه جمع شوی دی. یو داخترورځ اوبله دجمعې ورځ عوالی (دمدینې اطرافو) کښې اوسیدونکو کښې چې څوک واپس تلل غواړی نوهغوی دې واپس لاړشی ځما هغه ته اجازت دې. (یعنی دجمعې دمونځ دپاره اودریدل نه غواړی اوواپس تلل غواړی نوتللې شی).

**قوله**: فَقَالَ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صلی الله علیه وسلم نَهَاكُمْ أَنْ تَأْكُلُوا لُحُومَ نُسُكِكُمْ فَوْقَ ثَلاَثٍ: حضرت علی رضی الله عنه فرمائیلی دی چې حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم تاسو د دریو ورځو نه زیاته دقربانۍ غوښه اینبودلونه منع کړې ئې،

حضرت علی رضی الله عنه د حضور اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد نقل کړو. ددې متعلق درې خبرې وئیلې شوی دی. ① حضرت علی رضی الله عنه ته چونکه ددې حکم دمنسوخ کیدواحادیث نه وورسیدلې، ددې وجې هغه په خطبه داخترکښې داحکم نقل کړې دې [1]

② حضرت علی رضی الله عنه دامنسوخ حکم په طور دحکایت نقل کړې دې په طوردمذهب نه. یعنی هغوی ته هم معلوم ووچې داحکم منسوخ شوې دې. بیاهم ددې منسوخ حکم تذکره کړې ده اوهغوی دانقل کړی دی [2] نوحضرت امام احمدبن حنبل رحمه الله دحضرت علی رضی الله عنه نه مرفوع نقل کړې دې چې حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چې ((نهیتکم عن لحوم الاضحی ان تجسوها بعد ثلاث فاجسوا مابدالکم)) [3]

③ دحضرت علی رضی الله عنه په نیزداسابقه حکم بالکل منسوخ شوې نه وو بلکه هغه معلول العلت ووکله چې علت زائل شونوحکم هم زائل شو، دحضرت علی رضی الله عنه په زمانه کښې هغه علت دوباره واپس راغلونوحکم هم واپس شوځکه چې داخطبه هغوی دحضرت عثمان رضی الله عنه د محاصرې په دوران کښې ورکړې وه. ددې فتنې په وجه خلق داولږې اوقحط ښکارشوی وو [4]

[1]) فتح الباری) ج۱۰ص۳۴و عمدة القاری (ج۲۱ص۱۲۱) _

[2]) اعلاء السنن کتاب الاضحی، باب ادخارلحوم الاضحی فوق ثلاثة ایام :ج۱۷ص۲۷۴) _

[3]) مسند الامام احمد (ج ۱ص۱۳۵)_

[4]) فتح الباری) ج۱۰ص۳۴و عمدة القاری (ج۲۱ص۱۶۱) _

**قوله**: وَعَنْ مَعْمَرٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ أَبِي عُبَيْدٍ نَحْوَهُ: داخو په ماقبل سند باندې معطوف دې په دې صورت کښې خوبه موصول وي اويادا تعليق بيل دې، حضرت امام شافعي رحمه الله داپه کتاب الام کښې موصولا نقل کړې دې.[1]

[۵۲۵۲] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيمِ أَخْبَرَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ سَعْدٍ عَنِ ابْنِ أَخِي ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَمِّهِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ - رضي الله عنهما - قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «كُلُوا مِنَ الأَضَاحِي ثَلاَثًا». وَكَانَ عَبْدُ اللَّهِ يَأْكُلُ بِالزَّيْتِ حِينَ يَنْفِرُ مِنْ مِنًى، مِنْ أَجْلِ لُحُومِ الْهَدْيِ.

په اصحاب صحاح کښې داحديث صرف حضرت امام بخاری رحمه الله نقل کړې دې.حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما دحضرت نبی کريم صلی الله عليه وسلم داارشاد (کلوا من الاضاحی ثلاثا) نقل کړې دې. نو هغوی به ددريوورځونه زياته غوښه نه خوړله کله چې، کله چې منی نه واپس شو نو دقربانئ غوښې په وجه هغوی روټئ روغن زيتون سره خوړله.

غالبا حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه نسخ والا حديث نه وورسيدلې اوممکن دی چې احاديث نسخ هغوی ته معلوم وولیکن احتياطاهغه ددريوورځونه زيات دقربانئ غوښه خوړل نه خوښول.[2]

.........

# ۷۷= کتاب الاشربة

(الاحاديث: ۵۲۳۵-۵۳۱۲)

په کتاب الاشربة کښې ۳۱ ابواب اويونوی (۹۰) مرفوع احاديث دی، په دې کښې نورلس ۱۹، احاديث معلق اوباقی موصول دی، اويا (۷۰) احاديث مکرر دی. اويويشت (۲۱)، احاديث صحيح بخاری په رومبی ځل ذکرکړی دی.په دې يويشتواحاديثو کښې څوارلس احاديث متفق عليه دی، کتاب الاشربة کښې دسلف صالحين څوارلس آثاردی.

---

[1] فتح الباری) ج ۱۰ص ۳۴ و عمدة القاری (ج ۲۱ص ۱۶۲) _

[2] عمدة القاری (ج ۲۱ص ۱۶۲) _

# كتاب الأشربة

## وَقَوْلُ اللّهِ تَعَالَى (إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْأَنْصَابُ وَالْأَزْلَامُ رِجْسٌ مِنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ فَاجْتَنِبُوهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ)

(شربة) د (شراب) جمع ده، شراب اسم دې او دهرمشروب دپاره استعماليږي، كه هغه حلال وي او كه حرام وي.

حضرت امام بخاري رحمه الله په دې كتاب كښې داشربه مباحه اوداشربه محرمه دواړو ذكركړې دي مخكښې ئې داشربه مباحه ذكركړې دې بيا داشربه مباحه،ځكه چې دفع مضرت، جلب منفعت باندې مقدم دې. دې نه پس داشربه مباحه آداب وغيره ذكرفرمائى حضرت امام بخاري رحمه الله داآيت كريمه داحاديث باب دپاره په طوردتمهيد ذكركړې دې. په دې آيت كريمه كښې دشرابودحرمت حكم نازل شوې دې سنن ابى داود اوسنن ترمذى كښې ددې شان نزول داشان بيان شوې دې چې كله دتحريم حكم نازل شونوحضرت فاروق اعظم رضي الله عنه اوفرمائيل چې (اللهم بين لنافي الخمربيانا شافيا) گوياچې رومبې حكم مجمل وو. حضرت فاروق اعظم رضي الله عنه لره راوبللواوداآيت ئې ورته واورولو. هغوى دوباره هغه دعااوكړه نوپه سورة نساء كښې (ياايها الذين امنوالاتقربوالصلوة وانتم سكارى) نازل شو. ددې آيت دنازليدونه پس مونځ نه مخكښې به باقاعده اعلان كيدوچې دنشې په حالت كښې مونځ دپاره دې هيڅوک نه رازى.

حضر عمرفاروق رضي الله عنه بيا (اللهم بين لنافي الخمربيانا شافيا) دعا اوكړه نودسورة مائده پورتنې آيت نازل شو. چې په هغې كښې شراب مطلقا حرام اوگرځولې شو.[1] البته ددې روايت نه معلوميږي چې دسورة بقره دآيت نه مخكښې مجمل حكم حرمت خمرمتعلق نازل شوې وو.

علامه قرطبي رحمه الله دتحريم متعلق ليكى چې (تحريم الخمركان بتدريج ونوازل كثيرة فانهم كانوا مولعين بشربها واول مانزل في شانها (يسئلونك عن الخمروالميسرقل فيهما اثم كبيرومنافع للناس) اى في تجارتهم فلما نزلت هذه الاية تركها بعض الناس وقالوا: لاحاجة لنا فيما فيه اثم كبير ولم يتركها بعض الناس وقالوا: ناخذ منفعتها ونترك اثمها فنزلت هذه الاية (ولا تقربو الصلوة وانتم سكارى) فتركها بعض الناس وقالوا: لاحاجة لنافي مايشغلنا عن الصلاة وشربها بعض الناس في غيراوقات الصلاة حتى نزلت (ياايها الذين آمنوا انما الخمروالميسر والانصاب والازلام رجس) فصارت حراما عليهم حتى صاريقول بعضهم ماحرم الله شيئا اشد من الخمر)[2]

په قرآن پاک كښې دتحريم خمرمتعلق څلورآيتونه نازل شوى دى. يوپه سورة بقره كښې چې په هغې دشرابونه پيدا كيدونكى مفاسدواوگناهونوذكركړې شوې دې،ليكن په هغې كښې

---

[1] سنن ابى داود، كتاب الاشربة باب فى تحريم الخمر: (ج٣ص٣٢٥). (رقم الحديث: ٣٦٧٠)

[2] الجامع لاحكام القرآن للقرطبي: (ج٦ص٢٨٦)۔

صراحتادې ته حرام نه دی وئیلی شوی.
دويم آيت دسورة نساء دې چې په هغې كښې صرف اوقات الصلوة كښې دشرابونه منع كړې شوې ده. باقي وختونو كښې اجازت وركړې شوې دې.
دريم اوڅلورم آيت په سورت مائده كښې دې چې هغه حضرت امام بخارى رحمه الله دلته ذكركړې دې. هغې كښې شرابوته مطلق حرام اووئيلې شوځكه چې دې ته «رجس من عمل الشيطان» اووئيلې شو او «رجس» حرام وى، نو امام جصاص رازى رحمه الله ليكى چې «اقتضت هذه الاية تحريم الخمر من وجهين: احدهما قوله (رجس) لان الرجس اسم فى الشرع لما يلزم اجتنابه ويقع اسم الرجس على الشئ المستقذر النجس وهذا ايضا يلزم اجتنابه فاوجب اوصافه اياها بانها رجس لزوم اجتنابها والوجه الاخر قوله تعالى (فاجتنبوه) وذلك امر والامر يقتضى الايجاب فانتظمت الاية تحريم الخمر من هذين الوجهين» [1]
يعنى ددې آيت كريمه نه دتحريم خمر دوؤطريقو سره مستفاد كيږى، يو خوئې دې ته «رجس» وئيلى دې او په شريعت كښې «رجس» نه اجتناب كول ضرورى دى. دويم «فاجتنبوه» امر دې، او امر دوجوب دپاره رازى. [2]

**دشرابو حرمت كله نازل شو؟** : دحرمت متعلق داآيت كله نازل شو، په دې كښې اختلاف دې. دحضرت ابن حجر رحمه الله دارائې ده چې دفتح مكه په كال داآيت مبارك نازل شو. [3] دحافظ شرف الدين دمياطى رحمه الله رائې داده چې دادصلح حديبيه په كال نازل شو يعنى په كال شپږمه هجرئې كښې. [4]
دابن اسحاق په نيز داآيت دبنى نضيردغزوه په كال نازل شو او دراجح قول مطابق غزوه بنو نضير په څلورمه هجرئى كښې شوې وه. [5]
ليكن په څلورمه هجرئې كښې ددې حكم په نازليدو باندې بعضي خلقو اعتراض كړې دې چې په كوم كال دتحريم خمر حكم اوشو. هم په هغه كال دا واقعه شوې وه. دحضرت نبى كريم ﷺ منادى اعلان اوكړو چه شراب حرام كړې شو، نو حضرت ابو طلحه رضي الله عنه اوفرمائيل چه ورشه اوداميكى مات كړه. [6] اوحضرت انس رضي الله عنه په څلورمه هجرئى كښې ددې عمرنه ووچه

---

[1]) احكام القرآن للجصاص (ج۲ص ۴۶۱). باب تحريم الخمر).
[2]) قال بعض العلماء فيها دلائل على تحريم الخمر احدها قوله: (رجس) والرجس هو النجس وكل نجس حرام، والثانى قوله (من عمل الشيطان) وماهو من عمله حرام والثالث قوله: (فاجتنبوه) وماامر الله تعالى باجتنابها فهو حرام والرابع قوله (لعلكم تفلحون) وما علق رجاء الفلاح باجتنابه فالاتيان به حرام (عون المعبود شرح سنن ابى داود كتاب الاشربة :ج۱۰ص۱۰۶).
[3]) فتح البارى (ج۱۰ص۳۸)_
[4]) اوګورئ تاريخ الخميس (ج۲ص۲۶).
[5]) تاريخ الخميس(ج۲ص۲۶)_
[6]) لكه څنګه چه دبخارى په روايت كښې رازى، صحيح البخارى كتاب الاشربة باب انزل تحريم الخمر وهى من البسر والتمر :(رقم الحديث ۵۲۶۰)_

هغه دې متكې ماتې كړي ځكه چې هغه دكم عمرووـ ځكه چې حضرت انس رضي الله عنه دهجرت په كال دحضرت نبي كريم ﷺ په خدمت كښې پيش كړې شوې وو. نوپه هغه وخت كښې دې دنهولسو كالووو. كه داځلورمې هجرئي واقعه اومنلې شي نوپه هغه وخت كښې ددوي عمرمبارك څوارلس كاله به وو. حضرت ابن حجر رحمه الله وغيره داخبره ليكلې ده. [1]
ليكن په دې كښې نظردې ځكه چه دځلوارلس كالوبچې ددې قابل وي چې هغه دې متكى مات كړي
بهرحال علامه قسطلاني شپږمې هجرئي ته ترجيح وركړې ده، [2] ليكن مشهور روايت دځلورمې هجرئي دې [3]

[۵۲۵۳] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ- رضي الله عنهما- أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ- صلى الله عليه وسلم- قَالَ «مَنْ شَرِبَ الْخَمْرَ فِي الدُّنْيَا، ثُمَّ لَمْ يَتُبْ مِنْهَا، حُرِمَهَا فِي الآخِرَةِ».

حضرت نبي كريم ﷺ فرمائيلي دي چې چاپه دنياكښې شراب اوڅكل اوددې نه توبه ګارنشونوآخرت كښې به هغه ددې نه محروم وي. داحديث حضرت امام بخاري رحمه الله په دې ځائې كښې په ړومبي ځل ذكركړو.

**قوله**: (حرمها في الاخرة): (حرم) دمجهول صيغه ده اومتعدي په دوه مفعول دی، ددې دوه مطلبونه دي. ① دادخپلې حقيقي معنى باندې محمول دې، يعنى مستقل شراب څكلو والااوشرابونه توبه اونه كړي، اوهم په دې حال كښې مړشي نوهغه اګرچه جنت ته لاړشي نو ده ته به په جنت كښې شراب نه ملاويږي. [4]
ددې جواب داوركړې شوچه ددې سړي نه دشرابوخواهش سلب كړې شي [5]
② علامه خطابي رحمه الله فرمائي چې ددې مطلب دادې چې هغه سړې به جنت ته نه داخليږي، داهل جنت مشروب خمردی. چې څوک ددې نه محروم كړې شونوهغه دجنت نه محروم كړې شو. [6]

---

[1] فتح الباري ج ١٠ص٣٨) وتاريخ الخميس :ج٢ص٢٦،قال الحافظ في الاصابة صح عنه انه قال:قدم النبي (ص) وانا المدينة واناابن عشرسنين (وانظرالاصابة في تميزالصحابة :ج١ص٧١، والاستيعاب لابن عبدالبرمع الاصابة :ج١ص٧١)_
[2] تاريخ الخميس(ج٢ص٢٦)_
[3] تاريخ الخميس(ج٢ص٢٦)_
[4] عمدة القاري (ج٢١ص١٦٤، وارشاد الساري :ج١٢ص٣٢٤)،شرح الطيبي، كتاب الحدود،باب بيان الخمر وعبدشاربها :(٧ص١٦٨)_
[5] عمدة القاري (ج٢١ص١٦٤، وارشاد الساري :ج١٢ص٣٢٤)،شرح الطيبي، كتاب الحدود،باب بيان الخمر وعبد شاربها :(٧ص١٦٨) ومرقاة المفاتيح كتاب الحدودباب بيان الخمروعيدشاربها (ج٧ص١٩١)_
[6] المعبودكتاب الاشربة باب ماجاء في سكر:ج١٠ص١٢٠)_

**يو اشكال اودهغې جوابات:** ليکن په دې دويم مطلب به اشکال وی چې شراب خمر ګناه کبيره ده، اومرتکب کبيره، بهرحال جنت کښې به داخليږی يا ابتداء که الله جل جلاله ئې معاف کړی يا دخپلې ګناه سزاتيرولو نه پس بياجنت نه دمحرومئ حکم ولې اوشو، ددې درې جوابونه دی.

① يو داچه ددې سړی متعلق چه شرابولره حلال ګڼړی اوڅکی ئې اومستحل خمر کافر دې اوکافربه جنت کښې نه داخليږی.

② ابتداء کښې به دې محروم ساتلې شی، اودسزاتيرولونه پس به بياجنت ته داخل کړې شی، په حديث کښې ددې ابتدائی محرومئ ذکرفرمائيلې شوې دې. نومولانا خليل احمد سهارنپوری رحمه الله ليکی چې: «وهو كناية عن عدم دخول الجنة اما اذاكان مستحلا فظاهر انه يكفر واما اذالم يكن مستحلا فيتاول انه لايشربها في الجنة اولايدخلها في الاولين» (۱)

③ دا ارشادپه تهديه باندې محمول دې، معنی حقيقی مراد نه ده. (۲)

[۵۲۵۴] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ أَخْبَرَنِي سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ -رضى الله عنه- أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- أُتِيَ لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِهِ بِإِيلِيَاءَ بِقَدَحَيْنِ مِنْ خَمْرٍ، وَلَبَنٍ فَنَظَرَ إِلَيْهِمَا، ثُمَّ أَخَذَ اللَّبَنَ، فَقَالَ جِبْرِيلُ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي هَدَاكَ لِلْفِطْرَةِ، وَلَوْ أَخَذْتَ الْخَمْرَ غَوَتْ أُمَّتُكَ.

تَابَعَهُ مَعْمَرٌ وَابْنُ الْهَادِ وَعُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ وَالزُّبَيْدِيُّ عَنِ الزُّهْرِيِّ.

[۵۲۵۵] حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ أَنَسٍ -رضى الله عنه- قَالَ سَمِعْتُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- حَدِيثًا لاَ يُحَدِّثُكُمْ بِهِ غَيْرِي قَالَ «مِنْ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ أَنْ يَظْهَرَ الْجَهْلُ، وَيَقِلَّ الْعِلْمُ، وَيَظْهَرَ الزِّنَا، وَتُشْرَبَ الْخَمْرُ، وَيَقِلَّ الرِّجَالُ، وَيَكْثُرَ النِّسَاءُ، حَتَّى يَكُونَ لِخَمْسِينَ امْرَأَةً قَيِّمُهُنَّ رَجُلٌ وَاحِدٌ». [ر: ۸۰]

[۵۲۵۶] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ قَالَ أَخْبَرَنِي يُونُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا سَلَمَةَ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ وَابْنَ الْمُسَيَّبِ يَقُولاَنِ قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ -رضى الله عنه- إِنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «لاَ يَزْنِي الزَّانِي حِينَ يَزْنِي وَهْوَ مُؤْمِنٌ، وَلاَ يَشْرَبُ الْخَمْرَ حِينَ يَشْرَبُهَا وَهْوَ مُؤْمِنٌ، وَلاَ يَسْرِقُ السَّارِقُ حِينَ يَسْرِقُ وَهْوَ مُؤْمِنٌ».

قَالَ ابْنُ شِهَابٍ وَأَخْبَرَنِي عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ هِشَامٍ أَنَّ أَبَا بَكْرٍ كَانَ يُحَدِّثُهُ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ثُمَّ يَقُولُ كَانَ أَبُو بَكْرٍ يُلْحِقُ مَعَهُنَّ «وَلاَ يَنْتَهِبُ نُهْبَةً ذَاتَ شَرَفٍ، يَرْفَعُ النَّاسُ إِلَيْهِ أَبْصَارَهُمْ فِيهَا حِينَ يَنْتَهِبُهَا وَهْوَ مُؤْمِنٌ» [ر: ۲۳۴۳]

---

(۱) مذکوره دوۀ مطلبونو دپاره اوګورئ بذل المجهود ماجاء فی سکر (۱۶ص ۱۴)

(۲) مرقاة المفاتيح، کتاب الحدود باب بيان الخمر ووعيد شاربها: ج۸ص ۱۹۰).

**قوله**: لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِهِ بِإِيلِيَاءَ بِقَدَحَيْنِ مِنْ خَمْرٍ، وَلَبَنٍ: (ايلياء) دهغه ښارنوم ايلياء دي کوم ځائې کښې چې بيت المقدس واقع دې ([1])
دحضرت نبی کريم ﷺ په خدمت کښې دوه پيالئ پيش کړې شوې، يو پياله کښې شراب اويو کښې پئ وو. حضرت نبی کريم ﷺ دپئو والا پياله اختيار کړه.
بعضو روايتونو کښې درې پيالئ دپيش کولوذکردې په دې کښې شراب اوپئ او شهدو پيالئ وه.
ددې جواب ورکړې شوچې ايلياء کښې دوه پيالئ پيش کړې نو، لکه څنګه چې دلته روايت کښې دى اوسدرة المنتهى طرفته تهٔ درفع په وخت کښې درې پيالئ پيش کړې شوې وې. ([2])

**قوله**: ثُمَّ أَخَذَ اللَّبَنَ: ابن عبد البر رحمه الله فرمائى چې حضرت نبی کريم ﷺ خمر (شراب) په دې وجه پرينبودل چې ددې دحرمت حکم نازليدو والا وو.
يا د شرابو څکلو دحضرت نبی کريم ﷺ عادت نه وو، ددې وجې حضرت نبی کريم ﷺ دپئيو والا پياله اختيار اوفرمائيله ([3])

**قوله**: الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي هَدَاكَ لِلْفِطْرَةِ: دفطرت نه دلته دين اسلام اوپه دې باندې استقامت مراددې، علامه قرطبى رحمه الله فرمائى چې لبن لره په فطرت سره تعبير کړې شوځکه چې بچې پيداشى نوهغه تهٔ مخکښې پئ ورکولې شى. ([4])

**قوله**: وَلَوْ أَخَذْتَ الْخَمْرَ غَوَتْ أُمَّتُكَ: حضرت جبرئيل عليه السلام خوداخبره ياپه طريق دفال ارشاد فرمائيلې ده ياهغوى تهٔ علم وو چې کوم يوځيزاخستلوباندې به کومه نتيجه مرتب کيږى. ([5])

**قوله**: تَابَعَهُ مَعْمَرٌ وَابْنُ الْهَادِ وَعُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ وَالزُّبَيْدِيُّ عَنِ الزُّهْرِيِّ: يعنى دشعيب متابعت معمربن ارشد، ابن الهاد (يزيدبن عبدالله) عثمان بن عمراوزبيدى (محمدبن الوليد) کړې دې. دمعمرروايت حضرت امام بخارى رحمه الله دابن الهاد روايت حضرت امام نسائى رحمه الله موصولانقل کړې دې، ([6])

**قوله**: لاَ يَشْرَبُ الْخَمْرَ حِينَ يَشْرَبُهَا وَهُوَ مُؤْمِنٌ: دلته يا ايمان نه ايمان کامل مراددې (لايکون کاملا فى الايمان حال کونه فى شرب الخمر) ياداپه تهديدوتغليظ باندې محمول دى. يعنى معنى حقيقى مرادنه ده. اويادهغه سړى متعلق دې چې شرب الخمرحلال ګڼرى ([7])

---

[1]) عمدة القارى: ج ٢١ص ١٦٤)، وفتح البارى) ج ١٠ص ٤١).
[2]) عمدة القارى: ج ٢١ص ١٦٤)
[3]) فتح البارى) ج ١٠ص ٤١).
[4]) فتح البارى ج٧ص ٢١٥) ـ
[5]) فتح البارى : (ج ١٠ص ٤١)ـ
[6]) عمدة القارى : (ج ٢١ص ١٦٤) و فتح البارى : (ج ١٠ص ٤١)ـ
[7]) عمدة القارى (ج ٢١ص ١٦٥)ـ

دا تاویلات ددې وجې کول ضروری دی چې داهل سنت والجماعت په نیزګناه کبیره ارتکاب کولو سره سړې دایمان نه خارجیږی نه.

**قوله**: كَانَ أَبُو بَكْرٍ يُلْحِقُ مَعَهُنَّ «وَلَا يَنْتَهِبُ نُهْبَةً ذَاتَ شَرَفٍ، يَرْفَعُ النَّاسُ إِلَيْهِ أَبْصَارَهُمْ فِيهَا حِينَ يَنْتَهِبُهَا وَهُوَ مُؤْمِنٌ» :ابوبکرمذکوره جملې سره د(لاینتهب) اضافه هم کړې ده.یعنی هیڅ یومومن په دې حالت کښې لوټ مارنه کوی چې خلق دې ته ګوری.(نهبة ذات شرف مال نفیس) ([1])

**دشرابو قسمونه اومذاهب ائمه**: ① ائمه ثلاثه اوپه احنافوکښې دحضرت امام محمدرحمه الله په نیز ټول نشه ورکونکی مشروبات،خمریعنی شرابوپه حکم کښې دی، ددې قلیل یا کثیر استعمال مطلقا حرام دی.اوددې شارب(څکلووالا) باندې حدجاری کیږی. دخمرپه شان هر مسکر مشروب نجس دې، ددې اخستل خرڅول جائزنه دی. ([2])

② دحضرت امام ابوحنیفه رحمه الله اوحضرت امام ابویوسف رحمه الله په نیزپه دې کښې تفصیل دې، هغوی فرمائی چې داشربه درې قسمونه دی. اول قسم خمردا دانګوروکچه شیره وی.

**(اذا اشتدت وغلا وقذف بالزبد)** یعنی کله چې دزیات ایښودویا ویشلولو(جوش کولو) په وجه په دې کښې شدت راشی،هغه ویشیږی اوددې نه ځګ راوزی،امام ابویوسف اوحضرت امام محمد رحمه الله دځګ راوتلوشرط نه دې لګولې.([3])

ددې حکم دادې چې ددې قلیل یاکثیراستعمال مطلقا حرام دې،په څکونی باندې حدجاری کیږی، اګرچه دڅ یوقطره ئې هم څکلی وی.دانجس العین دې، ددې بیع جائزنه ده اوددې حلال ګڼرلوو الاکافردې. ([4])

دویم قسم (طلاء،نقیع التمر،نقیع الزبیب.....) دادرې واړه اشربه حرام دی.

(طلاء) دانګوروشیرې ته وائی.کله چه دادومره پخه کړې شی چې درې حصې پاتې شی.([5])

(نقیع التمر) دکهجوروکچه شیره او(نقیع الزبیب) هغه اوبوته وائی چه په هغې کښې زبیب یعنی کشمش اچولې شوی وی.اودزیات وخت تیریدوپه وجه په دې کښې شدت اوویشیدل پیداشی.([6])

دادرې واړه اشربه هم دخمرپه حکم کښې دی،نجس دی اوددې قلیل یاکثیراستعمال حرام دی،البته ددې په څکونکی باندې دحضرت امام ابوحنیفه رحمه الله اوامام ابویوسف په نیزنشه

---

[1]) فیض الباری)ج٤ص ٣٣٤) _

[2]) المغنی لابن قدامه کتاب الاشربة :(ج٩ص١٣٦) _، واحکام القران للتهانوی رحمه الله سورة المائده : ج١ص٣٨٨)_

[3]) اوګورئ الهدایة مع فتح القدیر، کتاب الاشربة :(ج٩ص٢٦) _

[4]) اوګورئ بذل المجهود، کتاب الاشربة باب الخمرمماهی :(ج١٦ص١٢)_

[5]) اوګورئ الهدایه مع فتح القدیر،کتاب الاشربه :ج ٩ص ٢٩)_

[6]) اوګورئ الهدایه مع فتح القدیر،کتاب الاشربه :ج ٩ص ٣٠و٣١)_

آورمقدار څکلونه پس حد جاری کیږی، ځکه چه ددې اشربه خمر کیدل ظنی دی. اوحد دشبهې په وجې سره ساقط کیږی، ددې مستحل کافرنه دې، څنګه چه د خمرمستحل کافردې، البته ددې نه علاوه باقی اکثرو احکامو کښې دادخمرپه حکم کښې دی.
دحضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیزددې دریو واړومشروباتوبیع جائزده.دصاحبینوپه نیزجائزنه دی (۱)

دریم قسم (خمر، طلاء، نقیع التمر، نقیع الزبیب ......) ددې څلوروا شربه نه علاوه باقی اشربه نبیذ وغیره دی.په ددې کښې دحضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیزقلیل مقدارچه نشه ورکونکی نه وی دهغې استعمال جائزدې. په دې شرط چه هغه دتعیش دپاره نه وی.بلکه (تقوی فی العبادی) نیت سره وی (۲)اودجمهوروپه نیزداجائزنه دی.
حاصل دکلام دادې چه امام صاحب رحمه الله اودجمهوروپه مینځ کښې دوه څیزونوکښې اختلاف دې، یواشربه ثلاثه چه ددوی په نیزداخمردی لیکن ددې خمرکیدل ظنی دی. لهذاددې په شارب باندې حدنه جاری کیږی حالانکه دجمهوروپه نیزددې خمرکیدل ظنی نه دی، لهذاپه شارب باندې به حدجاری کیږی.دویم اختلاف اشربه اربعه نه علاوه باقی اشربه مسکره غیرنشه آورقلیل مقداراستعمال جائزدې، دجمهوروپه نیزجائزنه دې
لاندې دامام صاحب اودجمهوروخودلائل پیش کولې شی:
**دامام اعظم رحمه الله دلائل:** ① دحضرت امام ابوحنیفه رحمه الله استدلال دلغت نه دې. هغه فرمائی چه اهل لغت دخمراطلاق دانګوروشیره باندې کوی.دباقی میوؤشیروباندې دخمراطلاق په لغت کښې نه کیږی نوابن سیده (المخصص) کښې فرمائی چه (الخمرما اسکرمن عصیرالعنب والجمع خمور) (۳)اوابن منظورافریقی په (لسان العرب) کښې ددوی قول نقل کړوچه (الخمرانما هی العنب دون سائرالاشیاء) (۴)

② عبدالرزاق په خپل مصنف کښې یوروایت نقل کړې دې چه (قال النبی ﷺ الخمرمن العنب والسکرمن التمروالمزرمن الذرة والغبیرا من الحنطة والبتع من العسل کل مسکرحرام) (۵)

---

۱) بذل المجهود،کتاب الاشربة باب الخمرماهی :ج۱۶ص۱۲،والهدایة مع فتح القدیر،کتاب الاشربة :ج۹ص۳۱)
۲) فیض الباری،کتاب الاشربة : ج ٤ص ۳٤۶، واعلاء السنن کتاب الاشربة باب حرمة الخمر(ج :۱۸ص۲۱. قال الحسن بن مالک سمعت الشافعی یسال اباپوسف هل فی نفسک شئ من النبیذ فقال اب،یوسف: کیف لایکون فی نفس شئ من النبیذ واراد الشارب ان یسکرمنه فالقلیل منه حرام کالکثیر وهوقول ابی حنیفه (سند الخوارزمی: ج۲ص۲۰۷) وفیه دلیل علی ان شرب القلیل اذاکان للسکرفهو ایضاحرام عند ابی حنیفه (وانظر البدر الساری الی فیض الباری : (ج ٤ص ۳۵۵).
۳) المخصص لابن سیده : (ج۱۱ص۷۲)_
۴) لسان العرب :(ج۵ص۳۳۹)_
۵) مصنف عبدالزاق :(ج۹ص ۲۳٤، رقم الحدیث :۱۷۵٤).

په دې كښې تصريح ده چه خمردانګوروى. دارو ايت اګرچه حضرت سعيدبن المسيب مرسلاً نقل كړې دې ليكن ددوى مراسيل بالاجماع مقبول دې.[1]

③ دحضرت ابن عمر رضي الله عنهما اثردې «اما الخمرفحرام لاسبيل اليها واما ماسوا هامن الاشربة فكل مسكرحرام»[2] اودحضرت ابن عباس رضي الله عنهما اثردې چه «حرمت الخمرلعينها والسكرمن كل شراب»[3] داشان حضرت فاروق اعظم رضي الله عنه نه منقول دى چې هغوى ددې نبيذنه لړشان اوڅكل چه نشه آوروو[4] كه چرته قليل حرام وو نوهغوى به كله هم نه څكل.

④ حضرت ابوموسى اشعرى رضي الله عنه اوحضرت معاذبن جبل رضي الله عنه يمن ته روان وو. حضرت نبى كريم ﷺ نه ئې تپوس اوكړوچه هغه ځائې كښې دغنمواواوربشوشراب جوړيږى. ددې څه حكم دې؟ وې فرمائيل چه «اشربا ولاتسكرا»[5] امام طحاوى رحمه الله فرمائى چه: «كان ذالك دليلا ان حكم المقدار الذى يسكر من ذالك الشراب خلاف حكم مالايسكر منه»[6]

⑤ دعبدالله بن شخيرپه روايت كښې دى چه «نهى رسول الله عن اشربة قال فقيل له: انه لابد منها او نحوهذا قال: فاشربوامالم يسفه احلامكم ولايذهب اموالكم»[7]
علامه هيثمى ددې حديث سندصحيح ګڼړى.[8]

**د جمهورو دلائل**: ① حضرت امام بخارى رحمه الله چه په «باب الخمرمن العنب، باب نزل تحريم الخمر، باب الخمرمن العسل، باب ماجاء فى ان الخمرماخامرالعقل......» ددې څلوروابوابولاندې چې څومره روايتونه ذكرفرمائيلى دى هغه ټول دجمهوردلائل دى.

② دابوداود په روايت كښې دى چه «ان من العنب خمراوان من التمرخمرا وان من العسل خمراوان من البرخمراوان من الشعيرخمرا»[9]

③ دحضرت جابر رضي الله عنه حديث كښې دى چه «ما اسكر كثيره فقليله حرام»[10]

---

[1] تكملة فتح الملهم)ج ۳ص ۶۰۱)_
[2] مصنف عبدالرزاق :(ج ۹ص ۲۲)_
[3] شرح معانى الاثار للطحاوى كتاب الاشربة باب الخمرالمحرمة ماهى)ج ۲ص ۳۵۶)، والجوهرالنقى: (ج ۸ص ۲۹۷)_
[4] اوګورئې كتاب الاثار: ۱۱۹،ومصنف عبدالرزاق: (ج ۹ص ۲۲۴)، رقم الحديث: ۱۷۱۵) _ اوګورئى كتاب الاثارشرح معانى الاثاركتاب الاشربة باب مايحرم من النبيذ:ج ۲ص ۳۵۹)_
[5] شرح معانى الاثاركتاب الاشربة باب مايحرم من النبيذ:(ج ۲ص ۳۶۰)_
[6] شرح معانى الاثاركتاب الاشربة باب مايحرم من النيذ(ج ۲ص ۳۶۰)_
[7] مصنف عبدالرزاق :ج ۹ص ۲۲۳)_
[8] مجمع الزوائد للهيثمى (ج ۵ص ۶۶)_
[9] سنن ابى داود كتاب الاشربة (رقم الحديث: ۳۶۷۶)_
[10] سنن النسائى كتاب الاشربة باب تحريم كل شراب اسكر كثيره (رقم الحديث :۵۱۱۷) وفتح القدير(ج ۵ص ۸۰)

⑤ حضرت عائشه رضي الله عنها روايت كښې دى چه (كل مسكر حرام وما اسكر منه الفرق فملأ الكف منه حرام)[1]

⑥ داشان روايت دې چه (كل مسكر خمر وكل مسكر حرام)[2]

دې احاديثوسره جمهوروا استدلال فرمائى چه خمرصرف دانګورودشيرې نوم نه دې، (طلاء نقيع الزبيب) وغيره هم خمردى. داشان انبذه مسكره قليل استعمال هم جائزنه دې.

**د جمهورو ددلائلو جواب**: حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائى چه عصيرعنب نه علاوه باقى اشربه باندې دخمراطلاق مجازادې، لغة اوحقيقتا نه دې، ځکه چه په لغت كښې خمرصرف ماء عنب ته وائيلې شى، لکه څنګه چه دلغت دکتابونه حوالې سره تيرشوى دى.

او(ماسكركثيره فقليله حرام) لره په خمرباندې محمول كيږى چه دخمرقليل مقدارهم حرام دې.

نو مولاناظفراحمدعثمانى رحمه الله ليكى چه (يكون معناه الخمرحرام قليلها وكثيرها وهذا التاويل هوالمتعين عندنا لما روينا عن عمر رضي الله عنه انه شرب النبيذ المسكر بعد كسره بالماء)[3]

ليكن حقيقت دادې چه په دې تاويل باندې زړه مطمئن كيږى نه ځکه چه (ما) عام دې، چه خمر اوغيرخمردواړوته شامل دې. حضرت عمرفاروق رضي الله عنه اونورصحابه كرام رضي الله عنهم چه كوم آثاردې. هغه موقوف دى او(ماسكركثيره فقليله حرام) حديث مرفوع دې. نوعلامه انورشاه كشميرى رحمه الله فرمائى چه: (ومرادالحديث ان كل شراب من شانه السكرفهوحرام....وقدتبين لى بعدمرورالدهران مرادالحديث كماذهب اليه الجمهورواذن ان لااصرف الاحاديث عن ظاهرها)[4]

ددې نه زيات نه زيات داخبره ثابتيږى چه داباقى اشربه مسكره په څكلو كښې دخمرپه حكم كښې دى، لهذاداشراب په شان ددې قليل اوكثيراستعمال درست نه دې، بياهم په دې ټولوامورو كښې دخمرحكم كښې كيدل ددې رواياتونه نه ثابتيږى.

هم په دې وجه ډيرواحنافوعلماء كرامودحرمت په حق كښې دجمهورودمذهب مطابق فتوى وركړې ده چه ددې استعمال مطلقا حرام دې اوبيع اوحدپه حق كښې دمام صاحب په قول باندې فتوى وركړې ده.[5]

ددې اشربه ثلاثه نجسات باره كښې نجاست غليظ والا قول ته ترجيح وركړې ده.[6]

ددې اشربه اربعه نه علاوه (نبيذوغيره) دامام صاحب رحمه الله په نيزنجس نه دى.

---

[1] سنن ابى داود كتاب الاشربة (رقم الحديث :٣٦٨٧).
[2] المجموع تشرح المهذب كتاب الصلوة: (ج ٢ص ٥٦٤)_
[3] اعلاء السنن،كتاب الاشربة حرمة الخمر:(ج ١٧٢١)_
[4] اعلاءالسنن،كتاب الاشربة حرمة الخمر:ج١٧ص ٢١)_
[5] تكملة فتح الملهم :(ج٣ص٦٠٨)_
[6] المبسوط للسرخى :(ج ٢٤ص ١٤)، ردالمختار(ج ٦ص ٣٥١)_

**فائده**: حضرت امام ابو حنيفه رحمه الله به اګرچه د نبيذ مقدار غير سكر استعمال جائز ګڼرلو ليكن د مختلف فيه كيدو په وجه هغوى ددې استعمال كله نه دې كړې، نو د هغوى قول مشهور دې چه «لواعطيت جميع مافى الدنيا ومثلها لاشرب قطرة نبيذ فلااشربه فانه مختلف فيه، لواعطيت جميع مافى الدنيا لاحرم النبيذ لاحرمه لانه مختلف فيه»[1]

علماء كرامو لره داسې پكاردى چه كوم څيز مختلف اومشكوك وى، هغه ځائې كښې د فتوې وركولو په وخت په تقوى باندې عمل كولو كوشش اوكړى.

**د تراجم بخارى مقصد**: حضرت امام ابو حنيفه رحمه الله په دې ځائې كښې څلور ترجمې قائمې كړې دى، رومبئ ترجمه «باب ان الخمر من العنب» دې چه د شراب د انګورونه جوړيږى دې نه پس دوئمه ترجمه «باب نزل تحريم الخمر وهى من البسر» قائم فرمائيلې ده چه شراب د كهجورو وى. او بيا ترجمه «الخمر من العسل» قائم فرمائيلې ده او څلورمه ترجمة الباب «الخمر ما خامر العقل» قائم كړې ده.

ددې تراجم نه د حضرت امام بخارى رحمه الله مقصد څه دى په دې كښې دوه احتمال دى.

رومبې احتمال دادې چه ددې تراجمونه د حضرت امام بخارى رحمه الله مقصد دادې چه څنګه شراب د انګورووى، داشان د تمراو عسل وغيره هم وى يعنى خمر صرف عصير عنب سره خاص نه دى لكه څنګه چه د جمهور علماء كرامو مسلك دې.

دويم احتمال دادې چه حضرت امام بخارى رحمه الله داوئيل غواړى چه اصل شراب چه هغې ته په قرآن پاك كښې «انما الخمر والميسر.....» فرمائيلې شوى دى هغه شراب د عنب دى. او باقى چه څومره اشربه دى هغې ته مجازى طور خمر (شراب) وئيلې شوې دى.

د حضرت امام بخارى رحمه الله مقصد كښې دادواړه احتمالونه كيدې شى. بيا هم احتمال اول راجح دې چه دې تراجمونه د جمهورو تائيد كوى.[2]

## ۱- باب الْخَمْرُ مِنَ الْعِنَبِ

[۵۲۵۷] حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ صَبَّاحٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَابِقٍ حَدَّثَنَا مَالِكٌ - هُوَ ابْنُ مِغْوَلٍ - عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رضى الله عنهما - قَالَ لَقَدْ حُرِّمَتِ الْخَمْرُ، وَمَا بِالْمَدِينَةِ مِنْهَا شَىْءٌ. [ر: ۴۳۴۰]

**قوله**: لَقَدْ حُرِّمَتِ الْخَمْرُ، وَمَا بِالْمَدِينَةِ مِنْهَا شَىْءٌ: په دې كښې د خمرنه خمر عنب مراد دې يعنى كله چه د شرابو حرمت نازل شونو مدينه منوره كښې به د انګورشراب نه وو، د نورو ميوؤ شراب به موندې شو لكه څنګه چه ددې باب په دويم روايت كښې دى. «وَعَامَّةُ خَمْرِنَا الْبُسْرُ وَالتَّمْرُ»

[1] فيض البارى: (ج ٤ ص ۳۵۵)_
[2] الابواب والتراجم (ج ۲ ص ۹٦)_

داحدیث صرف دحضرت امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دې چه شراب صرف دعصیرعنب وی.

په دې روایت کښې دی چه (وَمَا بِالْمَدِينَةِ مِنْهَا شَيْءٌ.) او مخکښې روایت کښې دی چه (وما نجد خمرالاعناب الاقليلا) په دې دواړوکښې تعارض نه دې ځکه چه (شئ) نه مرادشی کثیردې نویو کښې دکثیرنفی ده.دویم روایت کښې دقلیل اثبات دې.

[٥٢٥٨] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ حَدَّثَنَا أَبُو شِهَابٍ عَبْدُ رَبِّهِ بْنُ نَافِعٍ عَنْ يُونُسَ عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ عَنْ أَنَسٍ قَالَ حُرِّمَتْ عَلَيْنَا الْخَمْرُ حِينَ حُرِّمَتْ وَمَا نَجِدُ - يَعْنِي بِالْمَدِينَةِ - خَمْرَ الْأَعْنَابِ إِلَّا قَلِيلًا، وَعَامَّةُ خَمْرِنَا الْبُسْرُ وَالتَّمْرُ. [ر: ٢٣٣٢]

داحدیث اصحاب صحاح کښې صرف حضرت امام بخاری رحمه الله نقل کړې دې. نوعلامه عینی رحمه الله فرمائی چه (والحديث من افراده)[1]

**قوله**: (وَعَامَّةُ خَمْرِنَا الْبُسْرُ وَالتَّمْرُ: علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه (الخمرمائع البسر جامد فكيف يكون هواياه) یعنی خمرباندې به دتمراطلاق څنګه درست وی.بیاددې جواب ورکړې شوچه په دې کښې دبسرشراب باندې اطلاق مجازااوکړې شواویادلته مضاف محذوف دې یعنی (عامة اصل خمرنا التمر)[2]

[٥٢٥٩] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ أَبِي حَيَّانَ حَدَّثَنَا عَامِرٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رضى الله عنهما - قَامَ عُمَرُ عَلَى الْمِنْبَرِ فَقَالَ أَمَّا بَعْدُ نَزَلَ تَحْرِيمُ الْخَمْرِ وَهْىَ مِنْ خَمْسَةٍ الْعِنَبِ وَالتَّمْرِ وَالْعَسَلِ وَالْحِنْطَةِ وَالشَّعِيرِ، وَالْخَمْرُ مَا خَامَرَ الْعَقْلَ. [ر: ٤٣٤٠]

**قوله**: الْخَمْرُ مَا خَامَرَ الْعَقْلَ: یعنی شراب هغه دی چه عقل لره پټ کړې یاغلئب کړی.

## ٢- بَاب نَزَلَ تَحْرِيمُ الْخَمْرِ وَهْيَ مِنَ الْبُسْرِ وَالتَّمْرِ.

[٥٢٦٠] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ - رضى الله عنه - قَالَ كُنْتُ أَسْقِي أَبَا عُبَيْدَةَ وَأَبَا طَلْحَةَ وَأُبَيَّ بْنَ كَعْبٍ مِنْ فَضِيخِ زَهْوٍ وَتَمْرٍ فَجَاءَهُمْ آتٍ فَقَالَ إِنَّ الْخَمْرَ قَدْ حُرِّمَتْ. فَقَالَ أَبُو طَلْحَةَ قُمْ يَا أَنَسُ فَأَهْرِقْهَا. فَأَهْرَقْتُهَا.

[٥٢٦١] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ عَنْ أَبِيهِ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسًا قَالَ كُنْتُ قَائِمًا عَلَى الْحَيِّ أَسْقِيهِمْ - عُمُومَتِي وَأَنَا أَصْغَرُهُمْ - الْفَضِيخَ، فَقِيلَ حُرِّمَتِ الْخَمْرُ. فَقَالُوا أَكْفِئْهَا. فَكَفَأْتُهَا. قُلْتُ لأَنَسٍ مَا شَرَابُهُمْ قَالَ رُطَبٌ وَبُسْرٌ. فَقَالَ أَبُو بَكْرِ بْنُ أَنَسٍ وَكَانَتْ خَمْرَهُمْ. فَلَمْ يُنْكِرْ

---

[1]) عمدة القاری (ج٢١ص ١٦٧)_

[2]) شرح الكرمانی للبخاری :ج ٢٠ص١٤١)، وعمدة القاری (ج٢١ص١٦٧)_

أَنَسٌ. وَحَدَّثَنِي بَعْضُ أَصْحَابِي أَنَّهُ سَمِعَ أَنَسًا يَقُولُ كَانَتْ خَمْرَهُمْ يَوْمَئِذٍ.

**قوله**: فَضِيخِ زَهْوٍ وَتَمْرٍ: فضيخ شرابوته وئيلې شي، علامه عيني رحمه الله فرمائی چه (شراب يتخذ من البسر ويصب عليه ويترك حتى يغلي) يعنی کچاکهچورې په اوبو کښې واچوی تردې پورې چه په کښې ويشيږی (١) او (زهو بسر ملون) يعنی کچارنګينې کهچوروته وئيلې شی چه په کښې سرخی اوزردی دواړه ظاهرشی. (٢) (فَضِيخِ زَهْوٍ وَتَمْرٍ) يعنی دکچاؤاوپخو کهجورو شراب.

**قوله**: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ عَنْ أَبِيهِ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسًا قَالَ كُنْتُ قَائِمًا عَلَى الْحَيِّ أَسْقِيهِمْ - عُمُومَتِي وَأَنَا أَصْغَرُهُمْ - الْفَضِيخَ: (حى) قبيلې ته وائی (عمومتی، سقيهم) کښې ضمير مفعول نه بدل واقع شوې دې، يامنصوب على الاختصاص دې (٣) حضرت ابن حجر رحمه الله عمومتی دحی نه بدل کړې دې، په دې صورت کښې دابه مجروروی. (٤) يعنی څه دقبيلې سره ولاړ اووم، خپلوترونوته مې شراب ورکول، په دې حال کښې چه زه دټولونه وړوکې اووم، دصحيح مسلم په روايت کښې عبارت داشان دې:

(انی لقائم على الحی على عمومتی اسقيهم من فضيخ لهم وانا اصغرهم سنا) (٥)

**قوله**: اكْفَئْهَا فَكَفَأْنَا: (اکف) په وزن داضرب په معنی د (اقلبها) يعنی داواړوه.

**قوله**: (قلت لانس ما شرابهم): قائل معتمروالد سليمان تيمی دې. (٦) هغه فرمائی چه ماحضرت انس نه تپوس اوکړو چه دهغه شراب څه څيزوو.

**قوله**: فَقَالَ أَبُو بَكْرِ بْنُ أَنَسٍ وَكَانَتْ خَمْرَهُمْ. فَلَمْ يُنْكِرْ أَنَسٌ: دحضرت انس ځوئې ابوبکردخپل والدپه موجودګئ کښې اووئيل چه دهغوی شراب فضيخ وو، کانت کښې دتنه ضميرفضيخ طرفته راجع دې اوفضيخ نه چونکه مرادخمردی.اوخمرمونث سماعی دې،ددې وجې دمونث ضميردې طرفته راجح کړې شوې دې. (ای وکانت الفضيخ خمرهم) (٧) حضرت انس رضی الله عنه په دۀ باندې نکيرنه دې کړې بلکه خاموشه شوې دې.
حضرت انس رضی الله عنه دااضافه دااختصارپه وجه پرېښودې وه ياترې هيره شوی وه. (٨)

---

(١) عمدة القارى :ج٢١ص١٦٩)_
(٢) فتح البارى: ج ١٠ص٤٧)،عمدة القارى(ج٢١ص١٦٩)_
(٣) عمدة القارى :ج٢١ص١٦٩) شرح الكرمانى للبخارى :ج٢٠ص١٤٣)_
(٤) فتح البارى: ج ١٠ص٤٦)_
(٥) صحيح مسلم كتاب الاشربة باب تحريم الخمروبيان انهاتكون من عصيرالعنب،(رقم الحديث ١٩٨٠)_
(٦) فتح البارى: ج ١٠ص٤٨)،عمدة القارى(ج٢١ص١٦٩)_
(٧) عمدة القارى(ج٢١ص١٦٩)_
(٨) عمدة القارى(ج٢١ص١٦٩)و فتح البارى: ج ١٠ص٤٨)_

**قوله**: وَحَدَّثَنِي بَعْضُ أَصْحَابِي أَنَّهُ سَمِعَ أَنَسًا يَقُولُ كَانَتْ خَمْرَهُمْ يَوْمَئِذٍ: ددې قائل هم سليمان تيمى دې [1] دا ماقبل سندسره موصول دې «بعض اصحابى» مبهم دې. شارحينو ليکلى دى چه بکربن عبدالله مزنى اوقتاده ددې مصداق کيدشى. [2]

مطلب دادې چه د«کانت خمرهم» جمله پخپله حضرت انس رضي الله عنه په دې حديث کښې ارشاد اوفرمائيله پورتنى حديث کښې خودده ځوئې وئيلى وو ليکن نيغ په نيغه دهغوى نه هم منقول ده.

[۵۲۲۲] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي بَكْرٍ الْمُقَدَّمِي حَدَّثَنَا يُوسُفُ أَبُو مَعْشَرٍ الْبَرَّاءُ قَالَ سَمِعْتُ سَعِيدَ بْنَ عُبَيْدِ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنِي بَكْرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ أَنَّ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ حَدَّثَهُمْ أَنَّ الْخَمْرَ حُرِّمَتْ، وَالْخَمْرُ يَوْمَئِذٍ الْبُسْرُ وَالتَّمْرُ. [ر: ۲۳۳۲]

**قوله**: يُوسُفُ أَبُو مَعْشَرٍ الْبَرَّاءُ: ديوسف بن يزيد کنيت ابومعشردې، دې دنوم په مقابله کښې په کنيت سره زيات مشهوردې. دۀ ته براء «سپينولو والا» هم وائى. «لانه کان يبرى السهام» يعنى هغه به غشى تراشل [3]

په صحيح بخارى کښې ددۀ صرف يوحديث دې، اودويم دکتاب الطب په آخرکښې دوه رازى حضرت امام بخارى رحمه الله ددۀ دواړه حديثونه په دمتابعت نقل کړى دى. [4]

يحيى بن معين ده ته ضعيف وئيلى دى. [5]

امام ابوداودفرمائى چه «ليس بذاك» [6]

ابن ابوحاتم فرمائى چه «يکتب حديثه» [7]

محمدبن ابى بکرمقدمى ده ته ثقه وئيلى دى. [8]

ابن حبان ده لره په کتاب الثقات کښې ذکرکړې دې. [9]

دحضرت امام بخارى رحمه الله نه علاوه امام مسلم رحمه الله هم ددۀ نه روايتونه نقل کړى دى. [10]

---

[1]) عمدة القارى(ج۲۱ص۱٦۹)و فتح البارى: ج ۱۰ص۴۸)._

[2]) عمدة القارى(ج۲۱ص۱٦۹)و فتح البارى: ج ۱۰ص۴۸)._

[3]) عمدة القارى(ج۲۱ص۱٦۹)و فتح البارى: ج ۱۰ص۴۸)._

[4]) عمدة القارى(ج۲۱ص۱٦۹)و فتح البارى: ج ۱۰ص۴۹)._

[5]) تهذيب الکمال (ج۳۲ص۴۴۸، (رقم الترجمة: ۷۱٦۵)_

[6]) سوالات لاجرى: ۳الترجمة ۳۴۱، وتهذيب الکمال :ج۳۲ص۴۴۹)_

[7]) الجرح والتعديل : ۹الترجمة :۹۸٦)_

[8]) الجرح والتعديل : ۹الترجمة :۹۸٦)_

[9]) کتاب الثقات لابن حبان (ج۸ص٦۳۳۷)_

[10]) تهذيب الکمال:(ج۳۲ص۴۴۹)_

**سعید بن عبیدالله** : ددهٔ هم په بخاري شريف کښې صرف داوه حديثونه دی،یوحديث دادې چه اودويم په کتاب الجزیه کښې تیرشوې دې.(۱)

## ۳-باب الْخَمْرِ مِنَ الْعَسَلِ وَهُوَ الْبِتْعُ

وَقَالَ مَعْنٌ سَأَلْتُ مَالِكَ بْنَ أَنَسٍ عَنِ الْفُقَّاعِ فَقَالَ إِذَا لَمْ يُسْكِرْ فَلَا بَأْسَ. وَقَالَ ابْنُ الدَّرَاوَرْدِيِّ سَأَلْنَا عَنْهُ فَقَالُوا لَا يُسْكِرُ، لَا بَأْسَ بِهِ

[۵۲۶۳] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَنَّ عَائِشَةَ قَالَتْ سُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ-صلى الله عليه وسلم-عَنِ الْبِتْعِ فَقَالَ «كُلُّ شَرَابٍ أَسْكَرَ فَهُوَ حَرَامٌ».

[۵۲۶۴] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَنَّ عَائِشَةَ-رضى الله عنها-قَالَتْ سُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ-صلى الله عليه وسلم-عَنِ الْبِتْعِ وَهُوَ نَبِيذُ الْعَسَلِ، وَكَانَ أَهْلُ الْيَمَنِ يَشْرَبُونَهُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ-صلى الله عليه وسلم-«كُلُّ شَرَابٍ أَسْكَرَ فَهُوَ حَرَامٌ». [ر: ۲۳۹]

[۵۲۶۵] وَعَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِي أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ-صلى الله عليه وسلم قَالَ «لَا تَنْتَبِذُوا فِي الدُّبَّاءِ، وَلَا فِي الْمُزَفَّتِ». وَكَانَ أَبُو هُرَيْرَةَ يُلْحِقُ مَعَهَا الْحَنْتَمَ وَالنَّقِيرَ.

**قوله**: (بتع): دباء په زيراودتاء په سکون سره، شهد نه چه کوم شراب جوړوی، هغې ته بتع وائی.

معین بن عیسی فرمائی چه ما دحضرت امام مالک رحمه الله دفقاع یعنی دمنقادشربت باره کښې تپوس اوکړو نوهغوی اووئیل چه ترکومې پورې هغه نشه اورنه وی نوترهغه وخت پورې ددې استعمال کښې هیڅ حرج نشته دې عبدالعزیزدراوردی هم ددې سوال تپوس اوکړو اوهم داجواب ورکړې شو.

**قوله**: (فقاع): (دفاء په ضمه اودقاف تشدید سره) منقاشربت ته وائی. علامه عینی رحمه الله فرمائی چه شربت عام طوردماتې شوې منقانه نه جوړوی.(۲)

**قوله**: قَالَ «لَا تَنْتَبِذُوا فِي الدُّبَّاءِ، وَلَا فِي الْمُزَفَّتِ». وَكَانَ أَبُو هُرَيْرَةَ يُلْحِقُ مَعَهَا الْحَنْتَمَ وَالنَّقِيرَ: (دباء) دکدو زیړې اوباسی اوچه دې نه کوم لوښې جوړوی هغې ته دباء وائی په دې کښې چونکه مسام کم وی نوددې وجې مشروب کښې دننه زرسکر پیدا کیږی.(۳)

---

۱) عمدة القاری (ج۲۱ص۱۶۹) و فتح الباری: ج ۱۰ص۴۹)_
۲) عمدة القاری (ج۲۱ص ۱۷۰)_
۳) فیض الباری (ج۱ص۱۵۷)_

**قوله: (مزفت):** يعنى هغه لوښې چه په هغې باندې (زفت) مخلې شوې وى، (زفت) د تاركولو پشان به يو تيل ووچه هغه به ئې په جازونو اوكشتوباندې مخل،چه دې ته دننه اوبه ورنشى. دجاهليت په زمانه كښې دشرابوپه لوښوباندې به هم مخلې شو.(¹) ددې په وجه به مشروب كښې سكرنشه پيدا كيدله،

**قوله: (حنتم):** دشرابومنگى ته وائى.دابه عام طورباندې دشين رنگ وو،ددې ترجمه عموما (الجرة الخضراء) سره كوى يعنى شين منگې ياخم (²)

**قوله: (النقر):** د(نقر)معنى دكنستلوده. دې ته (نقير) هم وائى (نقير) دمفعول په معنى كښې دې يعنى كنيستې شوې څيز،ونې، كهجورې وغيره جرړه اوكنى اودې نه لوښې به ئې جوړولو.دې ته (نقر) او(نقير) وائى.(³)

**قوله: (وعن الزهرى):** دا ماقبل سندسره موصول دې، (وكان ابوهريرة) ددې قائل امام زهرى رحمه الله دې.(⁴)

## ۴=بَابُ مَا جَاءَ فِي أَنَّ الْخَمْرَ مَا خَامَرَ الْعَقْلَ مِنَ الشَّرَابِ.

[۵۲۲۶] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي رَجَاءٍ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ أَبِي حَيَّانَ التَّيْمِيِّ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنِ ابْنِ عُمَرَ-رضى الله عنهما-قَالَ خَطَبَ عُمَرُ عَلَى مِنْبَرِ رَسُولِ اللَّهِ-صلى الله عليه وسلم- فَقَالَ إِنَّهُ قَدْ نَزَلَ تَحْرِيمُ الْخَمْرِ، وَهْيَ مِنْ خَمْسَةِ أَشْيَاءَ الْعِنَبِ وَالتَّمْرِ وَالْحِنْطَةِ وَالشَّعِيرِ وَالْعَسَلِ، وَالْخَمْرُ مَا خَامَرَ الْعَقْلَ، وَثَلاَثٌ وَدِدْتُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ-صلى الله عليه وسلم-لَمْ يُفَارِقْنَا حَتَّى يَعْهَدَ إِلَيْنَا عَهْدًا الْجَدُّ وَالْكَلاَلَةُ وَأَبْوَابٌ مِنْ أَبْوَابِ الرِّبَا. قَالَ قُلْتُ يَا أَبَا عَمْرٍو فَشَىْءٌ يُصْنَعُ بِالسِّنْدِ مِنَ الرُّزِّ. قَالَ ذَاكَ لَمْ يَكُنْ عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ-صلى الله عليه وسلم-أَوْ قَالَ عَلَى عَهْدِ عُمَرَ. وَقَالَ حَجَّاجٌ عَنْ حَمَّادٍ عَنْ أَبِي حَيَّانَ مَكَانَ الْعِنَبِ الزَّبِيبَ.

[۴۲۶۷] حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي السَّفَرِ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنْ عُمَرَ قَالَ الْخَمْرُ يُصْنَعُ مِنْ خَمْسَةٍ مِنَ الزَّبِيبِ وَالتَّمْرِ وَالْحِنْطَةِ وَالشَّعِيرِ وَالْعَسَلِ [ر: ۴۳۴۰]

دې باب سره حضرت امام بخارى رحمه الله يو قاعده كليه بيانول غواړى چه كوم يوڅيزعقل لره مدهوش كړى هغه دشرعى اعتبارسره دخمرپه حكم كښې دى.(من الشراب) ئى اوفرمائيل دافيون وغيره ئې تيرويستل. ځكه چه هغه دمشروب قبيل نه نه دې.

---

(¹) فيض البارى (ج١ص١٥٧)_

(²) انوار البارى: ج٣ص١١)_

(³) امداد البارى : (ج٤ص٧٩٥)، اوكورئ مذكوره تفصيل دپاره عمدة القارى :(ج٢١ص٧١) _

(⁴) عمدة القارى :(ج٢١ص٧١)، واخرجه مسلم فى كتاب الاشربة باب النهى عن الانتباذ فى المزفت رقم الحديث :١٩٩٢)، واخرجه النسائى فى الاشربة باب النهى عن النبيذالدباء والمزفت رقم الحديث :٥١٤٠).

حضرت ابن عمر رضی الله عنه فرمائی چه حضرت عمرفاروق رضی الله عنه حضرت نبی کریم ﷺ په منبر او کتل چه خطبه ئې ورکوله اووې فرمائیل چه دشرابو حرمت نازل شوې دې. اوهغه دپنځو څیزونو نه جوړیږی. ① انګورونه ② کهجوري نه ③ غنمونه ④اوربشونه ⑤ شهدونه. اوخمرهغه دې چه عقل لره مدهوش کړی. اودرې خبرې داسې دی چه ددې متعلق ماغوښتل چه حضرت محمد ﷺ زمونږنه دجدا کیدونه مخکښې مخکښې هغه په ښه شان بیان کړی. یودنیکه میراث، دویم دکلاله بیان اودریو دسودمسائل. دابوحیان بیان دې چه ماشعبی رحمه الله ته اووئیل چه ائې ابوعمرو: په سندهـ کښې دوریژنه یومشروب جوړیږی (دهغې څه حکم دې ؟). نوهغوی اوفرمائیل چه دادحضرت نبی کریم په زمانه کښې نه وو. یائې داووئیل چه حضرت عمرفاروق رضی الله عنه په زمانه کښې نه وو. حجاج په خپل روایت کښې دعنب په ځائې دزبیب لفظ استعمال کړې دې.

حضرت ابن حجر رحمه الله فرمائی چه حضرت عمرفاروق رضی الله عنه په دې خطبه کښې ارشاد اوفرمائیلو چه خمردپنځو څیزونووی داپه دې وجه چه خلقوته معلوم شی دقران پاک آیت (انما الخمر والمیسر.....) کښې خمرصرف ماء عنب سره خاص نه دې بلکه چه کوم څیزهم مخامرة عقل یعنی عقل لره مدهوش کولو والا وی نوهغه خمردې اوحرام دې. [1]

علامه عینی رحمه الله جواب کښې فرمائی چه (نعم یتناول غیرالمتخذ من العنب من حیث التشبیه لامن حیث الحقیقة) [2]

**درې خبری چه دهغې احکامو دتفصیل حضرت عمرفاروق رضی الله عنه خواهش اوکړو** : حضرت عمرفاروق رضی الله عنه په خپله خطبه کښې ددریو څیزونوباره کښې تمناکړې ده چه حضرت نبی کریم ﷺ په هغې کښې تفصیلی احکام بیان اوفرمائی.

① جد: یعنی دنیکه ته میراث ملاویږی که نه. اوکه میراث ورته ملاویږی نوڅومره حصه به ملاویږی. په دې کښې دحضرات صحابه کرام رضی الله عنهم نه مادنیکه دمیراث باره کښې اویامسائل داسې یادې کړې چه هغې کښې دهریوحکم دبل نه مختلف وو. [3]

حضرت عبیده رضی الله عنه فرمائی چه حضرت عمرفاروق رضی الله عنه نه مادنیکه دمیراث دمسئلې په سلسله کښې حضرت صحابه کرام راجمع کړل، خوپه دې کښې دچت نه مارراغوزارشو. اوجمع شوی صحابه کرام رضی الله عنهم منتشرشول. نوبیاهغوی اوفرمائیل چه (ابی الله لا ان یختلفوا فی الجد) [4] اوحضرت علی رضی الله عنه قول دې چه (من اراد ان یقتحم جراثیم جهنم فلیقض فی الجد) [5]

② کلاله: ددې تفسیرداسې کړې شوې دې چه دکوم سړی پلار، ځوئې دواړه نه وی، دویمه

---

[1] فتح البارى (ج١٠ص٥٧)_
[2] عمدة القارى :(ج٢١ص١٧١)_
[3] ارشادالسارى: (ج١٢ص٣٣٣) وعمدة القارى (ج٢١ص١٧٢)_
[4] عمدة القارى (ج٢١ص١٧٢)_
[5] عمدة القارى (ج٢١ص١٧٢)_

تشریح کړې شوې ده چه دکوم سړی پلار ،خوئې دواړه نه وی، دریمه تشریح کړې شوې ده چه دچا خوئې نه وی اګرچه والد وی [1]ددې نور هم تفسیرونه شوی دی چه په کتاب التفسیر کښې تیرشوی دی.[2]

**قوله**: وَأَبْوَابٌ مِنْ أَبْوَابِ الرِّبَا: دربا نه ربا الفضل مراد ده ځکه چه ربانسیئه خومتفق علیه ده، په ربا الفضل کښې اختلاف دې.[3] حضرت عمرفاروق رضی الله عنه غوښتل چه حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم ددې احکاموتفصیل بیان اوفرمائی.

**قوله**: (قَالَ قُلْتُ يَا أَبَا عَمْرٍو): دقال فاعل ابوتیمی دې اوابوعمرودعامرشعبی کنیت دې.[4]

**قوله** وَقَالَ حَجَّاجٌ عَنْ حَمَّادٍ عَنْ أَبِي حَيَّانَ مَكَانَ الْعِنَبِ الزَّبِيبَ: داتعلیق عبدالعزیزبغوی په خپل مسند کښې موصولا نقل کړې.[5]

پورته روایت کښې دی چه دکوموپنځوڅیزونوبیان شوې دې،په هغې کښې یوعنب دې، دحجاج عن حماد روایت کښې دعنب په ځائې زبیب ذکرشوی دی لکه څنګه چه دباب په آخری روایت کښې دی.

## ٥=بَاب مَا جَاءَ فِيمَنْ يَسْتَحِلُّ الْخَمْرَ وَيُسَمِّيهِ بِغَيْرِ اسْمِهِ.

[٥٢٤٨]وَقَالَ هِشَامُ بْنُ عَمَّارٍ حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ يَزِيدَ بْنِ جَابِرٍ حَدَّثَنَا عَطِيَّةُ بْنُ قَيْسٍ الْكِلَابِيُّ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ غَنْمٍ الْأَشْعَرِيُّ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو عَامِرٍ -أَوْ أَبُو مَالِكٍ- الْأَشْعَرِيُّ وَاللَّهِ مَا كَذَبَنِي سَمِعَ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ: «لَيَكُونَنَّ مِنْ أُمَّتِي أَقْوَامٌ يَسْتَحِلُّونَ الْحِرَ وَالْحَرِيرَ وَالْخَمْرَ وَالْمَعَازِفَ، وَلَيَنْزِلَنَّ أَقْوَامٌ إِلَى جَنْبِ عَلَمٍ يَرُوحُ عَلَيْهِمْ بِسَارِحَةٍ لَهُمْ، يَأْتِيهِمْ - يَعْنِي الْفَقِيرَ - لِحَاجَةٍ فَيَقُولُوا ارْجِعْ إِلَيْنَا غَدًا. فَيُبَيِّتُهُمُ اللَّهُ وَيَضَعُ الْعَلَمَ، وَيَمْسَخُ آخَرِينَ قِرَدَةً وَخَنَازِيرَ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ».

چه کوم سړې دشرابوبل نوم کیږدی اوداحلال اوګنړی،په دې باب کښې امام دهغه متعلق وعیدبیان کړې دې.

**دحدیث باب ټول راویان شامیان دی.عبدالرحمان بن غنم فرمائی چه (حدثنی ابوعامراوابومالک الاشعری)هغوی ته په دې دوؤنومونو کښې شک دې بیاهم دصحابی په نوم کښې شک مضرنه دې.**[6]

---

[1]) عمدة القاری (ج۲۱ص۱۷۲)_
[2]) کشف الباری : (۱۲۹)
[3]) ارشاد الساری:۱۲ص۳۳۳، وعمدة القاری :(۲۱ص۱۷۲)_
[4]) ارشاد الساری:۱۲ص۳۳۳، وعمدة القاری :(۲۱ص۱۷۲)_
[5]) ارشاد الساری:۱۲ص۳۳۳، وعمدة القاری :(۲۱ص۱۷۲)_
[6]) ارشاد الساری: (ج۱۲ص۳۳،وعمدة القاری)ج۲۱ص۱۷۵)_

دابوداود په روایت کښې (حدثني ابومالك) بغیرشک نه وارد شوې دې.[1]
ابومالک اشعری نوم کښې اختلاف دې،عبدالله بن هانی، عبدالله بن وهب اوعبیدبن وهب.... دامختلف نومونه منقول دی.[2]
عبدالرحمان بن غنم وائی چه ماته ابومالک اشعری داحدیث بیان کړواوپه هغوی دحضرت نبی کریم ﷺ نه واوریدل چه فرمائیل ئې چه نزدې به خماپه امت کښې داسې قوم پیداشی چه زنا، ریښم اوباجې به حلال ګڼړې اوځه قومونه به وی چه دوی ته به درکار کولوځه ضرورت نه وی بلکه شپونکې به رمې سره دماښام په وخت کښې دوی لره رازی.
دوی لره به فقیردخپل ضرورت سره رازی (نودهغه نه دځان خلاصولودپاره) به هغه خلق ده ته اووائی چه (نن نه) سبا مونږ لره راشه، الله به د(سبا راتلو) نه مخکښې مخکښې دوی لره هلاک کړی.هغه غربه په هغوی باندې راپریوزی. اوباقی به دخنزیراوشادوګانوپه شکل کښې دقیامت پورې مسخ کړې شی.

**قوله:** (قَالَ هِشَامُ بْنُ عَمَّارٍ حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ خَالِدٍ): حضرت امام بخاری رحمه الله دلته داشان تعلیقا (قال) فرمائیلی دی.هشام بن عماردحضرت امام بخاری رحمه الله شیوخوکښې دې،اودخپل یوشیخ نه داشان صیغې سره حدیث نقل کولووجه داکیدیشی چه هغوی داحدیث دهغوی سره دمذاکړې په طورآوریدلې وی.[3]

**په حدیث باب باندې دابن حزم اعتراض او دهغې جواب:** علامه ابن حزم رحمه الله (المحلی) کښې داحدیث منقطع ګڼړلې دې.هغوی وئیلی دی چه دحضرت امام بخاری رحمه الله اوهشام رحمه الله په مینځ کښې دلته واسطه منقطع ده.حضرت امام بخاری رحمه الله (قال لی هشام) نه دی وئیلی.لهذا داحدیث متصل نه دې منقطع دې.[4]

لیکن ابن صلاح په (مقدمه علوم الحدیث) کښې دابن حزم په دې اعتراض ردکړې دې. اودائې په ډیرو وجوسره غلط ګرزولې دې.هغوی فرمائی چه حضرت امام بخاری رحمه الله صرف (قال) اووئیل اودخپل یوشیخ نه حدیث نقل کوی. داخویاپه دې وجه کوی چه ثقه راویانونه ددې حدیث نقل کول مشهورروی یاحضرت امام بخاری رحمه الله پخپله هغه حدیث بل ځې کښې موصولا نقل کړې وی یاددې نه علاوه څه بل څه سبب وی، بیاهم دانقطاع سبب نه وی، صورتااګرچه دې ته منقطع وئیلې شی لیکن هغه حکما منقطع نه وی،علوم الحدیث کښې فرمائی چه : (التعلیق فی احادیث من صحیح البخاری قطع اسناده صورته صورة الانقطاع ولیس حکمه

---

[1] ارشاد الساری: (ج۱۲ص۳۳،وعمدة القاری)ج۲۱ص۱۷۵)_
[2] ارشاد الساری: (ج۱۲ص۳۳،وعمدة القاری)ج۲۱ص۱۷۵)_
[3] ارشاد الساری: (ج۱۲ص۳۳،وعمدة القاری)ج۲۱ص۱۷۵)_
[4] المحلي لابن حزم وفتح الباری (ج۱۰ص۶۵)_

ولاعارجا ماوجد ذالك فيه منه من قبيل الصحيح الى قبيل الضعيف... ولا التفات الى ابى محمد بن حزم الظاهرى الحافظ فى رده ما اخرجه البخارى من حديث ابى عامر، اوابى مالك الاشعرى عن رسول الله ﷺ وليكونن فى امتى اقوام يستحلون الحر والحرير والخمر والمعازف، الحديث، من جهة ان البخارى اورده قائلا فيه، قال هشام بن عمار وساقه باسناده فزعم ابن حزم انه منقطع فيما بين البخارى وهشام وجعله جوابا عن الاحتجاج به على تحريم المعازف واخطائى ذالك من وجوه والحديث صحيح معروف الاتصال بشرط الصحيح والبخارى رحمه الله قد يفعل ذالك لكون ذالك الحديث معروفا من جهة الثقات عن ذالك الشخص الذى علقه منه وقد يفعل ذالك لكونه قد ذكر ذلك الحديث فى موضع اخر من كتابه مسندا متصلا وقد يفعل ذالك من الاسباب التى لايصحبها خلل الانقطاع)[1]

ابن صلاح په مقدمه علوم الحديث کښې دابن حزم داعتراض ډيروجوهات غلط ګڼړلی دی ليکن دهغې وجوهاتوتفصيل هغوی په دې کښې ذکرکړې نه دې البته دمسلم شريف شرح کښې هغوی ددې تفصيل بيان کړې دې.

يوخوداچه په حديث کښې بالکل انقطاع نشته دې ځکه چه هشام سره دحضرت امام بخاری رحمه الله ملاقات اوسماع دواړه ثابت دی دويم داچه داحديث بعينه دحضرت امام بخاری رحمه الله نه علاوه نوروسندونوسره متصلا منقول دې (۲)

نوطبرانی رحمه الله، ابن حبان رحمه الله اوامام ابوداود رحمه الله هم په خپلوسندونوسره ددې حديث تخريج کړې دې. (۳)

ابن الملقن په شرح ترمذی کښې فرمائيلی دی چه داحديث مستخرج اسماعيلی کښې پخپله دحضرت امام بخاری رحمه الله نه موصولامنقول دې په دې کښې دی چه (حدثنا الحسن بن سفيان حدثنا هشام بن عمار)[4]

حضرت ابن حجر رحمه الله هم دحضرت امام بخاری رحمه الله دصنيع مختلف وجوهات بيان کړی دی. نو هغه ليکی (الذى يورده البخارى من ذالك على انحاء: منها مايصرح فيه بالسماع عن ذالك الشيخ بعينه امافى نفس الصحيح واما خارجه والسبب فى الاول اما ان يكون اعاده فى عدة ابواب وضاق عليه مخرجه فتصرف حتى لايعيده على صورة واحدة فى مكانين وفى الثانى ان لايكون على شرطه اما لقصور فى بعض روايته واما لكونه موقوفا ومنها مايورده بواسطة عن ذالك الشيخ والسبب فيه كالاول لكنه فى غالب هذا لايكون

---

[1]) اوګورئ علوم الحديث لابن الصلاح النوع الحادى عشر:معرفة المعضل :(۶۷.۶۸)_

[2]) شرح مسلم النووى : (ج۱ص۱۸) واغاثة اللهفان لابن القيم :۱۳۹، وتعليقات علوم الحديث لنورالدين عتر:۶۸).

[3]) اوګورئ سنن ابى داود کتاب اللباس باب ماجاء فى الخمر(رقم الحديث ۴۰۳۹) وفتح البارى(ج۱۰ص۶۶)

[4]) فتح البارى :(ج۱۰ص۶۶)_

مکثرا عن ذالك الشیخ ومنها مالا یورده فی مکان اخرمن الصحیح مثل حدیث الباب فهذا مماکان اشکل امره علی والذی یظهرلی الان انه لقصورفی سیاقه وهوهنا تردد هشام فی اسم الصحابی) (۱)
یعنی حضرت امام بخاری رحمه الله داصنیع مختلفوصورتونوکښې اختیار وی:

① یوصورت امام خوهلته اختیاروی چه چرته حضرت امام بخاری رحمه الله ددې شیخ نه تصریح پخپله صحیح بخاری کښې کړې وی.بیاهم هغه تفنن عبارت دپاره داسې کوی یعنی یوحدیث په مختلفوبابونوکښې دحضرت امام بخاری رحمه الله باربارذکرکول وی.نوپه بعضې مقاماتوباندې هغه دسماع تصریح سره هغه ذکرکوی اوبعضوځایونوکښې دسماع تصریح نه کوی چه عبارت کښې تفنن برقرارپاتې شی اوظاهردی چه په دې صورت کښې هغه حدیث نه منقطع کیږی بلکه موصول کیږی.اګرچه په ظاهراهغه تعلیق وی لیکن په حقیقت کښې هغه موصول وی.

②اودویم صورت دادې چه حضرت امام بخاری رحمه الله دصحیح بخاری نه علاوه چرته بل مقام باندې ددې شیخ نه سماع تصریح کړې ده.لکه الادب المفردکښې،بیاهم صحیح بخاری کښې حضرت امام بخاری رحمه الله سختوشرطونوسره چه کوم التزام کړې دې، هغه روایت ددې شرطونو مطابق نه وی. ددې وجې چه یاخوهغه موقوف کیږی یاامام نیغ په نیغه هغه حدیث ددې شیخ نه نه وی آوریدلې،اویاهغه ځاې کښې هم تفنن عبارت مقصودوی،اوس دموقوف کیدوصورت کښې یابراه راست ددې شیخ نه دنه آوریدوپه صورت کښې خوهغه حدیث ته منقطع وئیلې شی البته تفنن عبارت دپاره داسې کړی دی نوپه دې صورت کښې هغه به موصول وی
لیکن په صحیح بخاری کښې حضرت امام بخاری رحمه الله عموماداسې شیخ نه احادیث زیات نه اخلی.

③ دریم صورت داوی چه حضرت امام بخاری رحمه الله ددې شیخ نه دسماع تصریح نه په صحیح بخاری کښې کوی اونه دصحیح بخاری نه علاوه په څه بل مقام باندې دسماع تصریح کوی.
حضرت ابن حجر رحمه الله فرمائی چه داصورت ماباندې مشتبه پاتې شوې دې لیکن اوس داخبره په پوهه کښې رازی چه امام داشان هلته کوی چه کوم ځائې کښې دسیاق سندکښې څه کمې وی، حدیث باب کښې هم داکمی موجوده ده.ځکه چه هشام ته دصحابی په نوم کښې شک دې .ددې وجې حضرت امام بخاری رحمه الله دسماع تصریح نه ده کړې یعنی هغه حدیث خومنقطع نه دې،حضرت امام بخاری رحمه الله ددې شیخ نه براه راست آوریدلې لیکن چونکه دسندسیاق کښې څه کمزوری وی، ددې وجې حضرت امام بخاری رحمه الله دادموصول په شکل کښې دسماع تصریح سره نه دې نقل کړې.والله اعلم.

**قوله**: یَسْتَحِلُّونَ الْحِرَ: (حر) دحاء کسره اودراء تخفیف سره فرج ته وائی.یعنی هغه خلق چه زنالره حلاله ګڼړی،علامه عینی رحمه الله فرمائی چه اصل کښې (الحرح) دې یوحاء تخفیفا حذف

---

۱) فتح الباری :(ج۱۰ص۶۶)۔

کړې شوه.([1])

ابن التين او بعضي خلقو دا الخز (بالخاء والزاء المعجمتين) نقل کړې دې.([2])

(خز) ريښموته وئيلى شى، ليكن ابن عربى دا تصحيف گرزولې دې.([3]) علامه عينى رحمه الله (خز) والاروايت لره ترجيح ورکړې ده([4]) (خز) به يو خاص کپړه وه چه دوړئى او ريښمونه به جوړولې شوه. دريښمو استعمال دسړو دپاره جائزنه دې، دلته ممانعت ددې خز متعلق دې چه خاص دريښمو جوړه شوې وى.

**قوله: وَالْمَعَازِفَ:** داد (معزفة) ياد (معزف) جمع ده. ددې نه خو يادلهو ولعب الات باجې وغيره مراددى ياددې نه دباجو آوازونه او سندرې وغيره مراددى.([5])

**قوله: (وَلَيَنْزِلَنَّ أَقْوَامٌ إِلَى جَنْبِ عَلَمٍ يَرُوحُ عَلَيْهِمْ بِسَارِحَةٍ):** د (يروح) فاعل (الراعى) محذوف دې چه په دې باندې قرينه لفظ سارحه دې. ددې وجې چه سارحه ځريدونکې چيلئ وغيره ته وائى او ددې دپاره دراعى کيدل ضرورى کيږى.

او بعضې روايتونو کښې (تروح عليهم سارحه) مروى دې، په هغه وخت کښې به د (تروح) فاعل (سارحه) وى.([6])

**قوله: (يَأْتِيهِمْ - يَعْنِي الْفَقِيرَ - لِحَاجَةٍ):** (ياتى) فاعل (الفقير) محذوف دې، ځکه چه راوى (يعنى الفقير) نه ددې وضاحت کوى، بعضې روايتونو کښې (ياتيهم رجل) او بعضو کښې (ياتيهم صاحب حاجة) وارد شوې دې.([7])

**قوله: (فَيُبَيِّتُهُمُ اللَّهُ وَيَضَعُ الْعَلَمَ، وَيَمْسَخُ آخَرِينَ قِرَدَةً وَخَنَازِيرَ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ»):**

د (يبيتهم الله) معنى ده چه الله تعالى به دوى دشپې په وخت هلاک کړى او نورو لره به د شادوګانو او خنزيرانو په شکل کښې مسخ کړى.

دمسخ نه خو يامسخ ظاهرى حقيقى مراد ده او يادا داخلاقو تبديلئ سره کنايه ده چه په دوى کښې دشادوګانو او خنزيرانو عادتونه راشى. دشادو مزاج حرص دې او دخنزير مزاج کښې بې حيائى ده..([8])

---

[1] عمدة القارى :ج۲۱ص۱۷۶)، وارشاد السارى: (ج۱۲ص۳۳۵).
[2] عمدة القارى :ج۲۱ص۱۷۶)، وارشاد السارى: (ج۱۲ص۳۳۵).
[3] عمدة القارى :ج۲۱ص۱۷۶)، وارشاد السارى: (ج۱۲ص۳۳۵).
[4] عمدة القارى :ج۲۱ص۱۷).
[5] عمدة القارى :ج۲۱ص۱۷۶) وفتح البارى (ج۱۲ص۶۸)_
[6] عمدة القارى :ج۲۱ص۱۷۶) وفتح البارى (ج۱۲ص۶۸)_
[7] عمدة القارى :ج۲۱ص۱۷۶) وفتح البارى (ج۱۰ص۶۸)_ وارشاد السارى: (ج۱۲ص۳۳۵)
[8] عمدة القارى :ج۲۱ص۱۷۶) وفتح البارى (ج۱۰ص۶۹)_

حضرت ابن حجر رحمه الله فرمائی چه «والاول اليق بالسياق»[1]
علامه کرمانی رحمه الله ددې حدیث نه داخبره ثابتوی چه په دې امت کښې به جزوی مسخ واقع شی.[2]
اوبعضوئیلی دی چه کوم مسخ داخلاق ده یعنی ددوی اخلاق اوذړۀ خیالات به خراب شی.

**قوله (إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ):** په دې کښې دې طرفته اشاره ده چه ددوی دامسخ به مرګ پورې ممتدوی دسړی مرګ ددې وجې په شان دقیامت وی لکه څنګه چه یو حدیث کښې دی اودې طرفته هم اشاره کیدیشی چه ددوی حشربه دقرده اوخنازیرو په صورت کښې به وی. نوملاعلی قاری رحمه الله فرمائی چه:

«الى يوم القيامة...... اشارة الى ان مسخهم امتدالى الموت وان من مات فقد قامت قيامته ويمكن ان يكون حشرهم على تلك الصور ايضا»[3]

**د حدیث شریف مطلب :** دحدیث شریف مطلب دادې چه ځماپه امت کښې به څه ډلې اوطبقې داسې پیدا کیږی چه هغوی به ریښمی کپړې اوشراب اوموسیقی به جائزګڼړی.اوخپلې استوګنې به په اوچتو او ممتاز او نمایا مقاماتو باندې جوړوی. ددوی دا ممتاز او نمایا حیثیت کتلوسره به غریب خلق به خپلو حاجتونه اوضرورتونه ددوی په مخکښې پیش کوی، دالله تعالی د ډیرو نعمتونو باوجود داخلق به ډیربخیلان وی. راتلونکی حاجت مند د شړلو دپاره به وائی چه سباراشی لیکن دسباراتلونه مخکښې مخکښې به دوی په عذاب کښې مبتلاء شی. علامه طیبی رحمه الله په شرح مشکوة کښې فرمائی چه :

«فان قلت كيف يكون نزول بعضهم الى جنب علم ورواح سارحتهم عليهم ودفعهم ذا الحاجة بالمطل والتسويف سببالهذا العذاب الاليم والنكال الهائل قلت : انهم لمابالغوا فى الشح والمنع بولغ فى العذاب وبيان ذالك ان فى ايثار ذكر العلم على الجبال ايذانا بان المكان مخصب مربع ومقصد لذوى الحاجات فيلزم منه ان يكونوا ذوى ثروة وموئلا للملهوفين فكما دل خصوصية المكان على ذالك المعنى دل خصوصية الزمان فى قوله يروح عليهم سارحتهم وتعديته على المنبهة بالاستعلاء على ان ثروتهم حينئذ اوفر واظهر، ان احتياج الواردين اشد لانهم احوج مايكونون حينئذ وفى قولهم: ارجع الينا غدا ادماج لمعنى الكذب وخلف الموعد واستهزاء بالطالب فاذن تستاهلون ان يعذبوا بكل نكال»[4]

علامه طیبی رحمه الله دحدیث مفهوم داشکال اوجواب په صورت کښې پوهه کړې دې، چه دچا په ذهن کښې داشبه وی چه داخلق ددومره سخت عذاب به ولې مستحق وی ؟

---

[1] فتح البارى (ج۱۰ص۶۹)_
[2] شرح الكرمانى :(ج۲۰ص۱۴۸)_
[3] اوګورئی مرقاة المفتاح شرح مشكوة المصابيح كتاب الرقاق باب البكاء والخوف :(ج۱۰ص۷۹)_
[4] شرح الطيبى كتاب الرقاق باب البكاء والخوف : (ج۱۰ص۲۱،۲۲)_

ددې جواب داورکړې شوچه کله هغه داسې عالیشان اوپرفضامقاماتواوښکلی ځایونوکښې وی هلته حاجت مندبه دتعاون په امیداوتوقع سره ځی.اوددې په وړاندې به دست سوال نیسی. دې خیال سره چه داخلق به ددوی سره مددکوی.لیکن هغوی به ددوی مددنه کوی. بلکه ټال مټول نه به کار اخلی،دوی به شړی، وائی به چه سبا راشئ په بخل اودخیراوښیګړې په منع کولوکښې به مبالغه کوی.نوداالله تعالی دطرفنه به بیاددوی دپاره مقررشوې عذاب هم دومره سخت وی.

**قوله**: (یروح الیهم): ئې اونه وئیل (علیهم)ئې اوفرمائیل (علی)ئې راوړو اواشاره ئې اوکړه چه دوی سره به ډیرزیات دولت ثروت وی. ځکه علی د استعلاء دپاره رازی.

**قوله**: (ارجع الینا غدا): ددوی دروغوطرفته اشاره شوې ده چه هغه دخنداپه طور محتاجوته به اووائی چه سبا راشئ،مقصدصرف دادې چه دوی لره به پرینبودل وی.ددې وجې هغه به دسختې سزامستحق ګرزی.

**د ترجمة الباب سره د حدیث مناسبت**: دترجمة الباب جزء اول (یستحل الخمر) مناسبت خو د حدیث سره بالکل ظاهردې البته دترجمة جزء ثانی په (ویسمیه بغیراسمه) مناسبت ظاهرنه دې. ځکه چه حدیث کښې مطلقا خمرحلال ګنړلوذکرکوی. په دې سلسله کښې دوه خبرې وئیلې شوی دی.

① شارحینولیکلی دی چه حضرت امام بخاری رحمه الله جزء ثانی نه دامام ابوداود رحمه الله روایت طرفته اشاره کړې ده.ابوداود کښې هم دابومالک اشعری رضي الله عنه روایت کښې دا الفاظ دی.(لیشربن ناس من امتی الخمریسمونها بغیراسمها)[1]ابن حبان ددې تصحیح کړې ده [2]ددې حدیث نورهم شواهد دی،نوامام ابن ماجه حضرت عباده بن صامت نه مرفوع روایت نقل کړې دې په دې کښې دی چه (یشرب ناس من امتی الخمرباسم یسمونها ایاه)[3]

ددې مزید تفصیل ابن ابی عاصم روایت کښې دی چه حضرت مسلم خولانی دحضرت عائشه رضي الله عنها په خدمت کښې حاضر شو.هغوی دشام اودهغه ځائې دیخنئ متعلق تپوس اوکړو نووې وئیل چه (اهل شام وبه شراب ځکل چه هغې ته (طلاء) وئیلې شی. حضرت عائشه رضي الله عنها چه دا واوریدل نووې فرمائیل چه (صدق رسول الله ﷺ سمعته یقول ان ناسا من امتی یشربون الخمرویسمونها بغیراسمها)[4]

---

[1] سنن ابی داود،کتاب الاشربة باب مافی الداذی (رقم الحدیث :۳۶۸۸)_

[2] فتح الباری : (ج ۱۰ص ۶۳)_

[3] سنن ابی داود،کتاب الاشربة باب ماجاء الخمرسیمونها بغیراسمها رقم الحدیث :۳۳۸۵)و فتح الباری : (ج ۱۰ص ۶۳)_

[4] فتح الباری : (ج ۱۰ص ۶۴)_

چونکه دا احادیث دحضرت امام بخاری رحمه الله په شرط باندې نه وو، ددې وجې هغوی دخپل عادت مطابق ترجمة الباب کښې دهغوی طرفته اشاره کړې ده.[1]

② ابن منیر فرمائی چه دترجمة الباب جزء ثانی په حدیث کښې واقع دې.د (من امتی) الفاظ سره ثابیږی څکه چه ددې نه معلوم شو چه هغوی به مسلمانان وی. اومستحل خمر کافر وی. لهذاهغه تاویل سره دې لره حلال گنړی.داشان به شراب اونشه آورمشروب څه بل نوم کیږدی طلاء اونبیذوغیره اودابه استعمالوی.[2]نوابن منیر رحمه الله لیکی:

(الترجمة مطابقة للحدیث الا فی قوله : ویسمیه بغیر اسمه فکانه تنح بالاستدلال له بقول فی الحدیث من امتی لانه من کان من الامة المحمدیة یبعد ان یستحل الخمر بغیر تاویل اذلوکان عنادا ومکابرة لکان خارجا من الامة لان تحریم الخمر قد علم بالضرورة)[3]

## ٦- باب الانتباذ في الأوعية والتور.

[۵۲۲۹] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ أَبِي حَازِمٍ قَالَ سَمِعْتُ سَهْلاً يَقُولُ أَتَى أَبُو أُسَيْدٍ السَّاعِدِيُّ فَدَعَا رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فِي عُرْسِهِ، فَكَانَتِ امْرَأَتُهُ خَادِمَهُمْ وَهْيَ الْعَرُوسُ. قَالَتْ أَتَدْرُونَ مَا سَقَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - أَنْقَعْتُ لَهُ تَمَرَاتٍ مِنَ اللَّيْلِ فِي تَوْرٍ. [ر: ۴۸۸۱]

حضرت امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې دننه دلوښودنبیذجوړولومسئله بیان کړې ده.(اوعیة)د(وعاء)جمع ده لوښی ته وائی.[4]او(تور) دیوخاص لوښي نوم دې داد پیتلوتانبې او لرگی اودکاڼړی نه جوړولې شی.[5]علامه ابن المنذرفرمائی چه حضرت نبی کریم ﷺ دپاره چه کوم تورکښې نبیذ جوړول هغه دکاڼړی وو.[6]

حضرت امام بخاری رحمه الله چه ددې باب لاندې کوم حدیث ذکرکړې دې،هغه په کتاب النکاح کښې (باب قیام المراة علی الرجال فی العرس) لاندې تیر شوې دې.[7] سند کښې (سهل) دصحابی نوم دې. ددهٔ نوم حزن وو. حضرنبی کریم ﷺ بدل کړو اوسهل ئې کیخودو.[8] دوی په مدینه

---

[1] الابواب والترجم :(ج۲ص۹۶، و عمدة القاری :ج۲۱ص۱۷۶) وفتح الباری (ج۱۰ص۶۳)_
[2] فتح الباری (ج۱۰ص۶۴)_
[3] عمدة القاری :ج۲۱ص۱۷۷)_
[4] عمدة القاری :ج۲۱ص۱۷۶)
[5] الابواب والترجم :(ج۲ص۹۶، و عمدة القاری :ج۲۱ص۱۷۶) وفتح الباری (ج۱۰ص۶۹) ارشاد الساری :(ج۱۲ص۳۳۶) _
[6] عمدة القاری :ج۲۱ص۱۷۶) وفتح الباری (ج۱۰ص۷۰)_
[7] کشف الباری :کتاب النکاح ۳۰۲:)_
[8] الاصابة فی تمیزالصحابة :ج ۲ص۸۸)_

منوره کښې وفات شوی کښې آخری صحابی وو، دده وفات په کال ۹۱ هجرئ یا ۸۸هجرئ کښې شوی دی.(١)

**قوله:** (فَكَانَتِ امْرَأَتُهُ خَادِمَهُمْ وَهِيَ الْعَرُوسُ): یعنی دابوسید ښځې دمیلمنوخدمت کولواوهغه ناوې وه.دخادم لفظ مذکراومونث دواړودپاره استعمالیږی، ددې وجې په دې ځائې کښې دمونث دپاره استعمالیږی.(٢)

**قوله:** قَالَتْ أَتَدْرُونَ مَا سَقَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ-صلى الله عليه وسلم: حضرت سهل فرمائی چه تاته معلوم دی چه دابوسیدبی بی حضرت نبی کریم ﷺ ته څه ورکړی وو.دې څوکهجورې دشپې نه د رسول کریم ﷺ دپاره دلرگی په یولوښی کښې خوشتې کړې وې د«انقاع» معنی دنقیع جوړولو ده اونقیع په اوبو کښې کهجورو اچولوته وائی.

## ٧-بَاب تَرْخِيصِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فِي الْأَوْعِيَةِ وَالظُّرُوفِ بَعْدَ النَّهْيِ

[٥٢٧٠] حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ مُوسَى حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ أَبُو أَحْمَدَ الزُّبَيْرِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ سَالِمٍ عَنْ جَابِرٍ -رضى الله عنه- قَالَ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- عَنِ الظُّرُوفِ فَقَالَتِ الْأَنْصَارُ إِنَّهُ لَا بُدَّ لَنَا مِنْهَا. قَالَ «فَلَا إِذًا».
وَقَالَ خَلِيفَةُ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ بِهَذَا.

[٥٢٧١] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ أَبِي مُسْلِمٍ الْأَحْوَلِ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ أَبِي عِيَاضٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو -رضى الله عنهما- قَالَ لَمَّا نَهَى النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- عَنِ الْأَسْقِيَةِ قِيلَ لِلنَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- لَيْسَ كُلُّ النَّاسِ يَجِدُ سِقَاءً فَرَخَّصَ لَهُمْ فِي الْجَرِّ غَيْرِ الْمُزَفَّتِ. حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بِهَذَا وَقَالَ فِيهِ لَمَّا نَهَى النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- عَنِ الْأَوْعِيَةِ.

[٥٢٧٢] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ سُفْيَانَ حَدَّثَنِي سُلَيْمَانُ عَنْ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيِّ عَنِ الْحَارِثِ بْنِ سُوَيْدٍ عَنْ عَلِيٍّ -رضى الله عنه- نَهَى النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- عَنِ الدُّبَّاءِ وَالْمُزَفَّتِ. حَدَّثَنَا عُثْمَانُ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنِ الْأَعْمَشِ بِهَذَا.

[٥٢٧٣] حَدَّثَنِي عُثْمَانُ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ إِبْرَاهِيمَ قُلْتُ لِلْأَسْوَدِ هَلْ سَأَلْتَ عَائِشَةَ أُمَّ الْمُؤْمِنِينَ عَمَّا يُكْرَهُ أَنْ يُنْتَبَذَ فِيهِ فَقَالَ نَعَمْ قُلْتُ يَا أُمَّ الْمُؤْمِنِينَ عَمَّا نَهَى النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- أَنْ يُنْتَبَذَ فِيهِ قَالَتْ نَهَانَا فِي ذَلِكَ أَهْلَ الْبَيْتِ أَنْ نَنْتَبِذَ فِي الدُّبَّاءِ وَالْمُزَفَّتِ.

---

(١) ارشاد الساری :(ج١٢ص٣٣٦) عمدة القاری :ج٢١ص١٧٦) ـ
(٢) ارشاد الساری :(ج١٢ص٣٣٦) عمدة القاری :ج٢١ص١٧٦) ـ

قُلْتُ أَمَا ذَكَرْتِ الْجَرَّ وَالْحَنْتَمَ قَالَ إِنَّمَا أُحَدِّثُكَ مَا سَمِعْتُ، أَفَأُحَدِّثُ مَا لَمْ أَسْمَعْ

[۵۲۷۴] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا الشَّيْبَانِيُّ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ أَبِي أَوْفَى - رضي الله عنهما - قَالَ نَهَى النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - عَنِ الْجَرِّ الأَخْضَرِ. قُلْتُ أَنَشْرَبُ فِي الأَبْيَضِ قَالَ لاَ.

دحضرت نبی کریم ﷺ شروع کښې حنتم، دباء وغیره مخصوص لوښوکښې دنبیذ جوړولونه منع کړې وه. لیکن بیاحضرت نبی کریم ﷺ اجازت ورکړې وو. ګویاچه سابقه حکم منسوخ شوې وو

حضرت امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې پنځه حدیثونه نقل کړی دی،

ړومبې حدیث دحضرت جابر رضی الله عنه دې. ددې نه معلوم شوچه حضرت نبی کریم ﷺ چه کوم رخصت ورکړې وو هغه عام وو.

دویم حدیث کښې مزفت اودریم اوڅلورم حدیث کښې دباء اوپنځم حدیث کښې جر اخضر یعنی حنتم متعلق دنهی برقرارساتلوبیان دې، ددې څلوروواړوحدیثونونه معلومیږی چه هغه رخصت عام نه وو. مزفت اودباء اوحنتم په حق کښې دسابقه نهی برقرارساتلووو.

حاصل دکلام دادې چه حضرت امام بخاری رحمه الله ددې باب لاندې پنځه احادیث ذکرفرمائیلی دی چه هغې دروستوڅلورواحادیثونه معلومیږی چه حضرت نبی کریم ﷺ چه کوم رخصت ورکړې دې. هغه عام نه دې، دحضرت امام بخاری رحمه الله دصنیع نه معلومیږی چه هغه دعموم درخصت قائل نه دې (۱)

**مخصوصو لوښو کښې دنبیذ جوړولو مسئله** : په حقیقت کښې دامسئله مختلف فیه ده. په دې باندې خودټولواتفاق دې چه په څلورولوښوکښې دنبیذجوړولوپه ابتداء کښې منع کړې شوې وه. اوپه دې باندې هم اتفاق دې چه دې نه پس حضرت نبی کریم ﷺ رخصت ورکړې وو. بیاهم په دې کښې اختلاف دې چه ټولولوښوکښې رخصت ورکړې شوې دې یا بعضوکښې.

دحضرت امام مالک رحمه الله مسلک دادې چه دبا اومزفت کښې نهی باقی ده اوباقی لوښو کښې نهی منسوخ شوې ده. (۲) بیاددې نهی متعلق دحضرت امام مالک رحمه الله نه دوه قوله منقول دی. یوتحریم اودویم دکراهت لیکن دده راجح قول دکراهت والا دې. په اوجزالمسالک کښې په کتب مالکیه کښې دمختلفواقوالوذکرکولونه پس فرمائی چه «وعلم من ذالك ان المعروف فی مذهب الامام مالك الكراهة علی الدباء والمزفت فقط» (۳)

---

(۱) فتح الباری :ج۱۰ص۷۱، الابواب والتراجم :ج۲ص۹۶)_

(۲) فتح الباری :(ج۱۰ص۷۱)، اوجزالمسالک، کتاب الاشربة ماینهی ان ینتبذ فیه) ج ۱۳ص۳۵۱) الابواب والترجم :ج۲ص۹۶)_

(۳) فتح الباری :(ج۱۰ص۷۱)، اوجزالمسالک، کتاب الاشربة ماینهی ان ینتبذ فیه) ج ۱۳ص۳۵۱) الابواب والترجم :ج۲ص۹۶)_

حضرت امام شافعى رحمه الله هم په دې كښې انتباذ (نبيذ جوړولو) لره مكروه ګڼړى. [1]
دحضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله په يو روايت كښې هم ددې مطابق دى. [2]
**د احنافو مسلک** : حضرات حنفيه په نيز حضرت نبى كريم عام اجازت وركړې دې ددې وجې ددوى په نيز تو لولوښو كښې بلاكراهت نبيذ جوړول جائز دى. هغوى فرمائى چه ددې څلورو لوښو نهى منسوخ شوې ده. [3] لكه څنګه چه دلته په ړومبى روايت كښې دى، دحضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله دويم روايت هم دابو حنيفه رحمه الله مطابق دې. [4]
حضرت امام مالک رحمه الله وغيره دباب باقى احاديثونه استدلال كوى چه په هغې كښې دجرغير مزفت رخصت دې اوجر مزفت اودبا ممانعت دې. چه ددې مطلب دادې چه دبا او مزفت خوعلى حالهما ممنوع دى اودنورو لوښو ممانعت ختم شوې دې اوددې داستعمال اجازت وركړې شوې دې.
حضرات احنافو دباب دړومبى حديث نه علاوه مسلم شريف كښې دحضرت بريده رضى الله عنه روايت نه استدلال كوى چه حضرت نبى كريم ﷺ فرمائى چه (كنت نهيتكم عن الاشربة فى ظروف الادم فاشربوا فى كل وعاء غير ان لا تشربوا مسكرا) [5]
دباب په ړومبى حديث كښې دى چه حضرت نبى كريم ﷺ دظروف (مزفت دبا وغيره) نه منع كړې ده. په دې باندې حضرات انصارو ووئيل چه ددې لوښونه سواهيڅ چاره نشته دې، نوبيا دوى اوفرمائيل چه بيا په دې صورت كښې دا ممانعت نشته.
داحديث حضرت امام بخارى رحمه الله دلته په ړومبى ځل ذكر فرمائيلې دې. [6]
**قوله** : (قَالَ «فَلَا إِذًا : داجواب شرط دې (اى اذا كان لابد لكم منها فلا نهى عنها....) علامه عينى رحمه الله ليكلى دى چه : (وحاصله ان النهى كان على تقدير عدم الاحتياج اليها فلما ظهرت الضرورة اليها قررهم على استعمالهم اياها اونسخ ذالك بوحى نزل اليه فى الحال اوكان الحكم فى تلک المسالة مفوضا الى رايه) [7]

---

[1]) فتح البارى :(ج١٠ص٧١)،اوجز المسالک،كتاب الاشربة ماينهى ان ينتبذ فيه) ج ١٣ص٣٥١) الابواب والترجم :ج٢ص٩٦)_
[2]) فتح البارى :(ج١٠ص٧١)،اوجز المسالک،كتاب الاشربة ماينهى ان ينتبذ فيه) ج ١٣ص٣٥١) الابواب والترجم :ج٢ص٩٦)_
[3]) فتح البارى :(ج١٠ص٧١)،اوجز المسالک،كتاب الاشربة ماينهى ان ينتبذ فيه) ج ١٣ص٣٥١) الابواب والترجم :ج٢ص٩٦)_
[4]) فتح البارى :(ج١٠ص٧١)،اوجز المسالک،كتاب الاشربة ماينهى ان ينتبذ فيه) ج ١٣ص٣٥١) الابواب والترجم :ج٢ص٩٦)_
[5]) صحيح مسلم،كتاب الاشربة باب نهى عن الانتباذ فى المزفت والدباء والحنتم... (ج٣ص٥٨٥)_ رقم الحديث :٩٧٧).
[6]) (٥٢٧٠) الحديث اخرجه ابوداوفى الاشربة باب فى الاوعية: ج٣ص٣٣٢، رقم الحديث ٣٦٩٩) واخرجه الترمذى فى الاشربة باب ماجاء فى الرخصة ان ينبذفى الظروف: (ج٤ص٢٩٥) رقم الحديث :١٨٧٠)_
[7]) عمدة القارى :ج٢١ص١٧٦) وفتح البارى (ج١٠ص٧٢)_ وارشاد السارى)ج١٢ص٣٣٧)_

يعنى دممانعت حكم دعدم ا حتياج په صورت كښې وو ليكن كله چه دخلقو ضرورتونه ظاهرشونو حضرت نبى كريم ﷺ ددوى استعمال برقراراوساتلو اوداهم كيديشى چه سابقه حكم دنوې وحى سره منسوخ شو، دريم صورت داهم كيدشى چه په مسئله كښې حكم برقرارساتل اومنسوخ كول دحضرت نبى كريم ﷺ په رائى باندې پريښودې شوې وو.

**قوله** وَقَالَ لِي خَلِيفَةُ: خليفه بن خياط دحضرت امام بخارى رحمه الله په شيوخو كښې دې داحديث حضرت امام بخارى رحمه الله غالبا په طوردمذاكره آوريدلې دې، ځكه چه د (حدثنى) صيغه ئې ترك كړه او(قال) ئې اوفرمائيل.[1]

درومبى روايت په سند كښې سالم مجردوو يعنى دوالدنوم نه بغيروو، په دې روايت كښې سالم بن ابى الجعد......دوالدنوم راغلې دې. داشان په رومبى روايت كښې سفيان ثورى وو، اوپه دې كښې سفيان بن عينيه مراددې.[2]

**قوله**: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ: ابوعياض په سند كښې ابوعياض نوم كښې مختلف اقوال دى، اودوه قولونه مشهوردى، عمروبن الاسوداوقيس بن ثعلبه ليكن راجح عمروبن الاسوددې.[3] دحضرت نبى كريم ﷺ زمانه هغوى موندلې وه، ليكن شرف دصحابيت هغوى ته حاصل نشو[4] اوبعضو علماء كرامو هغوى په صحابه كرامو كښې شميرلى دى.[5]

ابن سعدددوى په باره كښې اوفرمائيل چه (كان ثقة قليل الحديث)[6]

اوابن عبد البرفرمائى چه (اجمعوا على انه كان من العلماء الثقات)[7]

داحديث حضرت امام بخارى رحمه الله دلته په رومبى ځل ذكركړې دې.[8]

**قوله**: حَدَّثَنِي عُثْمَانُ حَدَّثَنَا.......: داحديث اوددې نه مخكښې مسددوالا حديث دادواړه حضرت امام بخارى رحمه الله دلته په رومبى ځل ذكركړه.[9]

---

[1] عمدة القارى :ج۲۱ص۱۷۸) _ وارشادالسارى)ج۱۲ص۳۳۷)_

[2] عمدة القارى :ج۲۱ص۱۷۸) _

[3] عمدة القارى :ج۲۱ص۱۷۹) وفتح البارى (ج۱۰ص۷۳)

[4] عمدة القارى :ج۲۱ص۱۷۸) وتهذيب التهذيب :۵۰۸)_

[5] تهذيب التهذيب :۵۰۸)_

[6] طبقات ابن سعد :(۷ص۴۴۲).

[7] تهذيب التهذيب :۵۰۸)_ ابن حبان هغوى په كتاب الثقات ج۵ص۷۱ كښې ذكركړې دې ددوى حالات دپاره اوګورئ تهذيب الكمال :ج۲۱ص۵۳۵،۵۴۳) _

[8] ۵۲۷۱) الحديث اخرجه فى مسلم الاشربة باب نهى عن الانتباذفى المزفت: ج۳ص۱۵۸۵) رقم الحديث ۲۰۰۰) واخرجه ابوداود فى الاشربة باب فى الاوعية :ج۳ص۳۳۲،رقم الحديث ۳۷۰۰) واخرجه النسائى فى الاشربة باب فى الرخصة فى نبيذالجر:ج۴ص۱۹۰) رقم الحديث ۶۸۴۱)_

[9] ۵۲۷۳) الحديث اخرجه فى مسلم الاشربة باب نهى عن الانتباذفى المزفت:..[بقيه حاشيه په راروانه صفحه

حضرت ابراهيم نخعى رحمه الله فرمائى چه ماداسودنه تپوس اوكړو چه آياتا دام المؤمنين حضرت عائشه رضي الله عنها ددې څيزمتعلق تپوس كړې وو چه په هغې كښې نبيذجوړول مكروه دى.هغې اوفرمائيل چه آو،مادحضرت عائشه رضي الله عنها نه ددې متعلق تپوس كړې وو. حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم په څه څيزكښې دنبيذجوړلونه منع كړې ده.نوهغې اوفرمائيل چه مونږاهل بيت په دبااومزفت كښې دنبيذجوړولونه حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم منع كړى وو.ابراهيم وائى چه ماتپوس اوكړوچه حضرت عائشه رضي الله عنها جراوحنتم ذكركړې وونوهغوى اوفرمائيل چه څه تاته هغه خبره بيانوم چه ماپخپله آوريدلې ده، آياهغه هم بيان كړم چه ما آوريدلې نه وى.

**قوله**: قَالَتْ نَهَانَا فِي ذَلِكَ أَهْلَ الْبَيْتِ: (اهل البيت) منصوب على الاختصاص دې، علامه عينى رحمه الله فرمائى چه داد (نهانا) ضمير منصوب نه بدل واقع كولې هم شى (١)

**قوله**: (قُلْتُ أَمَا ذَكَرَتِ الْجَرَّ وَالْحَنْتَمَ: ددې قائل ابراهيم نخعى دې،هغه د اسودتپوس كوى چه آياحضرت عائشه رضي الله عنها دجراوحنتم ذكرنه دې كړې.(٢)

**قوله**: أَفَأُحَدِّثُ مَا لَمْ أَسْمَعْ: په دې كښې همزه استفهاميه محذوف دې يعنى آياخه هغه څيزبيان كړم چه مانه دى آوريدلى،دكشميهنى روايت كښې دى چه (افاحدث) اويوروايت كښې د(افنحدث) دجمعې صيغه سره ده.(٣) مطلب دادې چه حضرت عائشه رضي الله عنها جراوحنتم ذكركړې نه دې نوځه ئې دخپل طرف نه څنګه بيان كړم.

**قوله**: حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ......: داحديث حضرت امام بخارى رحمه الله دلته په رومبى ځل بيان كړې دې. (٤)

حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم جراخضرنه منع فرمائيلې ده. حضرت عبدالله بن ابى اوفى تپوس اوكړو چه آياجر ابيض كښې څكلې شو؟ حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم ددې هم ممانعت اوفرمائيو. اصل كښې حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم د(اخضر) ذكردقيداحترازى په طور كړې نه دې بلكه په هغه زمانه كښې دجراخضر استعمال عام وو.ددې وجې بيان ئې دواقع په طور ذكر اوفرمائيلو.(٥) علامه خطابى رحمه الله فرمائى چه په دې كښې دحكم دارومدار دمنګى اخضريا ابيض كيدو باندې نه ده بلكه ددې تعلق صفت سره دې چه داشان منګو كښې نبيذوغيره زرنشه

.....بقيه ازحاشيه گذشته] ج٣ص١٥٨٥) رقم الحديث ٢٠٠٠) واخرجه ابوداود فى الاشربة باب فى الاوعية :ج٣ص٣٣٢.رقم الحديث ٣٧٠٠) واخرجه النسائى فى الاشربة باب فى الرخصة فى نبيذالجر:ج٤ص١٩٠) رقم الحديث ٦٨٤١)_

١) عمدة القارى :ج٢١ص١٨٠) وفتح البارى (ج١٠ص٧٥)_ وارشادالسارى)ج١٢ص٣٣٩)_

٢) عمدة القارى :ج٢١ص١٨٠) وفتح البارى (ج١٠ص٧٥)_

٣) عمدة القارى :ج٢١ص١٨٠) وفتح البارى (ج١٠ص٧٥)_ وارشادالسارى)ج١٢ص٣٣٩)_

٤) (٥٢٧٤) الحديث اخرجه النسائى فى الاشربة باب الجرالاخضر(رقم الحديث :٥١٣١)(٥١٣٢)_

٥) عمدة القارى :ج٢١ص١٨٠) وشرح البخارى للكرمانى :ج٢٠ص١٥١) وفتح البارى (ج١٠ص٧٦)_

او رکیږی. دا دي وجې نې منع او فرمائیله (۱)

علامه عینی لیکی : (حاصل الکلام ان النهی یتعلق بالاسکار، لا بالخضرة ولا بغیرها وقد اخرج ابن ابی اوفی انه کان یشرب نبیذ الجر الاخضر، واخرج ایضا بسند صحیح عن ابن مسعود انه کان ینتبذ له فی الجر الاخضر) (۲)

## ۸- بَاب نَقِيعِ التَّمْرِ مَا لَمْ يُسْكِرْ

[۵۲۷۵] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْقَارِيُّ عَنْ أَبِي حَازِمٍ قَالَ سَمِعْتُ سَهْلَ بْنَ سَعْدٍ أَنَّ أَبَا أُسَيْدٍ السَّاعِدِيَّ دَعَا النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- لِعُرْسِهِ، فَكَانَتِ امْرَأَتُهُ خَادِمَهُمْ يَوْمَئِذٍ وَهْيَ الْعَرُوسُ. فَقَالَتْ مَا تَدْرُونَ مَا أَنْقَعْتُ لِرَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - أَنْقَعْتُ لَهُ تَمَرَاتٍ مِنَ اللَّيْلِ فِي تَوْرٍ. [ر: ۴۸۸۱]

حضرت امام بخاری رحمه الله فرمائی که نقیع تمرکښې اسکار نه وی پیداشوی نوددې په استعمال کښې هیڅ حرج نشته دې، دعدم اسکارقید اګرچه روایت کښې وارد شوې نه دې، مګردا قید دا شان دحدیث نه اخذ کیدیشی چه هغه کهجورې یوشپه ایښودې شوې اویوشپه کښې سکرنه پیدا کیږی. (۳)

## ۹= بَاب الْبَاذَقِ، وَمَنْ نَهَى عَنْ كُلِّ مُسْكِرٍ مِنَ الأَشْرِبَةِ

وَرَأَى عُمَرُ وَأَبُو عُبَيْدَةَ وَمُعَاذٌ شُرْبَ الطِّلاَءِ عَلَى الثُّلُثِ. وَشَرِبَ الْبَرَاءُ وَأَبُو جُحَيْفَةَ عَلَى النِّصْفِ.

وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ اشْرَبِ الْعَصِيرَ مَا دَامَ طَرِيًّا.

وَقَالَ عُمَرُ وَجَدْتُ مِنْ عُبَيْدِ اللَّهِ رِيحَ شَرَابٍ، وَأَنَا سَائِلٌ عَنْهُ، فَإِنْ كَانَ يُسْكِرُ جَلَدْتُهُ.

[۵۲۷۶] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ أَبِي الْجُوَيْرِيَةِ قَالَ سَأَلْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ عَنِ الْبَاذَقِ. فَقَالَ سَبَقَ مُحَمَّدٌ -صلى الله عليه وسلم- الْبَاذَقَ، فَمَا أَسْكَرَ فَهْوَ حَرَامٌ. قَالَ الشَّرَابُ الْحَلاَلُ الطَّيِّبُ. قَالَ لَيْسَ بَعْدَ الْحَلاَلِ الطَّيِّبِ إِلاَّ الْحَرَامُ الْخَبِيثُ.

[۵۲۷۷] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رضى الله عنها - قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- يُحِبُّ الْحَلْوَاءَ وَالْعَسَلَ. [ر: ۴۹۱۸]

باذق دذال په فتحه اوکسره دواړوسره استعمالیږی، دادباذه معرب دې، باذه شرابوته وائی. (۴)

---

(۱) عمدة القاری :ج۲۱ص ۱۸۰) وشرح البخاری للکرمانی :ج۲۰ص ۱۵۱) وفتح الباری (ج۱۰ص۷۶)_

(۲) عمدة القاری :ج۲۱ص ۱۸۰)

(۳) فتح الباری (ج۱۰ص۷۷)_ ولابواب والتراجم ج۲ص ۹۶) وارشادالساری)ج۱۲ص ۳۴۰)_

(۴) فتح الباری (ج۱۰ص۷۷)_ ولابواب والتراجم ج۲ص ۹۶) وارشادالساری)ج۱۲ص ۳۴۰)_

**قوله**: وَرَأَى عُمَرُ وَأَبُو عُبَيْدَةَ وَمُعَاذٌ شُرْبَ الطِّلَاءِ عَلَى الثُّلُثِ: حضرت عمرفاروق رضي الله عنه حضرت ابوعبيده رضي الله عنه اوحضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه پخ شوي يوحصه پاتې شوي طلاء لره جائزګڼړي

دحضرت عمرفاروق رضي الله عنه اثرلره حضرت امام مالک رحمه الله اودحضرت عبيده اوحضرت معاذ رضي الله عنه اثرلره ابن ابی شيبه موصولا نقل کړې دې.(١)

**قوله**: وَشَرِبَ الْبَرَاءُ وَأَبُو جُحَيْفَةَ عَلَى النِّصْفِ: حضرت براء بن عازب اوابوجحيفه (وهب بن عبدالله) پوخ شوې نيم پاتې کيدووالا طلاء لره نوش کړې ده. حضرت براء اوابوجحيفه اثرلره ابن ابی شيبه موصولا نقل کړې دې.(٢)

**قوله**: وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ اشْرَبِ الْعَصِيرَ مَا دَامَ طَرِيًّا: يعنی دانګوروواوبه چه ترکومې پورې تازه وی څکئ ئې، داتعليق امام نسائی دابوثابت ثعلبی په طريق باندې موصولانقل کړې دې.هغه فرمائی:

(کنت عند ابن عباس فجاء رجل يسأله عن عصير فقال اشربه ماكان طريا قال: انی طبخت شربا وفی نفسی منه شئ فقال اکنت شاربه قبل ان تطبخه قال لا قال فان ان النار لا تحل شيئا قد حرم)(٣)

**قوله**: وَقَالَ عُمَرُ وَجَدْتُ مِنْ عُبَيْدِ اللَّهِ رِيحَ شَرَابٍ، وَأَنَا سَائِلٌ عَنْهُ، فَإِنْ كَانَ يُسْكِرُ جَلَدْتُهُ: حضرت عمرفاروق رضي الله عنه فرمائی چه ماخپل (ځوئې) دعبدالله دخلې نه دشرابوبوئی محسوس کړې دې،څه به ددې تحقيق کوم،که هغه مسکرشونوهغه ته به کوړې ورکوم.

روايت کښې رازی چه حضرت عمرفاروق رضي الله عنه دتحقيق کولونه پس په هغه باندې حدجاری کړو.(٤)

داتعليق حضرت امام مالک رحمه الله موصولانقل کړې دې.(٥)

**قوله**: فَقَالَ سَبَقَ مُحَمَّدٌ - صلى الله عليه وسلم - الْبَاذَقَ، فَمَا أَسْكَرَ فَهُوَ حَرَامٌ:

① حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه دباذق باره کښې تپوس اوکړې شونوهغوی اوفرمائيل چه حضرت نبی کريم صلى الله عليه وسلم دباذق نه مخکښې ددنيانه تشريف اوړې وو(يعنی دباذق نومې څيزخودې نه پس پيدا شوپه دې زمانه کښې حضرت نبی کريم صلى الله عليه وسلم نه وو لهذا اوس خوکليه قاعده داده چه (ماأسكر فهو حرام) که يومشروب مسکردې نوحرام دې ګڼی نه.(٦)

---

١) عمدة القاری :ج٢١ص١٨١) وفتح الباری (ج١٠ص٧٨)_ وارشادالساری)ج١٢ص٣٤١)_

٢) عمدة القاری :ج٢١ص١٨١) وفتح الباری (ج١٠ص٧٨)_ وارشادالساری)ج١٢ص٣٤١)_

٣) عمدة القاری :ج٢١ص١٨١) وفتح الباری (ج١٠ص٧٨)_

٤) عمدة القاری :ج٢١ص١٨١) وفتح الباری (ج١٠ص٧٨)_ وارشادالساری)ج١٢ص٣٤١)_

٥) عمدة القاری :ج٢١ص١٨١) وفتح الباری (ج١٠ص٧٨)_ وارشادالساری)ج١٢ص٣٤١)_

٦) تعليقات لامع الداری :(ج٩ص٤٣٧) _

② ددې جملې دويم مطلب دابيان شوې دې چه حضرت نبى كريم ﷺ دشرابوباذق نوم اينبودلونه مخكښې داحرام ګرزولې دې، نوابن بطال رحمه الله فرمائى چه (اى سبق محمد التحريم للخمر قبل تسميتهم لها بالباذق)[1]

**قوله**: قَالَ الشَّرَابُ الْحَلَالُ الطَّيِّبُ. قَالَ لَيْسَ بَعْدَ الْحَلَالِ الطَّيِّبِ إِلَّا الْحَرَامُ الْخَبِيثُ: حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائى چه شراب هغه دى چه حلال طيب وى، حلال طيب نه پس حرام خبيث پاتې كيږى ځكه چه كوم مشكوك اشربه دى هغه هم دحرام قائمقام دى.

مولانا رشيد احمد ګنګوهى رحمه الله په (لامع الدرارى) كښې ددې جملې تشريح هم فرمائى:

(ان شراب المسلم ماكان حلال طيبا واما ما سواه فهو الحرام الخبيث ليس بشراب المسلم)[2]

بعضوئيلى دى چه ددې قول قائل معلوم نه دې چه څوک دې، ليکن ظاهرهم دادې چه دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما قول دې:[3]

## ۱۰ = باب مَنْ رَأَى أَنْ لَا يَخْلِطَ الْبُسْرَ وَالتَّمْرَ إِذَا كَانَ مُسْكِرًا، وَأَنْ لَا يَجْعَلَ إِدَامَيْنِ فِي إِدَامٍ

[۵۲۷۸] حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا هِشَامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ أَنَسٍ رضى الله عنه - قَالَ إِنِّي لَأَسْقِي أَبَا طَلْحَةَ وَأَبَا دُجَانَةَ وَسُهَيْلَ ابْنَ الْبَيْضَاءِ خَلِيطَ بُسْرٍ وَتَمْرٍ إِذْ حُرِّمَتِ الْخَمْرُ، فَقَذَفْتُهَا وَأَنَا سَاقِيهِمْ وَأَصْغَرُهُمْ، وَإِنَّا نَعُدُّهَا يَوْمَئِذٍ الْخَمْرَ. وَقَالَ عَمْرُو بْنُ الْحَارِثِ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ سَمِعَ أَنَسًا. [ر: ۲۳۳۲]

[۵۲۷۹] حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ أَخْبَرَنِي عَطَاءٌ أَنَّهُ سَمِعَ جَابِرًا - رضى الله عنه - يَقُولُ نَهَى النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - عَنِ الزَّبِيبِ وَالتَّمْرِ وَالْبُسْرِ وَالرُّطَبِ.

[۵۲۸۰] حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا هِشَامٌ أَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي قَتَادَةَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - أَنْ يُجْمَعَ بَيْنَ التَّمْرِ وَالزَّهْوِ، وَالتَّمْرِ وَالزَّبِيبِ، وَلْيُنْبَذْ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا عَلَى حِدَةٍ.

**د خليطين مسئله**: حضرت نبى كريم ﷺ دمنقا او كهجورو يوځائې كولو او نبيذ جوړولو نه منع فرمائيلې وه، ځكه چه داشان دواړه يوځائې كولو سره زر سكر پيدا كيږى، په دې كښې اختلاف دې:

[1] عمدة القارى :ج۲۱ص۱۸۲) وفتح البارى (ج۱۰ص۸۱)_
[2] تعليقات لامع الدارى :(ج۹ص۴۳۷) _
[3] عمدة القارى :ج۲۱ص۱۸۲) وفتح البارى (ج۱۰ص۸۵)_ لامع الدارى :(ج۹ص۴۳۸) _

① دائمه ثلاثه په نيز خليطين ناجائزاو حرام دى.[1]
② دخليطين متعلق چه كومه نهى وارد شوې ده چه هغه نهى تنزيهى ده لهذا خليطين چه كله مسكرنه وى، حرام نه دى، امام نووى رحمه الله دادحضرت امام شافعى رحمه الله مذهب گرزولې دې. اوجمهورعلماء كرام هم داقول دې.[2]
③ خليطين كښې څه حرج نشته دې، بلاكراهت جائزده. په دې شرط چه مسكرنه وى. حضرات حنفيه نه هم دا مسلک روايت شوې دې.[3]
دجمهورواستدلال داحاديث باب نه دې، چه دې كښې دخليطين منع كړې شوې ده، امام نووى رحمه الله دامام اعظم په دې مسئله باندې تنقيد كړې دې اوليكى:
(انكرعليه الجمهور وقالوا: هذه منابذة لصاحب الشرع فقد ثبتت الاحاديث الصحيحة الصريحة فى النهى عنه فان لم يكن حراماكان مكروها)[4] يعنى داحاديث نهى په وجه كه حرام نه دى نوكم ازكم دې لره ضرورمكروه گرزول پكار دى.
ليكن علامه عينى رحمه الله دامام نووى رحمه الله ترديد كوى اوفرمائى چه:
(هذه جراة شنيعة على امام اجل من ذالك وابوحنيفة لم يكن قال ذالك برايه وانما مستنده فى ذالك احاديث)[5] يعنى امام ابوحنيفه رحمه الله دخپل طرفنه داخبره نه ده وئيلې ده بلكه داحاديث په بنياد باندې دامسلک ئې اختيار كړې دې.
**دحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دلائل:** حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دلاندينواحاديثونه استدلال كوى. ① سنن ابى داود كښې دصفيه بنت عطيه روايت كښې دى، هغه فرمائى چه:
(دخلت مع نسوة من عبدالقيس على عائشه فسالناها عن التمر والزبيب فقالت كنت اخذ قبضة من تمر وقبضة من زبيب فالقيه فى اناء فامرسه ثم اسقيه النبى صلى الله عليه وسلم)[6]
په دې روايت كښې تصريح ده چه حضرت عائشه رضى الله عنها كهجورې اومنقا يوځائې كړې وې اونبيذئې جوړكړې وو. اوحضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم باندې ئې څكولې وو. البته په دې حديث كښې ابوبحرنومې يو رواى باندې ابن حزم اعتراض كړې دې چه هغه مجهول دې[7] ليكن علامه عينى رحمه الله فرمائى چه ابوبحر مشهوراومعروف راوى دې اوددهٔ نوم عبدالرحمان بن

---

[1]) عمدة القارى :ج۲۱ص۱۸۲) وفتح البارى (ج۱۰ص۸۵)_ لامع الدارى :(ج۹ص۴۳۸)_
[2]) عمدة القارى :ج۲۱ص۱۸۳) وفتح البارى (ج۱۰ص۸۴)_ وشرح الكرمانى :۲۰ص۱۵۴)_
[3]) عمدة القارى :ج۲۱ص۱۸۳) وفتح البارى (ج۱۰ص۸۴)_ وشرح الكرمانى :۲۰ص۱۵۴)_
[4]) عمدة القارى :ج۲۱ص۱۸۳) وفتح البارى (ج۱۰ص۸۴)_ وشرح الكرمانى : ۲۰ص۱۵۴) وارشاد السارى: (ج۱۲ص۳۴۴) والابواب والتراجم :(ج۲ص۹۶)_
[5]) عمدة القارى :ج۲۱ص۱۸۴) والابواب والتراجم :(ج۲ص۹۶)_
[6]) سنن ابى داود، كتاب الاشربة باب فى الخلطين)ج۳ص ۳۳۳،۳۳۴.(رقم الحديث ۳۷۰۸).
[7]) عمدة القارى :(ج۲۱ص۱۷۴)_

عثمان دي.(۱)

ابن حبان په کتاب الثقات کښې داذکرکړی دی.(۲) حضرت امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی چه (لابأس به)(۳) ابن عدی فرمائی چه (وهوممن یکتب حدیثه)(۴) عجلی ددې توثیق کړې دې.(۵)

② په سنن ابی داود کښې دحضرت عائشه رضی الله عنها روایت دې (ان رسول الله کان ینبذ له زبیب فیلقی فیه تمروتمرفیلقی فیه الزبیب)(۶)

③ حضرت امام محمد رحمه الله په کتاب الاثارکښې دحضرت ابن عمر رضی الله عنه نه هم دخلیطین استعمال نقل کړې دې.(۷)

احادیث باب لره حضرات احناف دمذکوره احادیثوپه بیناد منسوخ کړې دی. هغه فرمائی چه په شروع کښې ددې ممانعت وولیکن دې نه پس اجازت ورکړې شوې وو.(۸)

**قوله**: إِذَا كَانَ مُسْكِرًا : ترجمة الباب کښې دحضرت امام بخاری رحمه الله ذکرشوی دې قیدلره ابن بطال غلط ګرزولې دې،اووئیلې ئې دی چه نهی عن الخیطین عام ده. که هغه مسکروی اوکه نه وی. ددې وجې نهی داسکارقیدسره مختص کول درست نه دی.(۹)

بعضوئیلې دی چه دحضرت امام بخاری رحمه الله په نیزخلیطین قبل الأسکارچونه جائزدی،دددې وجې هغوی داسکارقیدلګولې دې.(۱۰)

اوداهم کیدیشی چه حضرت امام بخاری رحمه الله ددې نه دخلیطین قبل ممانعت کړې وی ددواؤ علتونوطرفته اشاره ئې کړې وی چه دخلیطین ممانعت یاداسکارپه وجه سره وی، اویااسراف په وجه سره وی،دباب په رومبی حدیث کښې علت اولی باندې دلالت کوی، اودباب په اخری دوه حدیثونه علت ثانیه باندې دلالت کوی.(۱۱)

**قوله**: وَأَنْ لَا يَجْعَلَ إِدَامَيْنِ فِي إِدَامٍ : دوه ادام دې یوادام جوړنه کړې شی.لکه تمراوزبیب دواړه چه یوځائې شی اودواړه یوعرق اوادام جوړکړې، شی،دادرست نه دی.

---

(۱) عمدة القاری :(ج۲۱ص ۱۷٤)_

(۲) عمدة القاری :(ج۲۱ص ۱۷٤)_

(۳) تهذیب الکمال :ج۱۷ص ۱۷٤_

(۴) الکامل فی ضعفاء الرجال :(ج۲ص۲۷۳)_

(۵) تهذیب التهذیب :(۶۲۲۷)_

(۶) سنن ابی داود،کتاب الاشربة باب فی الخلطین)ج۳ص ۳۳۳،۳۳٤.(رقم الحدیث ۳۷۰۸).

(۷) کتاب الاثار: ۱۲۰)_

(۸) اعلاء السنن،کتاب الاشربة باب اباحة الخلیطین(ج۱۸ص۳۷)_

(۹) عدة القاری (ج۲۱ص۱۸۲، والابواب والتراجم :ج۲ص۹۶، وفتح الباری :(ج ۱۰ص۸۳)_

(۱۰) عدة القاری (ج۲۱ص۱۸۲، والابواب والتراجم :ج۲ص۹۶،_

(۱۱) عدة القاری (ج۲۱ص۱۸۲، والابواب والتراجم :ج۲ص۹۶_

**قوله**: وَقَالَ عَمْرُو بْنُ الْحَارِثِ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ سَمِعَ أَنَسًا: داتعليق دې په پورتنی حديث كښې (قتادة عن انس...عنعنه) اوپه دې تعليق كښې دقتاده دسماع تصريح ده.ابونعيم داتعليق موصولانقل كړې دې.[1]

دباب آخرى دوه حديثونه حضرت امام بخارى رحمه الله په رومبى ځل ذكركړى دى. په آخرى حديث كښې (جمع بين التمر والزهو) نه منع كړې شوې ده.اوهريونه ځانله دنبيذ جوړولوحكم كړې شوې دې.

ددې وجه داده چه كله دوه څيزونه يوځائې كړې شى،نوپه هغې كښې زر نشه پيدا كيږى.

## ١١= باب شُرْبِ اللَّبَنِ

وَقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى (مِنْ بَيْنِ فَرْثٍ وَدَمٍ لَبَنًا خَالِصًا سَائِغًا لِلشَّارِبِينَ).

[٥٢٨١] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا يُونُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ-رضى الله عنه- قَالَ أُتِيَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِهِ بِقَدَحِ لَبَنٍ وَقَدَحِ خَمْرٍ. [ر: ٣٢١٤]

حضرت امام بخارى رحمه الله ددې باب نه اشربه مباحه ذكرفرمائى دحضرت امام بخارى رحمه الله مقصد دادې چه پئ ځكل جائزدى.بعضې علماء كراموئيلى دى چه حضرت امام بخارى رحمه الله په دې خلقوباندې ردكوى، چه هغوى وائى چه كثرت لبن نه اسكارپيدا كيږى.داقول غلط دې ځكه چه په پئيو كښې مطلقاداسكاروكيفيت نه پيدا كيږى.[2]

**قوله**: وَقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى: مِنْ بَيْنِ فَرْثٍ وَدَمٍ لَبَنًا خَالِصًا سَائِغًا لِلشَّارِبِينَ:

اوستاسودپاره په ځناورو كښې هم يوسبق موجوددې دخيټونه سوټو اووينوپه مينځ كښې يوڅيزپه تاسوباندې ځكلې شى يعنى خالص پئ چه ځكونكوته ډيرښه معلوميږى.

ځناوروابنه خورى، كله چه هغه ددې په معده كښې جمع كيږى نودمعدې عمل سره دخوراك فضله لاندې كينى اوپورته پئ راشى.اوددې دپاسه وينه،بياځيګردادرې واړه بيل بيل مقاماتوكښې تقسيموى. وينى لره په رګونوكښې اوپئيولره تئيونوته رسوى، داشان دواړ ګندونوپه مينځ كښې صفااوخالص پئيو الله تعالى تخليق كوى اودالله تعالى يولوئې قدرت دې.[3]

[٥٢٨٢] حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ سَمِعَ سُفْيَانَ أَخْبَرَنَا سَالِمٌ أَبُو النَّضْرِ أَنَّهُ سَمِعَ عُمَيْرًا مَوْلَى أُمِّ الْفَضْلِ يُحَدِّثُ عَنْ أُمِّ الْفَضْلِ قَالَتْ شَكَّ النَّاسُ فِي صِيَامِ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَوْمَ

---

[1]) عدة القارى (ج٢١ص١٨٣، وفتح البارى :(ج ١٠ص٤٨)_

[2]) والابواب والتراجم :ج٢ص٩٧_

[3]).الجامع لاحكام القران للقرطبى :(١٠ص١٢٥)_

عَرَفَةَ، فَأَرْسَلْتُ إِلَيْهِ بِإِنَاءٍ فِيهِ لَبَنٌ فَشَرِبَ. فَكَانَ سُفْيَانُ رُبَّمَا قَالَ شَكَّ النَّاسُ فِي صِيَامِ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَوْمَ عَرَفَةَ فَأَرْسَلَتْ إِلَيْهِ أُمُّ الْفَضْلِ. فَإِذَا وُقِفَ عَلَيْهِ قَالَ هُوَ عَنْ أُمِّ الْفَضْلِ. [ر: ١٥٧٥]

سفيان ابن عينيه دا حديث په دواؤ طريقوسره نقل كړې دې

① يوئې دحضرت ام الفضل نه موصولانقل كړې دې. هغه فرمائى چه دعرفه په ورځ د حضرت نبى كريم ﷺ دروژې متعلق خلقوته شك شو(چه)حضرت نبى كريم ﷺ روژه نيولې ده كه نه؟ ما دحضرت نبى كريم ﷺ په خدمت كښې په لوښى كښې پئ اوليږل. حضرت نبى كريم ﷺ نوش اوفرمائيل. (چه ددې نه معلوم شوچه د حضرت نبى كريم ﷺ روژه نه وه).

② په دويم طريق كښې ئې دامرسلانقل كړې دې. اوفرمائى چه حضرت ام الفضل د حضرت نبى كريم ﷺ په خدمت كښې پئې اوليږل، په ړومبى طريق كښې پخپله حضرت ام الفضل فرمائى چه مااوليږل اوپه دې دويم طريق كښې راوى وائى چه هغوى اوليږل.

**قوله**: فَإِذَا وُقِفَ عَلَيْهِ: [1] يعنى سفيان چه كله داحديث موقوفاروايت كړونودهغوى نه تپوس اوكړې شوچه دا روايت مرسل دې ياموصول دې ؟ هغوى اوفرمائيل چه (هو عن ام الفضل) يعنى داحديث ام الفضل نه روايت دې اودموصول په درجه كښې دې. [2]

[٥٢٨٣] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنِ الأَعْمَشِ عَنْ أَبِي صَالِحٍ وَأَبِي سُفْيَانَ عَنْ جَابِرِ بْنِ اللَّهِ قَالَ جَاءَ أَبُو حُمَيْدٍ بِقَدَحٍ مِنْ لَبَنٍ مِنَ النَّقِيعِ، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «أَلاَّ خَمَّرْتَهُ وَلَوْ أَنْ تَعْرُضَ عَلَيْهِ عُودًا».

حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا صَالِحٍ يَذْكُرُ - أُرَاهُ - عَنْ جَابِرٍ - رضى الله عنه - قَالَ جَاءَ أَبُو حُمَيْدٍ - رَجُلٌ مِنَ الأَنْصَارِ - مِنَ النَّقِيعِ بِإِنَاءٍ مِنْ لَبَنٍ إِلَى النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «أَلاَّ خَمَّرْتَهُ، وَلَوْ أَنْ تَعْرُضَ عَلَيْهِ عُودًا». وَحَدَّثَنِي أَبُو سُفْيَانَ عَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - بِهَذَا.

داحديث حضرت امام بخارى رحمه الله دلته په ړومبئ ځل ذكر فرمائيلې دې. [3]

حضرت جابر رضي الله عنه فرمائى چه ابوحميد مقام نقيع نه دپئيويوپياله دحضرت نبى كريم ﷺ په خدمت كښې پيش كړه.نوهغوى ته حضرت نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه دادې ولې نه دى پټ كړې، څه لرګې به دې په دې باندې عرضى طوراېښودې وې.

**قوله**: (نقيع): دامدينه منوره نه شل فرسخه فاصله باندې وادى عقيق كښې ديوځائې نوم

---

[1]) فتح البارى :(١٠ص٨٨،وعمدة القارى: (ج٢١ص١٨٥، وارشادالسارى: (ج١٢ص٣٤٦)_

[2]) فتح البارى :(١٠ص٨٨،وعمدة القارى: (ج٢١ص١٨٥، وارشادالسارى: (ج١٢ص٣٤٦)_

[3]) (٥٢٨٣) الحديث اخرجه مسلم فى الاشربة باب شرب النبيذوتخمير الاناء :(ج٣ص١٥٩٣)، (رقم الحديث: ٢٠١٠)_

وو چه چرته چيلئ وغيره به څريدلي.[1]

**قوله**: «أَلَا خَمَّرْتَهُ، وَلَوْ أَنْ تَعْرُضَ عَلَيْهِ عُودًا»: (الا) په معنى د (هلا) ده، (خمر) د (تخمير) په معنى دپټولو رازى.[2]

**قوله**: (تعرض): (بضم الراء) عرض يعنى پلن والى كښې ايښودل. مطلب دادې كه څه نور څيز ملاؤشوى نه وو نوكم ازكم څه لرګى به دې كم ازكم په دې باندې ايخودې وې. علامه عينى فرمائى:

«والمعنى ان لم تغطه فلا اقل من عود تعرض به عليه اى تمده عرضا لا طولا ومن فوائده: صيانته من الشيطان فانه لايكشف الغطاء ومن الوباء الذى ينزل من السماء فى ليلة من السنة ومن النجاسة والمقذرات ومن الهامة والحشرات ونحوها»[3].

يعنى كه مكمل پټ نه وى نوكم ازكم لرګي دې ددې په پلن والى باندې كيږدى. دداشان پټولوباندې به يوفائده داوى چه دشيطان نه به په حفاظت كښې وى. ځكه چه شيطان سرنه شى اخواكولې. دويمه فائده به داوى چه دهغه وباء نه به په حفاظت كښې وى چه په كال كښې يوځل دآسمان نه دشپې په وخت كښې نازليږى اوپه ښكاره لوښوكښې پريوزى. دريمه فائده به داوى چه دچينجووغيره نه به په حفاظت كښې وى.

[۵۲۸۴] حَدَّثَنِي مَحْمُودٌ أَخْبَرَنَا النَّضْرُ أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ رضى الله عنه قَالَ قَدِمَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم مِنْ مَكَّةَ وَأَبُو بَكْرٍ مَعَهُ قَالَ أَبُو بَكْرٍ مَرَرْنَا بِرَاعٍ وَقَدْ عَطِشَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم قَالَ أَبُو بَكْرٍ رضى الله عنه فَحَلَبْتُ كُثْبَةً مِنْ لَبَنٍ فِي قَدَحٍ، فَشَرِبَ حَتَّى رَضِيتُ، وَأَتَانَا سُرَاقَةُ بْنُ جُعْشُمٍ عَلَى فَرَسٍ فَدَعَا عَلَيْهِ، فَطَلَبَ إِلَيْهِ سُرَاقَةُ أَنْ لَا يَدْعُوَ عَلَيْهِ، وَأَنْ يَرْجِعَ فَفَعَلَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم -. [ر: ۲۳۰۷]

**قوله**: فَحَلَبْتُ كُثْبَةً مِنْ لَبَنٍ فِي قَدَحٍ: (كثبة) دكاف په ضمه اودثاء په سكون سره، دپټولړشان مقدارته وائى. يادومره مقدارچه دهغې نه يوپياله ډكه شى يايوځل لوشلوكښې چه څومره راشى هغې ته كثبه وائى.[4] مطلب دادې چه ماپه پياله كښې په څه مقداركښې پئ اولوشل.

داحديث په كتاب المناقب كښې تفصيل سره تيرشوې دې. (كتاب المناقب باب كان النبى ﷺ تنام عينه ولاينام قلبه).

---

[1] فتح البارى: (۱۰ص۸۹، وعمدة القارى: (ج۲۱ص۱۸۶، وارشادالسارى: (ج۱۲ص۳۴۶)_

[2] فتح البارى: (۱۰ص۸۹، وعمدة القارى: (ج۲۱ص۱۸۶، وارشادالسارى: (ج۱۲ص۳۴۶)_

[3] فتح البارى: (۱۰ص۸۹، وعمدة القارى: (ج۲۱ص۱۸۶، وارشادالسارى: (ج۱۲ص۳۴۶)_

[4] فتح البارى: (۱۰ص۸۹، وعمدة القارى: (ج۲۱ص۱۸۶، وارشادالسارى: (ج۱۲ص۳۴۶)_

**يو اشكال اودهغې جوابونه** : باقي داخبره پاتې كيږي چه داشان دچاپۍ استعمالول څنګه صحيح كيديشي، ددې مختلف جوابونه وركړې شوي دي :

① چه كوم يوشپونكى پۍ اولوشل،ده ته دمالک دطرفنه اجازت وو.

﴿۲﴾ ددۀ په عرف كښې داشان دپئيوڅكلولوعام رواج وو.په دې كښې داصل مالک نه داجازت صراحتا ضروري نه وي.

﴿۳﴾ حضرت نبي كريم ﷺ په حالت داضطراركښې پۍ څكولي وو. اوداضطرارپه حالت كښې اجازت اخستلوضرورت نشته دې.[1]

[۵۲۸۵] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضي الله عنه - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «نِعْمَ الصَّدَقَةُ اللِّقْحَةُ الصَّفِيُّ مِنْحَةً، وَالشَّاةُ الصَّفِيُّ مِنْحَةً، تَغْدُو بِإِنَاءٍ، وَتَرُوحُ بِآخَرَ». [ر: ۲۴۸۶]

حضرت نبي كريم ﷺ فرمائي چه بهترينه صدقه چاته پۍ وركوونكې ښكلې اوښه ياپئيو والاښكلې چيلۍ وركول دي.چه هغه يولوښې دسباپه وخت كښې ډكوي اويولوښې دماښام په وخت كښې.

**قوله**: (لقحة): پئيو والا اوښې ته وائي.[2]

**قوله**: (الصفي): دصادپه فتحه اوفاء په كسره اودباءپه تشديدسره په معنى دښكلې اوښائسته فعيل چه كله دمفعول په معنى كښې وي نوهغه مذكراومونث دواړودپاره استعماليږي.[3]

**قوله**: (منحة): دميم په كسره اودنون په سكون سره،عطيه ته وائي.داتركيب نحوي كښې دتميز كيدو په وجه سره منصوب دې.دلته ﴿منحة﴾ نه پئيو والا اوښه مرادده چه چاته وركړې شي چه هغه ددې نه پۍ لوشي اوواپس ئې كړي.[4]

**قوله**: (تَغْدُو بِإِنَاءٍ، وَتَرُوحُ بِآخَرَ): ﴿تغدو من الغدو وهو اول النهار وتروح من الرواح وهو اخر النهار وهذه كناية من كثيرة اللبن﴾[5]

[۵۲۸۶] حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ عَنِ الأَوْزَاعِيِّ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رضى الله عنهما - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - شَرِبَ لَبَنًا فَمَضْمَضَ

---

[1]) مذكوره درې واړو جوابونودپاره اوګورئ: عمدة القاري (ج۲۱ص۱۸۷)، وفتح الباري: (ج۱۰ص ۸۹) وشرح البخاري للكرماني :(ج۲۰ص ۱۵۶)_

[2]) عمدة القاري (ج ۲۱ص۱۸۷) وشرح البخاري للكرماني :(ج۲۰ص۱۵۷، وارشاد الساري: (ج۱۲ص۳۴۸)

[3]) عمدة القاري (ج ۲۱ص۱۸۷) وشرح البخاري للكرماني :(ج۲۰ص۱۵۷، وارشاد الساري: (ج۱۲ص۳۴۸)

[4]) عمدة القاري (ج ۲۱ص۱۸۷) وشرح البخاري للكرماني :(ج۲۰ص۱۵۷، وارشاد الساري: (ج۱۲ص۳۴۸)

[5]) عمدة القاري (ج ۲۱ص۱۸۷)

وَقَالَ «إِنَّ لَهُ دَسَمًا». [ر: ۲۰۸]
حضرت نبی کریم ﷺ پئ ځکلونه پس خولې کښې اوبه واچولې. او وې فرمائيل چه په دې کښې چکنائی وی، (دسم) چکنائی (غوړوالی) ته وائی.
داحديث په كتاب الوضوء كښې تيرشوې دې. [1]

[۵۲۸۷] وَقَالَ إِبْرَاهِيمُ بْنُ طَهْمَانَ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم «رُفِعْتُ إِلَى السِّدْرَةِ فَإِذَا أَرْبَعَةُ أَنْهَارٍ، نَهَرَانِ ظَاهِرَانِ، وَنَهَرَانِ بَاطِنَانِ، فَأَمَّا الظَّاهِرَانِ النِّيلُ وَالْفُرَاتُ، وَأَمَّا الْبَاطِنَانِ فَنَهَرَانِ فِي الْجَنَّةِ فَأُتِيتُ بِثَلَاثَةِ أَقْدَاحٍ، قَدَحٌ فِيهِ لَبَنٌ، وَقَدَحٌ فِيهِ عَسَلٌ، وَقَدَحٌ فِيهِ خَمْرٌ، فَأَخَذْتُ الَّذِي فِيهِ اللَّبَنُ فَشَرِبْتُ فَقِيلَ لِي أَصَبْتَ الْفِطْرَةَ أَنْتَ وَأُمَّتُكَ».
قَالَ هِشَامٌ وَسَعِيدٌ وَهَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ مَالِكِ بْنِ صَعْصَعَةَ عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم - فِي الْأَنْهَارِ نَحْوَهُ، وَلَمْ يَذْكُرُوا ثَلَاثَةَ أَقْدَاحٍ. [ر: ۳۰۳۵]

**قوله**: رُفِعْتُ إِلَى السِّدْرَةِ: (رفعت) دماضی مجهول مونث صیغه ده. اوسدره نه سدره المنتهی مراد ده. دا داوؤاسمانونودپاسه دبیرې یوونه ده، چه کوم ځائې کښې فرښتې اودریږی. (یعنی مخکښې نشی تلئ) په دې وجه دې ته منتهی وائی. [2]
په بل روایت کښې په دې کښې (رفعت) دماضی مجهول واحدمتکلم صیغې سره دې، د دواړومفهوم یودې. [3]

**قوله**: فَنَهَرَانِ فِي الْجَنَّةِ: ددې دواړو نهرونونه سلسبیل اونهر کوثرمراد دې [4]
اسماعیلی دابراهیم نه داتعلیق موصولا نقل کړې دې. [5]

**قوله**: قَالَ هِشَامٌ وَسَعِيدٌ وَهَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ: هشام دستوائی، سعیدبن ابی عروبه، اوهمام بن یحیی هم دقتاده نه داروایت نقل کړې دې. هغوی په خپل روایت کښې د انهار ذکرکړې دې البته ددریو پیالو (شهدو، خمراولبن) ذکرئې نه دې کړې. حضرت امام بخاری رحمه الله دادرې واړه روایتونه په کتاب بدء الخلق کښې موصولا ذکرکړی دی. [6]

[1] عمدة القارى (ج ۲۱ص۱۸۷) وفتح البارى :(ج۱۰ص۹۰)_
[2] عمدة القارى (ج ۲۱ص۱۸۸) وشرح البخارى للكرمانى :(ج۲۰ص۱۵۷، وارشاد السارى: (ج۱۲ص۳۴۹)
[3] عمدة القارى (ج ۲۱ص۱۸۷) وفتح البارى :(ج۱۰ص۹۰)_وارشاد السارى: (ج۱۲ص۳۴۸)_
[4] عمدة القارى (ج ۲۱ص۱۸۸) وشرح البخارى للكرمانى :(ج۲۰ص۱۵۷، وارشاد السارى: (ج۱۲ص۳۴۹)
[5] عمدة القارى (ج ۲۱ص۱۸۷) وفتح البارى :(ج۱۰ص۹۰)_وارشاد السارى: (ج۱۲ص۳۴۸)_
[6] عمدة القارى (ج ۲۱ص۱۸۷)_وارشاد السارى: (ج۱۲ص۳۴۸)_

## ۱۲ = باب استعذاب الماء

[۵۲۸۸] حدثنا عبد الله بن مسلمة عن مالك عن إسحاق بن عبد الله أنه سمع أنس بن مالك يقول كان أبو طلحة أكثر أنصاري بالمدينة مالا من نخل، وكان أحب ماله إليه بيرحاء، وكانت مستقبل المسجد، وكان رسول الله -صلى الله عليه وسلم- يدخلها ويشرب من ماء فيها طيب. قال أنس فلما نزلت (لن تنالوا البر حتى تنفقوا مما تحبون) قام أبو طلحة فقال يا رسول الله إن الله يقول (لن تنالوا البر حتى تنفقوا مما تحبون) وإن أحب مالي إلي بيرحاء، وإنها صدقة لله أرجو برها وذخرها عند الله فضعها يا رسول الله حيث أراك الله. فقال رسول الله -صلى الله عليه وسلم- «بخ ذلك مال رابح- أو رايح شك عبد الله- وقد سمعت ما قلت وإني أرى أن تجعلها في الأقربين». فقال أبو طلحة أفعل يا رسول الله، فقسمها أبو طلحة في أقاربه وفي بني عمه وقال إسماعيل ويحيى بن يحيى رايح. [ر: ۱۳۹۲]

**قوله: استعذاب**: وائي خوږې اوبه طلب کولو ته، دحضرت امام بخاری رحمه الله مقصد دادې چه خوږې اوبه طلب کول د زهد نه خلاف نه دی، اونه داپه ترفه اوتعيش مذموم کښې داخل دی. خوپه اوبو کښې مشک وغیره اچول دخوشبودپاره دبعضې علماء کرامو په نيزدتعيش په وجه سره مکروه دی.(۱)

حضرت انس رضي الله عنه فرمائی چه ابوطلحه په انصارمدينه کښې دکهجورووںواعتبارسره دټولونه زيات مالداروو. اودده دټولونه زيات خوښ مال بيرحاء وو، ددې رخ مسجدطرف ته وو. حضرت نبی کريم ﷺ به هغه ځائې ته تشريف اوړو. اوددې خوږې اوبه به ئې څکلې.
حضرت انس رضي الله عنه بيان کوی چه کله آيت (لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتّٰى تُنْفِقُوْا مِمَّا تُحِبُّوْنَ) نازل شونو ابوطلحه اودريدو اوعرض ئې اوکړو چه يارسول الله ﷺ الله تعالى فرمائی چه تاسوبه هرګز نيکی اونه مومئ ترڅوچه هغه څيزخرچ نه کړئ کوم چه تاسوته محبوب وی. او ځما محبوب مال بيرحاء دې. ددې وجې داځه دالله په لارکښې خرچ کومه، ماته اميد دې چه الله تعالى جل جلاله به ددې اجر راکړی، ددې وجې يا رسول الله ﷺ چه تاسوپه کوم مصرف کښې دا مناسب ګنړئی خرچ ئې کړئ.
حضرت نبی کريم (ﷺ اوفرمائيل چه ډيرښه، داخومال رابح فائده مند) دې بيا ئې اوفرمائيل چه په خپلورشته داروئې تقسيم کړه.
ابوطلحه رضي الله عنه اوفرمائيل چه يارسول الله ﷺ ځه به هم داسې کوم. نوهغه مال ئې په خپلو رشته داروکښې اوترونوځامنوکښې تقسيم کړو.
(بخ (بفتح الباء) داکلمه دشا باشی اوخوشحالئ په وخت کښې وئيلې کيږی.(۲)

(۱) عمدة القاری (ج۲۱ص۱۸۹)_ وفتح الباری (ج۱۰ص۹۲)_
(۲) عمدة القاری (ج۲۱ص۱۸۹)، وارشادالساری (۱۲ص۳۵۰)، وشرح البخاری للکرمانی (ج۲۰ص۱۵۹)_

**قوله**: رَابِحٌ - أَوْرَايِحٌ شَكَّ عَبْدُ اللَّهِ: (رابح) نفع وركونې اورايح تاون ورنكې... يعنى دآخرت جذبې سره چه كوم مال خرچ كړې شى. هغه سودمند اونافع دې يامال خوهسې هم دلاس نه وتلو والا څيز دې. دالله جَلَّ جَلَالُهُ په لاركښې خرچ كولو سره اوددې نه اخروى فائدې دپاره ذخيره كول پكاردى.

داحديث هم دې سند سره په كتاب الوصايا كښې هم تيرشوې دې.[1]

## ۱۳ = باب شُرْبِ اللَّبَنِ بِالْمَاءِ

[۵۲۷۹] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا يُونُسُ عَنِ الزُّهْرِي قَالَ أَخْبَرَنِي أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ - رضى الله عنه - أَنَّهُ رَأَى رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - شَرِبَ لَبَنًا، وَأَتَى دَارَهُ فَحَلَبْتُ شَاةً فَشُبْتُ لِرَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - مِنَ الْبِئْرِ، فَتَنَاوَلَ الْقَدَحَ فَشَرِبَ، وَعَنْ يَسَارِهِ أَبُو بَكْرٍ وَعَنْ يَمِينِهِ أَعْرَابِي، فَأَعْطَى الأَعْرَابِي فَضْلَهُ، ثُمَّ قَالَ «الأَيْمَنَ فَالأَيْمَنَ». [ر: ۲۲۲۵]

**د ترجمة الباب مقصد**: پئ په اوبوكښې يوځائې كول اوهغه استعمالول جائزدې. حضرت امام بخارى رَحِمَهُ اللهُ په ترجمة الباب كښې دشرب قيدلګولې دې. ددې نه ئې بيع ويستلې ده. ددې وجې دخرڅولوپه وخت كښې پيئوكښې اوبه اچول جائز نه دى. ځكه چه هغه غش ممنوع دې.[2]

دكشميهنى روايت كښې «باب شوب اللبن بالماء» دې شوب ګډولو اويوځائې كولوته وائى.[3] دحضرت امام بخارى رَحِمَهُ اللهُ مقصد داهم كيدشى چه پئ په اوبوكښې ګډول اواستعمالول د «نهى عن خليطين» په حكم كښې نه رازى. دپئيوتاثيرګرم وى. دعربو ملكونوكښې خليطين دا په اوبوكښې استعمالولورواج دې چه ددې په حرارت كښې كمې واقع شى..[4]

**قوله**: فَشُبْتُ لِرَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - مِنَ الْبِئْرِ: (شبت) بروزن (قلت) داشوب نه واحدمتكلم ماضى صيغه ده. يعنى ماحضرت نبى كريم ﷺ دپاره په پئيوكښې اوبه ګډې كړې دكوهى نه.[5]

**قوله**: فَأَعْطَى الأَعْرَابِي فَضْلَهُ: يعنى حضرت نبى كريم ﷺ خپل بنى طرفته ناست اعرابى ته پئ وركړل. بعضوئيلې دى چه ددې اعرابى نه حضرت خالدبن وليدمراد دې، ليكن علامه عينى رَحِمَهُ اللهُ وغيره داغلط ګرزولې دى. اووئيلې ئې دى چه حضرت خالدبن وليد لكه څنګه چه داعربى اطلاق درست نه دې.[6]

---

[1] كتاب الوصايا،باب اذاوقف ارضاولم يبين الحدود فهوجائزوكذالک الصدقة (رقم الحديث: ۲۷۶۹) _

[2] عمدة القارى (ج۲۱ص۱۸۹)، وفتح البارى :(ج۱۰ص۹۳)_

[3] عمدة القارى (ج۲۱ص۱۸۹)، وفتح البارى :(ج۱۰ص۹۳) وارشاد السارى : (ج۱۲ص۳۵۱) _

[4] عمدة القارى (ج۲۱ص۱۸۹)، وفتح البارى :(ج۱۰ص۹۳)

[5] عمدة القارى (ج۲۱ص۱۸۹)، وفتح البارى :(ج۱۰ص۹۳) _

[6] عمدة القارى (ج۲۱ص۱۸۹)، وفتح البارى :(ج۱۰ص۹۳)

[۵۲۹۰] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ حَدَّثَنَا فُلَيْحُ بْنُ سُلَيْمَانَ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْحَارِثِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ - رضى الله عنهما - أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - دَخَلَ عَلَى رَجُلٍ مِنَ الأَنْصَارِ وَمَعَهُ صَاحِبٌ لَهُ فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «إِنْ كَانَ عِنْدَكَ مَاءٌ بَاتَ هَذِهِ اللَّيْلَةَ فِي شَنَّةٍ، وَإِلاَّ كَرَعْنَا». قَالَ وَالرَّجُلُ يُحَوِّلُ الْمَاءَ فِي حَائِطِهِ - قَالَ - فَقَالَ الرَّجُلُ يَا رَسُولَ اللَّهِ عِنْدِي مَاءٌ بَائِتٌ فَانْطَلِقْ إِلَى الْعَرِيشِ - قَالَ - فَانْطَلَقَ بِهِمَا، فَسَكَبَ فِي قَدَحٍ، ثُمَّ حَلَبَ عَلَيْهِ مِنْ دَاجِنٍ لَهُ - قَالَ - فَشَرِبَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - ثُمَّ شَرِبَ الرَّجُلُ الَّذِي جَاءَ مَعَهُ. [ر: ۵۲۹۸]

حضرت جابر ﷠ فرمائی چه حضورنبی کریم ﷺ یو انصاری سړی لره ورغلو حضورنبی اکرم ﷺ سره یو بل سړې هم وو، دې انصاری ته حضورنبی کریم ﷺ اوفرمائیل که تاسره په مشک کښې دشپې نه اېښودې شوې اوبه وی (اولوښې وی) نوراکړه گنې مونږ به دې سره خوله اولګوواودابه اوڅکو. راوی وائی چه هغه سړی په خپل باغ کښې اوبه ورکولې هغه اووئیل چه یارسول الله ﷺ ماسره دشپې ابنودې شوې (یخې) اوبه شته دې. تاسو جهونپړئ (سپر) طرفته تشریف یوسئ. بیاهغه حضورنبی کریم ﷺ اووډه ملګری هغه جهونپړئ ته بوتلل. یو پیاله کښې ئې اوبه واچولې اودچیلئ پئ ئې اولوشل. حضورنبی اکرم ﷺ هغه اوڅکل. بیا چه کوم ملګرې حضورنبی اکرم ﷺ سره راغلې وو هغه هم اوڅکل.
حضرت امام بخاری ﷫ داحدیث دلته په رومبی ځل ذکرفرمائیلې دې.([1])

**قوله: دَخَلَ عَلَى رَجُلٍ مِنَ الأَنْصَارِ:** د (رجل من الانصار) نه مراد حضرت ابوالهیثم بن تیهان انصاری دې.([2]) دواقدی روایت کښې ددې تصریح ده، هغوی هیثم بن نصراسلمی نه روایت نقل کړې دې، په دې کښې دې چه:

(خدمت النبی ﷺ ولزمت بابه فكنت اتيه بالماء من بئرجاشم، وهى بئرابى الهيشم بن التيهان، وكان ماوها طيبا، ولقد دخل يوما ومعه ابوبكرعلى ابى الهيشم فقال هل من ماء بارد؟ فاتاه بشجب([3]) فيه ماء كانه الثلج فصبه على لبن عنزله وسقاه ثم قال له، ان له، ان لنا عريشا باردا فقل فيه يارسول الله ﷺ عندنا، فدخله وابوبكر واتى ابواليهشم بالوان من الرطب)([4])
دواقدی روایت نه داهم معلومیږی چه حضرت نبی کریم ﷺ سره تلونکې بل سړې حضرت

---

[1]) (۵۲۹۰) الحديث اخرجه البخارى ايضا فى الاشربة باب الكرع فى الحوض (رقم للحديث ۵۲۹۸) واخرجه ابوداودفى الاشربة باب فى الكرع : حضرت امام احمدبن حنبل ﷫۳۳۷.(رقم الحديث ۳۷۳۴) واخرجه ابن ماجه فى الاشربة باب الشرب بالاكف والكرع :ج۲ص۱۱۳۵(رقم الحديث ۳۴۳۲).
[2]) عمدة القارى (ج۲۱ص۱۸۹)، وفتح البارى :(ج۱۰ص۹۵) وارشاد السارى : (ج۱۲ص۳۵۲) _
[3]) شجب يتخذ من شنه تقطع ويخرزراسها)
[4]) فتح البارى :(ج۱۰ص۹۵)

صديق اكبر رضي الله عنه وو.

**قوله**: «إِنْ كَانَ عِنْدَكَ مَاءٌ بَاتَ هَذِهِ اللَّيْلَةَ فِي شَنَّةٍ»: (شنة) دشين په فتحه اودنون تشديد سره) زړه مشكيزه.[1]

دشپې نه چه كومه مشكيزه ايښوې شوې وى، هغه ښه يخه وى، ددې وجې حضورنبى اكرم ﷺ هغه طلب اوفرمائيله:

**قوله** وَإِلَّا كَرَعْنَا: په دې عبارت كښې محذوف دې (اى كان عندك اناء فسقنا والا كرعنا)[2].
يعنى كه تاسوسره داوبو څكلو دپاره لوښې وى نو مونږ ته دهغې نه اوبه راكړه. ګنى مونږ په دې مشكيزه خله كيږدو او اوبه به اوڅكو.

(كرع) دلوښى اولپې نه بغيرنيغ په نيغه په مشكيزه باندې خله اېښودل او اوبه څكلوته وائى بعضو په دواړولاسونوسر اوبوڅكلوته كرع وئيلې ده. ليكن دلغت اعتبار سره هغه درست نه ده.[3]

دسنن ابن ماجه يوروايت كښې دى چه دكرع نه منع كړې شوې ده، حضورنبى اكرم ﷺ اوفرمائيل چه (لاتكرعوا ولكن اغسلوا ايديكم ثم اشربوا بها)[4].

ليكن اول خوداحديث ضعيف دې، اوكه داصحيح هم تسليم كړې شى. نوونيلې به شى چه په دې كښې نهى تنزيهى ده. اودحضورنبى اكرم ﷺ فعل جوازخودلو دپاره دې.[5]

**قوله**: قَالَ وَالرَّجُلُ يُحَوِّلُ الْمَاءَ فِي حَائِطِهِ: (اى ينقل الماء من مكان الى مكان) يعنى خپل باغ ته ئې اوبه وركولې. (حائط) باغ ته وائى. (عريش) جهونپړه يا دالان د(سكب) معنى بيول ده. او(داجن) چيلئ ته وائى.[6]

يخې اوبه دالله جل جلاله ډيرلوئې نعمت دې، حضورنبى اكرم ﷺ دپاره يخې اوبه به راوړې شوې دابوداود په روايت كښې دى چه (كان رسول الله ﷺ يستعذب له الماء من بيوت السقيا)[7]

دامام ترمذى رحمه الله روايت كښې دى چه (ان اول مايسال عنه يوم القيامة يعنى العبد من النعيم ان يقال له، الم نصح لك جسمك ونرويك من الماء البارد)[8].

---

[1] عمدة القارى (ج٢١ص١٨٩)، وفتح البارى :(ج١٠ص٩٥) وارشاد السارى : (ج١٢ص٣٥٢) _
[2] عمدة القارى (ج٢١ص١٨٩)، وفتح البارى :(ج١٠ص٩٥) _
[3] عمدة القارى (ج٢١ص١٨٩)، وفتح البارى :(ج١٠ص٩٥) _
[4] ابن ماجه كتاب الاشربة،باب الشرب بالاكف والكرع) ج٢ص١١٣٥)، رقم الحديث ٣٤٣٣)_
[5] عمدة القارى (ج٢١ص١٩٠)..والابواب والتراجم باب الكرع فى الحوض :ج٢ص٩٧)_
[6] عمدة القارى (ج٢١ص١٨٩)، وفتح البارى :(ج١٠ص٩٦) _
[7] سنن ابى داود كتاب الاشربة باب فى ايكاء الانية :(ج٣ص٣٤٠)،رقم الحديث :٣٧٣٥)
[8] سنن ترمذى،كتاب التفسير،باب ومن سورة التكاثر:ج٥ص٤٤٨) رقم الحديث ٣٣٥٨)_

**د حدیث نه مستنبط څو اداب** : علامه عینی رحمه الله ددې حدیث نه څوآداب نقل کوی اوفرمائی چه «وفیه انه لاباس بطلب الماء البارد فی سموم الحر وفیه قصد الرجل الفاضل بنفسه حیث یعرف مواضعه عند اخوانه... وفیه جواز خلط اللبن بالماء عند الشرب وفیه ان من قدم الیه طعام لایلزم ان یسال من این صار الیه الا اذا علم ان اکثرماله حرام، فانه لایاکله فضلا عن ان یساله» _(۱)

یعنی ددې حدیث نه یو خبره خودامعلومیږی چه سخته ګرمئ کښې دچا نه یخې اوبۀ طلب کولې شی اوداطلب کول په هغه سوال کښې داخل نه دی چه دهغې ممانعت راغلې دې. دویمه خبره دامعلومه شوه چه عالم اوصاحب رتبه سړې خپلودوستانواوبې تکلفه ملګروکره بغیر ددعوت نه تلې شی.دریمه خبره دامستنبط شوه چه پئ په اوبوکښې ګډول جائزدی. او دا نهی عن الخلیطین تحت لاندې داخل نه دی اوڅلورمه داخبره معلومه شوه چه کله څه خوراک په طوردضیافت پیش کړې شی نوددې تحقیق کول نه دی پکارچه دامال حلال دې یاحرام، خوکه دچااکثرمال حرام وی نودهغې استعمال درست نه دی.

## ۱۴= بَابُ شَرَابِ الْحَلْوَاءِ وَالْعَسَلِ.

وَقَالَ الزُّهْرِيُّ لَا يَحِلُّ شُرْبُ بَوْلِ النَّاسِ لِشِدَّةٍ تَنْزِلُ، لِأَنَّهُ رِجْسٌ قَالَ اللَّهُ تَعَالَى (أُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبَاتُ) وَقَالَ ابْنُ مَسْعُودٍ فِي السَّكَرِ إِنَّ اللَّهَ لَمْ يَجْعَلْ شِفَاءَكُمْ فِيمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمْ

[۵۲۹۱] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ قَالَ أَخْبَرَنِي هِشَامٌ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رضی الله عنها قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صلی الله علیه وسلم يُعْجِبُهُ الْحَلْوَاءُ وَالْعَسَلُ [ر: ۴۹۱۸]

**دترجمة الباب مقصد** : شیخ الحدیث مولانامحمد زکریا رحمه الله فرمائی چه حضرت امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې چه دحلوا لفظ استعمال کړې دې، دهغې نه شربت مراددې.یعنی هرې هغه اوبه چه په هغې کښې څه خیزګډ کړې شی.په هندوستان کښې «شربت عسل» مشهوردې، ددې ترجمې نه ددې جواب بیانول مقصود دې چه هغه په اسراف کښې داخل نه دی.(۲)

حلوازمونږ په عرف کښې څکلې نه بلکه خوړلې شی،ځکه چه هغه مائع نه وی.ترجمة الباب حلوانه مائع مراد ده چه هغه څکلې شی. لکه نقیع تمراونقیع زبیب اوشربت عسل وغیره.

الابواب، والتراجم: (ج۲ص۹۷، وارشادالساری: (ج۱۲ص۳۵۳،عمدة القاری (ج۲۱ص۱۹۱)_

**دامام زهری رحمه الله د یو قول تشریح** :

**قوله**: وَقَالَ الزُّهْرِيُّ لَا يَحِلُّ شُرْبُ بَوْلِ النَّاسِ لِشِدَّةٍ تَنْزِلُ، لِأَنَّهُ رِجْسٌ : امام زهری رحمه الله فرمائی چه دخلقومتیازې څکل دسخت ضرورت په وخت کښې هم حلال اوجائزنه دی.ځکه چه هغه ناپاکې دی.اوالله تعالی جل جلاله فرمائی چه ماستاسودپاره پاک څیزونونه

(۱) عمدة القاری (ج۲۱ص۱۹۰)،

(۲) الابواب والتراجم: (ج ۲ص۹۷) _

حلال کړې دی. (نو ناپاک څیزونه حلال نه دی) ددې قول متعلق شارحین دوه خبرې لیکی:

① دامام زهری رحمه الله مسلک په دې مسئله کښې دجمهوروعلماء کراموخلاف دې، ځکه چه دجمهورعلماء په نیزاضطراری حالت کښې که درجس خوړلو یاڅکلوضرورت پیښ شی نودهغې استعمال جائزدې. نومیته، دم اوخنزیرنجس دی، لیکن الله تعالی په قرآن کریم کښې فرمائی چه ﴿فمن اضطر غیرباغ ولاعاد فلا اثم علیه﴾[1]

شاید امام زهری رحمه الله په رخصتونوکښې په قیاس باندې عمل کولو. لهذا نصوص کښې چه دکوم رجس تصریح ده، په هغې کښې خوهغه درخصت قائل وو، لیکن بول کښې نه وو.[2]

ددې خبرې تائید ددې نه هم کیږی چه امام زهری رحمه الله به په سفرکښې هم د عاشورې روژه نیوله. امام زهری رحمه الله ته اووئیلې شوچه په رمضان کښې خوپه سفرکښې تاسوروژه نه نیسئ نو امام زهری رحمه الله جواب ورکړو (ان تعالی قال فی رمضان ﴿فعدة من ایام اخر﴾ ولیس ذالك لعاشوراء)[3]

② حضرت ګنګوهی رحمه الله فرمائی چه دامام زهری رحمه الله په قول کښې دشدت حالت نه حالت اضطرار مراد نه دې، بلکه ددې نه کم درجې والاشدت مراددې، اواضطرارنه کم درجې والاشدت کښې دمتیازواستعمال دجمهوروپه نیزهم جائزنه دی. نوحضرت رحمه الله فرمائی چه:

**قوله**: لشدة تنزل، اراد بالشدة مادون الاضطرار، فلا یخالف **قوله**: قول الجمهور.[4] داتعلیق عبدالرزاق موصولانقل کړې دې.[5]

**قوله**: وَقَالَ ابْنُ مَسْعُودٍ فِي السَّكَرِ إِنَّ اللَّهَ لَمْ يَجْعَلْ شِفَاءَكُمْ فِيمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمْ

سکر: دسین اوکاف فتحه سره، دعجمولغت کښې شرابوته وائی.[6]

دابن ابی شیبه روایت کښې ددې تعلیق تفصیل راغلې دې چه یوصاحب حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه لره سرې اولیږلواوتپوس ئې اوکړوچه ددوائی په طورهغه استعمالولې شی، حضرت ابن مسعود رضی الله عنه مذکوره جواب ارشاد اوفرمائیلوچه الله تعالی په حرامو څیزونو کښې شفاء نه ده ایښودې. اوشراب حرام دی.[7]

---

[1] عمدة القاری (ج۲۱ص۱۹۱)_

[2] ارشاد الساری ج۱۲ص۳۵۳)، وفتح الباری (۱۰ص۹۷)_

[3] ارشاداساری :(۱۲ص۳۵۳)وفتح الباری (ج۱۰ص۹۷)_

[4] لامع الدراری (ج۹ص۴۳۹)_

[5] ارشاداساری :(۱۲ص۳۵۳)وفتح الباری (ج۱۰ص۹۷) وعدة القاری (ج۲۱ص۱۹۱)_

[6] ارشاداساری :(۱۲ص۳۵۳)وفتح الباری (ج۱۰ص۹۷) وعدة القاری (ج۲۱ص۱۹۱)_

[7] ارشاداساری :(۱۲ص۳۵۳)، فتح الباری (ج۱۰ص۹۷) وعدة القاری (ج۲۱ص۱۹۱)_

**يو اشكال او د هغې جواب** : په دې باندې چا اشكال كړې دې كه په حلق كښې يو لقمه تيرولو دپاره شرابونه سوا نور څه مانع څيزنه وى نو د شرابو د ګوټ څكلو فقهاء كرامو اجازت وكړې دې چه دې سره لقمه تيره شى. د دې تقاضا داده چه علاج كښې هم د دې اجازت وركړې شى. د دې جواب داوركړې شوې دې چه علاج كښې دې سره شفاء يقينى نه ده او په مرئې كښې دانختې لقمې تيرول تقريبا يقينى كيږى . د دې وجې دواړو كښې فرق دې.(۱)

تداوى بالخمر(د علاج او داوئې په طور د شراب استعمالول) د حضرات احنافو په نيز جائز دى.

په دې شرط چه ظن غالب داوى چه د دې سره به افاقه وى. (لان الضرورة تبيح المحظورة)(۲)

ليكن كه دافاقه په ظن نه وى نو بيا جائز نه دى. جواز دپاره داهم ضرورى دى چه متبادل څه علاج ميسر نه وى طبيب مسلم حاذق د علاج دپاره شراب ښائى

د حضرت امام مالك رحمه الله تداوى بالخمر مطلقا ناجائز ګنړى. حضرت حافظ ابن حجر رحمه الله دا د شوافع صحيح قول ګرزولې دې. هغه وائى چه د دې سره مرض زياتيديشى او كميږى نه.(۳)

**د ترجمة الباب سره مناسبت** :① حضرت امام بخارى رحمه الله د حضرت امام زهرى رحمه الله او د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دوه آثار ذكر كړى دى. علامه ابن منير د ترجمة الباب نه د دوى مناسبت بيانوى او فرمائى چه بول او خمر دواړه حرام دى او حلوا او عسل دواړه طيب دى. امام بخارى رحمه الله د حلوا او عسل نه پس د حرامو ذكر كړې دې، ځكه چه (وبضدها تتبين الاشياء)(۴)

② بعضې حضرات مناسبت بيانوى او وائى چه د امام زهرى رحمه الله قول نه د قرآن پاک آيت (أُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبَاتُ)(۵) طرفته اشاره ده او ظاهر دې چه حلوا او عسل طيبا كښې داخل دى.

د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د قول نه د سورة نحل آيت (فِيهِ شِفَاءٌ لِلنَّاسِ) طرفته ته اشاره ده چه د عسل متعلق نازل شوې دې.(۶)

**قوله**: كَانَ النَّبِى صلى الله عليه وسلم - يُعْجِبُهُ الْحَلْوَاءُ وَالْعَسَلُ : په دې كښې د حلوانه هر خوږ څيز مراد دې. امام بيهقى په شعب الايمان كښې د حضرت عائشه رضي الله عنها قول نقل كړې دې چه په هغې كښې د دې وضاحت دا شان شوې دې،

(كان يحب الحلواء ليس على معنى كثرة التشهى لها، وشدة نزاع النفس اليها وتانق لصنعة فى اتخاذها كفعل اهل الترف والشره وانما كان اذا قدمت اليه نال منها نيلا جيدا فيعلم بذالك انها تعجبه)(۷)

---

(۱) ارشادالسارى :(۱۲ص۳۵۳) وفتح البارى (ج۱۰ص۹۹)_
(۲) فتح البارى (ج۱۰ص۹۹)_
(۳) فتح البارى (ج۱۰ص۹۹)_
(۴) فتح البارى (ج۱۰ص۹۹) ارشادالسارى :(۱۲ص۳۵۳) الابواب والتراجم :ج۲ص۹۷)_
(۵) سورة المائدة : ٤)
(۶) ارشادالسارى :(۱۲ص۳۵۳) فتح البارى (ج۱۰ص۹۹) وعمدة القارى (ج۲۱ص۱۹۱)_
(۷) ارشادالسارى :(۱۲ص۳۵۳) فتح البارى (ج۱۰ص۹۹)

يعنى دحضورنبى اكرم ﷺ خوړ ښيزخوښ وو.اوددې دا مطلب نه چې دحريصو په شان په دې باندې به ئې حملې کولې بلکه ددې مطلب دا دې چه کله به حضورنبى اكرم ﷺ ته خوږ ښيز پيش شونو حضورنبى اكرم ﷺ به هغه ډيرپه خوښه خوړلو،
داحديث په كتاب الاطعمه كښې هم تير شوې دې.[1]

## ١٥=باب الشُّرْبِ قَائِمًا

[٥٢٩٢] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا مِسْعَرٌ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ مَيْسَرَةَ عَنِ النَّزَّالِ قَالَ أَتَى عَلِي رضى الله عنه - عَلَى بَابِ الرَّحَبَةِ، فَشَرِبَ قَائِمًا فَقَالَ إِنَّ نَاسًا يَكْرَهُ أَحَدُهُمْ أَنْ يَشْرَبَ وَهُوَ قَائِمٌ، وَإِنِّي رَأَيْتُ النَّبِي -صلى الله عليه وسلم- فَعَلَ كَمَا رَأَيْتُمُونِي فَعَلْتُ.

[٥٢٩٣] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ مَيْسَرَةَ سَمِعْتُ النَّزَّالَ بْنَ سَبْرَةَ يُحَدِّثُ عَنْ عَلِي -رضى الله عنه- أَنَّهُ صَلَّى الظُّهْرَ ثُمَّ قَعَدَ فِي حَوَائِجِ النَّاسِ فِي رَحَبَةِ الْكُوفَةِ حَتَّى حَضَرَتْ صَلَاةُ الْعَصْرِ، ثُمَّ أُتِيَ بِمَاءٍ فَشَرِبَ وَغَسَلَ وَجْهَهُ وَيَدَيْهِ وَذَكَرَ رَأْسَهُ وَرِجْلَيْهِ، ثُمَّ قَامَ فَشَرِبَ فَضْلَهُ وَهُوَ قَائِمٌ ثُمَّ قَالَ إِنَّ نَاسًا يَكْرَهُونَ الشُّرْبَ قَائِمًا وَإِنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- صَنَعَ مِثْلَ مَا صَنَعْتُ.

[٥٢٩٤] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَاصِمٍ الأَحْوَلِ عَنِ الشَّعْبِي عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ شَرِبَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- قَائِمًا مِنْ زَمْزَمَ. [ر: ١٥٥٦]

**په ولاړه داوبو څکلو حکم**: حضرت امام بخارى رحمه الله په دې باب كښې په ولاړه د اوبو څکلو جوازلره ثابيوى.[2] په ولاړه داوبو څکلوسلسه کښې روايتونه مختلف دى. بعضو روايتونو كښې ممانعت واردشوې دې،اوبعضونه جوازثابت دې.لاندې دواړه رنګه څو روايتونه ذكركولې شى.

**ممانعت والا روايتونه**: چه په كومو روايتونو كښې نهى واردشوې ده،په هغې كښې يو څو لاندې ذكر كيږى.

① په صحيح مسلم كښې دحضرت انس رضي الله عنه روايت كښې دى چه «ان النبى ﷺ زجرعن الشرب قائما» اوپه بل طريق كښې الفاظ دى چه «انه نهى ان يشرب الرجل قائما»[3]

---

[1] ارشاداسارى :(١٢ص٣٥٣) فتح البارى (ج١٠ص٩٩)

[2] الابواب والتراجم :ج٢ص٩٧) عمدة القارى (ج٢١ص١٩١)_

[3]. الحديث اخرجه مسلم فى كتاب الاطعمة،باب كراهية الشرب قائما(ج٣ص١٠٠)_ (رقم الحديث ٢٠٢٤)، واخرجه اب،داود فى الاشربة باب الشرب قائما(رقم الحديث ٣٧١٧) واخرجه الترمذى فى الاشربة باب ماجاء فى النهى عن الشرب قائما(رقم الحديث ١٨٧٩) وابن ماجه الاشربة باب الشرب قائما (رقم الحديث ٣٤٦٧)

② هم په صحیح مسلم کښې دحضرت ابوهریره رضی الله عنه روایت دې چه «قال رسول الله صلی الله علیه وسلم لایشربن احد منکم قائما فمن نسی فلیستقی»[1]

③ حضرت امام احمدبن حنبل رحمه الله دحضرت ابوهریره رضی الله عنه یوروایت نقل کړې دې چه ددې الفاظ دی چه «لویعلم الذی یشرب وهوقائم مافی بطنه لاستقاءه»[2]

④ حضرت امام احمدبن حنبل رحمه الله دحضرت ابوهریره رضی الله عنه روایت نقل کړې دې چه حضور نبی اکرم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه داقې «التیئ» کړه، دځه دوجې تپوس ئې اوکړو نو حضور نبی اکرم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه ته داخوښوې چه پیشودې ستاسره اوڅکی. هغه اووئیل چه نه، نو حضور نبی اکرم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه «قدشرب معک من هواشرمنه : الشیطان»[3]

⑤ امام ترمذی رحمه الله دجاروبن المعلی نه روایت نقل کړې دې چه «ان النبی صلی الله علیه وسلم نهی عن الشرب قائما»[4]

**جواز والا روایتونه**: لیکن بل طرفته ډیراحادیث په ولاړه باندې داوبوڅکلوباندې دلالت کوی. ① په دې خودوه احادیث حضرت امام بخاری رحمه الله دلته په دې باب کښې ذکرکړې دی.

② امام ترمذی دحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه حدیث نقل کړې دې «کنا ناکل علی عهد رسول الله صلی الله علیه وسلم ونحن نمشی ونشرب ونحن قیام»[5]

③ امام ترمذی رحمه الله دعمروبن شعیب عن جده په طریق سره.روایت نقل کړې دې چه په هغې کښې دی چه : «راءیت رسول الله صلی الله علیه وسلم یشرب قائماوقاعدا» امام ترمذی دې ته حسن صحیح وئیلې دی.[6]

④ حضرات خلفاء راشدین اونورجلیل القدرصحابه کرامو رضی الله عنهم نه په ولاړه اوبه څکل مروی دی. اوداچه په دې کښې هیڅ حرج نشته دې.[7]

**حل دتعارض** : داخبره تاسوته معلومه ده چه کله دځه امرمتعلق متعارض احادیث جمع شی نوپه دې کښې عام طوردرې طریقې اختیاروی. ① نسخ ② ترجیح ③ اوتطبیق.

حضرات محدثین په دې احادیثو کښې هم دادرې خبرې وائی :

① نوابوبکراثرم احادیث جوازته په احادیث نهی باندې ترجیح ورکړې ده.اووئیلې دی چه ا

---

[1] صحیح مسلم کتاب الاشربة کراهیة الشرب قائما (ج۳ص ۱۶۰) (رقم الحدیث :۲۰۲۶)_

[2] مسند الامام احمد بن حنبل :(ج۲ص۲۸۳)_

[3] مسند الامام احمد بن حنبل :(ج۲ص۳۰۱)_

[4] سنن الترمذی،کتاب الاشربة باب ماجاء فی النهی عن الشرب قائما (ج ٤ص ۳۰۰).(رقم الحدیث: ۱۸۱۱۸۹۱)

[5] سنن الترمذی، کتاب الاشربة باب ماجاء فی النهی عن الشرب قائما):(ج ٤ص ۳۰۰) (رقم الحدیث ۱۸۹۱)

[6] سنن الترمذی، کتاب الاشربة باب ماجاء فی الرخصة عن الشرب قائما):(ج ٤ص ۳۰۰) (رقم الحدیث ۱۸۳۱)

[7] سنن الترمذی، کتاب الاشربة باب ماجاء فی النهی عن الشرب قائما):(ج ٤ص ۳۰۰).(رقم الحدیث ۱۸۸۱)

حاديث دجواز داحاديث نهي په مقابله كښې اقوى او اثبت دى.[1]

② احاديث نهي په احاديث دجواز سره منسوخ شوى دى، يعنى مخکښې په ولاړه د اوبو څكلو ممانعت وو، ليكن دې نه پس دا ممانعت منسوخ شو. (فكان اخر الامرين من رسول الله ﷺ الشرب قائما كما شرب فى حجة الوداع)[2]

علامه ابن حزم رحمه الله ددې بالكل برعكس مسلک اختيار كړې دې. او وئيلى ئې دى چه احاديث جواز په احاديث نهى سره منسوخ شوى دى. يعنى مخکښې اجازت وو بيا هغه اجازت منسوخ شو.[3]

③ اكثر علماء كرامو په دواړه قسمه احاديثو كښې تطبيق كوى، دا تطبيق په دوه رنګه دې.

(الف)... ائمه اربعه او اكثر فقهاء كرام په دواړه قسمه احاديثو كښې تطبيق كوى او فرمائى چه احاديث نهى نه نهى تنزيهى مراد دى. چه دجواز منافى نه دى، يعنى په ولاړه اوبه څكل مكروه تنزيهى دى، او دنورو احاديثو په وجه ددې جواز دې.[4]

(ب)... امام طحاوى فرمائى چه احاديث نهى ضرر طبى او احاديث جواز اباحت شرعيه باندې محمول دى، نو علامه ابن عابدي رد المختار كښې فرمائى چه (وجنح الطحاوى الى انه لاباس به وان النهى لخوف الضرر لاغير)[5]

يعنى اكثرو وختونو كښې په ولاړه اوبه څكل مضر صحت وى، ددې وجې حضور نبى اكرم ﷺ منع فرمائيلې ده. (فهو امر ارشادى طبى لا شرعى)[6]

دا ټول اختلافات په ولاړه داوبو څكلو په جواز او عدم جواز كښې دى. باقى په دې كښې هيڅ اختلاف نشته دې چه په ناسته اوبه څكل افضل دې او دحضور نبى اكرم ﷺ طريقه معتاد په ناسته اوبه څكل وو.[7]

---

[1] فتح البارى :(ج۱۰ص۱۰۳)_

[2] فتح البارى :(ج۱۰ص۱۰۳)_، وعون المعبود وشرح ابى داود، كتاب الاشربة باب فى الشرب قائما) ج۱۰ص۱۸۱)_

[3] فتح البارى :(ج۱۰ص۱۰۳)وعمدة القارى (۲۱ص۱۹۳)اوګورئ بذل المجهود شرح ابى داود: (ج۱۶ص ۵۰)

[4] ارشادالسارى :(۱۲ص۳۵۵) فتح البارى (ج۱۰ص ۱۰٤) وعمدة القارى (ج۲۱ص۱۹۳)_

[5] رد المختار كتاب الطهارة مطلب مباحث الشرب قائما (ج۱ص۹۶)_

[6] الابواب والتراجم : (ج ۲ص۹۷)_

[7] قال ابن القيم فى زادالمعاد، وكان من هديه (ص) الشرب قاعداكان هديه المعتاد وصح عنه انه نهى عن الشرب قائما وصح انه امرالذى شرب قائما ان يسقى وصح عنه انه شرب قائما، قالت طائفة: هذا ناسخ للنهى وقالت بل مبين ان النهى ليس للتحريم بل لارشاد وترک الاولى، وقالت طائفة لاتعارض بينهما اصلا فانه انما شرب قائما للحاجة فانه جاء الى زمزم وهم يسقون منها فاستسقى فتناولوه الدلو فشرب وهوقائم وهذا كان موضع الحاجة وللشرب قائما افات عديدة :منها ان لايحصل له فيخشى منه ان يبرد حرارتها ويشوشها وتسرع النفوذ الى اسفل البدن بغيرتدريج وكل هذا يضربالشارب واما اذا فعله نادرا اولحاجة لم يضره (زادالمعاد ج ٤ص ۳۵٤)_

**قوله** حَدَّثَنَا أَبُونُعَيمٍ: حضرت على رضي الله عنه لره په الرحبه كښې اوبه راوړې شوې نو هغوى په ولاړه اوبه اوڅكلې. اووې فرمائيل چه بعضې خلق په ولاړه اوبه څلكولره مكروه ګڼړى. حلانه ما حضورنبى اكرم ﷺ ليدلې ووچه څنګه تاسو ماګورئى.

**قوله** بَابِ الرَّحَبَةِ: (رحبة) صحن اوانګړته وائى، دلته ددې نه دكوفې دمسجدصحن مراد دى. [1] لكه څنګه چه دباب په دويم حديث كښې ددې تشريح شوېده.

دباب داحديث حضرت امام بخارى رحمه الله دلته په ړومبى ځل ذكركړې دې. [2]

**داب زمزم دڅكلو اداب او طريقه**:

**قوله** قَالَ شَرِبَ النَّبِي صلى الله عليه وسلم قَائِمًا مِنْ زَمْزَمَ: دزمزم څكلومتعلق دحضرات علماء كرامودرې قولونه دى:

① دبعضوپه نيزدعامواوبوپشان زمزم هم په ناسته څكل افضل دى. حضورنبى اكرم ﷺ چه په ولاړه آب زمزم څكلې وې. هغه دبيان جوازدپاره وو. يادازدحام اورش دوجې نه وو. [3]

② بعضې علماء كرامو په ولاړه اوپه ناسته اوبه څكلوكښې اختيار وركړې دې يعنى دهغوى په نيزدواړه طريقې برابرې دى. هيڅوک ديوبل نه افضل نه دى. [4]

ليكن داكثروعالمانوپه نيززمزم په ولاړه څكل افضل اومستحب دى. [5]

① دزمزم څكلوپه آدابوكښې يوادې چه دقبلې ته مخ كړى اوڅكى دې.

② دويم داچه په دريوساګانوكښې اوڅكى، اوهرځل دې شروع په بسم الله سره اوآخركښې دې الحمدلله وائى.

③ دريم داچه نبه په مړه دې څكى، يوحديث كښې رازى چه ‹اية بيننا وبين المنافقين انهم لايتضلعون من زمزم› [6]

دزمزم دڅكلونه مخكښې مشهوراومجرب دادى چه كومه دعااوغوښتلې شى نوهغه

---

[1] ارشادالسارى :(١٢ص ٣٥٤) وعمدة القارى (ج٢١ص١٩٢)_

[2] (٥٢٩٢) الحديث اخرجه ابوداودفى الاشربة باب الشرب قائما: (ج٣ص٣٣٦.(رقم الحديث ٣٧١٨)_ واخرجه الترمذى فى الشمائل باب ماجاء فى صفة شرب رسول الله (ص) ١٨٣(ص) (رقم الحديث ٢١١٠) واخرجه النسائى فى كتاب الطهارة باب صفة الوضوء من غيرحدث (ج١ص٩٣) (رقم الحديث :١٣٣(_

[3] خصائل نبوى (ص) شرح شمائل ترمذى :١١٢)_

[4] ردالمختار :كتاب الطهارة مطلب فى مباحث الشرب قائما :ج١ص٩٥)_

[5] دادحضرت ابن عباس رضي الله عنه روايت دى،هغوى فرمائى چه (اذشربت منها فاستقبل القبلة واذكراسم الله وتنفس ثلاثا، وتضلع منها،فان فرغت منها فاحمدالله فان رسول الله (ص) قال :اية بيننا وبين المنافقين انهم لايتضلعونمن زمزم (مستدرک للامام حاكم الشرب من زمزم وادبه :(ج١ص٤٧٢) وسنن البيهقى باب سقاية الحاج والشرب منها ومن ماء زمزم (ج٥ص١٤٧)_

[6] اوګورئ فتح القدير كتاب الحج : ج٢ص ٤٠٠، ومعارف السنن كتاب الحج (ج٦ص٤٢٧)_

قبليږي. ډيروعلماء كرامودخپلودعاګانودقبوليت په دې موقع ذكركړې دې.(١) په يومرفوع حديث كښې هم راغلي دى چه «ماءزمزم على لماشرب له»(٢)

دزمزم فضيلت باندې يوحديث هم دحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه منقول دې «خير ماء على وجه الارض ماءزمزم فيه الطعم وشفاء السقم»(٣)

خپلوكورنواوعلاقوته دزمزم اوړو هم په سنن ابن ماجه كښې دحضرت عائشه رضي الله عنها نه يوحديث منقول دې. «انها كانت تحمل من ماءزمزم وتخبران رسول الله صلى الله عليه وسلم كان يحمله»(٤)

**فائده**: حضرت حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه ما دطلب حديث په ابتدائى دوركښې دزمزم څكلوپه وخت كښې دعا كړې وه چه ماته دې په حفظ حديث كښې دحافظ ذهبى رحمه الله په شان حافظه عطاء شى، بياتقريباً شل كاله پس ما دزمزم څكلوپه وخت كښې دحافظ ذهبى رحمه الله نه هم دلوئ مرتبې موندلودعا كړې وه. «وارجوالله ان انال ذالك منه»(٥)

ددې نه روستوعلماء كراموليكلى دى چه دحضرت حافظ ابن حجر رحمه الله حافظه دحضرت ذهبى رحمه الله نه ډيره په وړاندې تلې وه.(٦)

حضرت امام بخارى رحمه الله په كتاب الحج كښې دماء زمزم مستقل باب «باب ماء ماجاء زمزم» قائم كړې دې، اوهلته ئې خديث ذكركړې دې،(٧)

دلته داشربه مناسبت سره ددې متعلق څوخبرې بيان شوى دى.

## ١٦ - بَاب مَنْ شَرِبَ وَهُوَ وَاقِفٌ عَلَى بَعِيرِهِ

[٥٢٩٥] حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِي سَلَمَةَ أَخْبَرَنَا أَبُو النَّضْرِ عَنْ عُمَيْرٍ مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ أُمِّ الْفَضْلِ بِنْتِ الْحَارِثِ أَنَّهَا أَرْسَلَتْ إِلَى النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- بِقَدَحِ لَبَنٍ، وَهُوَ وَاقِفٌ عَشِيَّةَ عَرَفَةَ، فَأَخَذَ بِيَدِهِ فَشَرِبَهُ.

زَادَ مَالِكٌ عَنْ أَبِي النَّضْرِ عَلَى بَعِيرِهِ. [ر: ١٥٧٥]

---

(١) سنن ابن ماجه كتاب المناسك باب الشرب من زمزم) ج٢ص١٠١٨)_ (رقم الحديث :٣٠٦٢). واحتلف الحفاظ فيه فنهم من صححه ومنهم من حسنه ومنهم من ضعفه وقد اخرجه الحاكم فى المستدرك من طريق ابن عباس رضي الله عنه وقال :هذا صحيح الاسناد وقد ذكرالعلماء انهم جربوه فوجدوه كذالك (تعليقات ابن ماجه للشيخ محمد فواد عبدالباقى : ج٢ص١٠١٨)_

(٢) مجمع الزوائدباب فى زمزم :ج٣ص ٢٨٦.وقال رواه الطبرانى فى الكبير ورجاله ثقات)

(٣) ردالمختار :كتاب الطهارة مطلب فى مباحث الشرب قائما :ج١ص٩٥)_

(٤) معارف السنن كتاب الحج (٢ص٤٢٧) وفتح التقدير كتاب الحج.فصل ماء زمزم (ج٢ص٤٠٠)_

(٥) مقدمة لامع الدراى الفضل الرابع) ج١ص ٣٩٤)_

(٦) كتاب الحج)رقم الحديث :١٦٣٦)_

(٧) عمدة القارى: ج٢١ص ١٩٤)، وفتح البارى :(ج١٠ص١٠٥)_

دحضرت امام بخاري رحمه الله مقصد دادې چه څناور وغيره باندې سوريدل اواوبه څکل دحديث نه ثابت دی. (١)

# ١٧=بَاب الأَيْمَن فَالأَيْمَن فِي الشُّرْبِ

[٥٢٧٦] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رضى الله عنه أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم أُتِيَ بِلَبَنٍ قَدْ شِيبَ بِمَاءٍ، وَعَنْ يَمِينِهِ أَعْرَابِيٌّ وَعَنْ شِمَالِهِ أَبُوبَكْرٍ، فَشَرِبَ، ثُمَّ أَعْطَى الأَعْرَابِيَّ، وَقَالَ «الأَيْمَنَ الأَيْمَنَ». [ر ٢٢٢٥]

**قوله**: الايمن فالايمن:

**نحوى تركيب**: د (الايمن فالايمن) تركيب نحوى كښې دوه احتماله دی:

① دامبتداء کيدوپه وجه مرفوع دې، اوددې خبرمحذوف دې، فاء عاطفه دې، اوترکيبی عبارت دې، (الايمن احق فى الشرب ثم الايمن احق)

② دادواړه دفعل محذوف دمفعوليت دوجې نه منصوب دی (اى اعط الايمن ثم الايمن) (٢)

دحضرت امام بخاري رحمه الله مقصد دادې چه په اوبوڅکلوکښې به دښى طرف نه شروع کيږی داحکم په اوبواونورومشروباتووغيره ټولوکښې شامل دې. (٣)

دحضرت امام مالک رحمه الله نه مروی دی چه هغوی داحکم اوبوسره خاص کړې دې، ليکن حافظ ابن عبدالبر رحمه الله فرمائی چه دحضرت امام مالک رحمه الله نه داروايت نه دې ثابت. (٤)

داوبوشروع کولوکښې دښى طرفنه ابتداء کول دجمهور علماء کرامو په نيزمستحب دی. اودعلامه ابن حزم په نيزواجب دی، (٥) مهلب فرمائی چه: (التيامن فى الاكل والشرب وجميع الاشياء من السنن وكان رسول الله صلى الله عليه وسلم يحب التيامن استشعارمنه بما شرف الله عزوجل به اهل اليمين) (٦)

# ١٨=بَاب هَلْ يَسْتَأْذِنُ الرَّجُلُ مَنْ عَنْ يَمِينِهِ فِي الشُّرْبِ لِيُعْطِيَ الأَكْبَرَ.

[٥٢٩٧] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ أَبِي حَازِمِ بْنِ دِينَارٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ - رضى الله عنه - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - أُتِيَ بِشَرَابٍ فَشَرِبَ مِنْهُ، وَعَنْ

---

(١) دمذکوره ترکيبونودپاره اوګورئی :عمدة القارى :(٢١ص١٩٥)_، وارشاد السارى (ج ١٢ص٣٥٦)_

(٢) فتح البارى :ج١٠ص١٠٦، وعمدة القارى : ج٢١ص١٩٥، والابواب والتراجم : ج٢ص٩٧)_

(٣) فتح البارى :ج١٠ص١٠٦، وعمدة القارى : ج٢١ص١٩٥، والابواب والتراجم : ج٢ص٩٧)_

(٤) فتح البارى :ج١٠ص١٠٦، وعمدة القارى : ج٢١ص١٩٥، والابواب والتراجم : ج٢ص٩٧)_

(٥) عمدة القارى : ج٢١ص١٩٥،)

(٦) ارشادالسارى :(١٢ص٣٥٧) فتح البارى (ج١٠ص١٠٦) وعمدة القارى (ج٢١ص١٩٥)_

يَمِينِهِ غُلاَمٌ وَعَنْ يَسَارِهِ الأَشْيَاخُ. فَقَالَ لِلْغُلاَمِ «أَتَأْذَنُ لِي أَنْ أُعْطِيَ هَؤُلاَءِ». فَقَالَ الْغُلاَمُ وَاللَّهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ لاَ أُوثِرُ بِنَصِيبِي مِنْكَ أَحَدًا. قَالَ فَتَلَّهُ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فِي يَدِهِ. [ر ٢٢٢٤]

حضرت امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې فرمائی چه آیا سړې دخپل ښې طرف والا سړی نه ددې خبرې اجازت اخستې شی چه مخکښې مشر سړی نه اوبه څکلولره ورکړي.
په روایت کښې دی چه دحضورنبی اکرم یوطرفته یوکم عمره هلک ناست وو. اوبل طرفته ئې دزیات عمر والاخلق وو. دغلام نه حضرت ابن عباس رضی الله عنه مراد دې. او اشیاخ نه حضرت خالدبن ولید وغیره مراد دی (١)

**يو تعارض اودهغې حل:** دحدیث باب په ظاهره دحضرت ابن عباس رضی الله عنه دحدیث سره تعارض دې لکه ابویعلی قوی سندسره نقل کړې دې په دې کښې دی چه «**كان رسول الله صلى الله عليه وسلم اذا سقى قال: ابدؤا بالاكبر**» (٢)

ددې جواب ورکړې شوچه داحدیث په هغه حالت باندې محمول دې. کله چه ټول خلق ناست وی یعنی ښی طرفته یاګس طرفته ناست وی نوداسې صورت کښې شروع دمشرنه پکارده لیکن که خلق ښی اوګس طرفته ناست وی نوبیاایمن احق دې. اګرچه وړوکې وی. (٣)

**قوله: فَتَلَّهُ:** د «تل» معنی اینبودل دی علامه خطابی رحمه الله فرمائی چه «تل» دشدت سره اینبودلو ته وائی (٤) علامه عینی رحمه الله فرمائی چه «**واصله من الرمى على التل وهوالمكان المرتفع العالي ثم استعمل في كل شئ يرمى به وفي كل القاء**» (٥) یعنی ددې اصل معنی په اوچته باندې څه څیز ویشتل دی. لیکن دې نه پس مطلقا دڅه څیزویشتلو دپاره استعمال شو.

## ١٩= بَابُ الْكَرْعِ فِي الْحَوْضِ

[٥٢٩٨] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا فُلَيْحُ بْنُ سُلَيْمَانَ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْحَارِثِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ - رضى الله عنهما - أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - دَخَلَ عَلَى رَجُلٍ مِنَ الأَنْصَارِ وَمَعَهُ صَاحِبٌ لَهُ، فَسَلَّمَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - وَصَاحِبُهُ، فَرَدَّ الرَّجُلُ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي. وَهْىَ سَاعَةٌ حَارَّةٌ، وَهْوَ يُحَوِّلُ فِي حَائِطٍ لَهُ - يَعْنِي الْمَاءَ - فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «إِنْ كَانَ عِنْدَكَ مَاءٌ بَاتَ فِي شَنَّةٍ وَإِلاَّ كَرَعْنَا». وَالرَّجُلُ

---

(١) فتح البارى (ج١٠ص١٠٧) وعمدة القارى (ج٢١ص١٩٦)_
(٢) فتح البارى (ج١٠ص١٠٧) وعمدة القارى (ج٢١ص١٩٦)_
(٣) فتح البارى (ج١٠ص١٠٧) وعمدة القارى (ج٢١ص١٩٦)_
(٤) فتح البارى (ج١٠ص١٠٧) وعمدة القارى (ج٢١ص١٩٦)_
(٥) الابواب والتراجم)ج٢ص٩٧). و فتح البارى (ج١٠ص١٠٧)

يَحُوِّلُ الْمَاءَ فِي حَائِطٍ فَقَالَ الرَّجُلُ يَا رَسُولَ اللَّهِ عِنْدِي مَاءٌ بَاتَ فِي شَنَّةٍ. فَانْطَلَقَ إِلَى الْعَرِيشِ فَسَكَبَ فِي قَدَحٍ مَاءً، ثُمَّ حَلَبَ عَلَيْهِ مِنْ دَاجِنٍ لَهُ، فَشَرِبَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - ثُمَّ أَعَادَ، فَشَرِبَ الرَّجُلُ الَّذِي جَاءَ مَعَهُ. [ر ٥٢٩٠]

**حديث نه دترجمة الباب ثبوت** د (كرع) معنى لغت كښې څه څيز (سره خله لګول) او اوبه څکل بعضې په چونګ اوبو څکلوته (كرع) وائى ددې باب نه حضرت امام بخارى رحمه الله خله لګول اوحوض نه داوبو څکلوجوازثابتوى نوپه حديث كښې دى چه (وَإِلاَّ كَرَعْنَا) الفاظ په دې باندې دلالت كوى. البته په حديث كښې دحوض ذكرنشته دې. حضرت حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه په باغ كښې اوبووركولووالا صحابى شايد هلته ديوكوهى نه اوبه راويستلې. اويوحوض كښې ئې جمع كولې اوبيا ئې ددې حوض نه دباغ مختلفواطرافوته خوروليې.[1] داشان اګرچه صراحتادحوض ذكرنشته ليكن كنايتاددې ذكردې.

بهرحال حضرت حافظ ابن حجر رحمه الله دامكانى خبره ارشاد فرمائى چه دې نه دحديث مناسبت دباب سره بالكل واضح كيږى.

اوداهم وئيلې شى چه عام طورد (كرع) ضرورت حوض وغيره كښې پيش كيږى. اګرچه په حديث كښې مطلقا د (كرع) ذكرنشته دې ليكن امام بخارى رحمه الله دخلقودعادت اوددې فعل عمومى وقوع پيش نظرترجمة الباب كښې (فى الحوض) اضافه كړې ده. والله اعلم.

## ٢٠=بَاب خِدْمَةِ الصِّغَارِ الْكِبَارَ

[٥٢٩٩] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ عَنْ أَبِيهِ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسًا - رضى الله عنه - قَالَ كُنْتُ قَائِمًا عَلَى الْحَيِّ أَسْقِيهِمْ - عُمُومَتِي وَأَنَا أَصْغَرُهُمْ - الْفَضِيخَ، فَقِيلَ حُرِّمَتِ الْخَمْرُ. فَقَالَ أَكْفِئْهَا. فَكَفَأْنَا. قُلْتُ لأَنَسٍ مَا شَرَابُهُمْ قَالَ رُطَبٌ وَبُسْرٌ. فَقَالَ أَبُو بَكْرِ بْنُ أَنَسٍ وَكَانَتْ خَمْرَهُمْ. فَلَمْ يُنْكِرْ أَنَسٌ. وَحَدَّثَنِي بَعْضُ أَصْحَابِي أَنَّهُ سَمِعَ أَنَسًا يَقُولُ كَانَتْ خَمْرَهُمْ يَوْمَئِذٍ. [ر ٢٣٣٢]

دحضرت امام بخارى رحمه الله مقصد دادې چه وړو لره پكاردى چه دلويوخدمت اوكړى او د خدمت يوصورت داكيدېشى چه واړه دې لويوته اوبه وركړئ. لكه څنګه چه حديث باب كښې حضرت انس رضى الله عنه دټولونه وړوكې وو. اوساقى جوړشوې وو. حضرت امام بخارى رحمه الله دترجمة الباب الفاظ عام اوساتل. دشراب وغيره قيدئې اونه لګولو. دعام تحت خاص چونكه پخپله رازى. ددې وجې ددې قيد ضرورت پاتې نشو.

## ٢١=بَاب تَغْطِيَةِ الإِنَاءِ

[٥٣٠٠] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ أَخْبَرَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ أَخْبَرَنِي

[1] عمدة القارى (ج٢١ص١٩٧)_

عَطَاءٌ أَنَّهُ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ - رضي الله عنهما - يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «إِذَا كَانَ جُنْحُ اللَّيْلِ - أَوْ أَمْسَيْتُمْ - فَكُفُّوا صِبْيَانَكُمْ، فَإِنَّ الشَّيَاطِينَ تَنْتَشِرُ حِينَئِذٍ، فَإِذَا ذَهَبَ سَاعَةٌ مِنَ اللَّيْلِ فَحُلُّوهُمْ، فَأَغْلِقُوا الأَبْوَابَ وَاذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ، فَإِنَّ الشَّيْطَانَ لاَ يَفْتَحُ بَابًا مُغْلَقًا، وَأَوْكُوا قِرَبَكُمْ وَاذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ، وَخَمِّرُوا آنِيَتَكُمْ وَاذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ، وَلَوْ أَنْ تَعْرُضُوا عَلَيْهَا شَيْئًا وَأَطْفِئُوا مَصَابِيحَكُمْ».

[۵۳۰۱] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ عَطَاءٍ عَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «أَطْفِئُوا الْمَصَابِيحَ إِذَا رَقَدْتُمْ، وَغَلِّقُوا الأَبْوَابَ، وَأَوْكُوا الأَسْقِيَةَ، وَخَمِّرُوا الطَّعَامَ وَالشَّرَابَ - وَأَحْسِبُهُ قَالَ - وَلَوْ بِعُودٍ تَعْرُضُهُ عَلَيْهِ». [ر: ۳۱۰۶]

حضرت جابر رضي الله عنه نه ورايت دې چه حضورنبى كريم ﷺ فرمائيلى دى چه كله دشپې تياره راشى اومانبام شى نوخپل بچى بهرمه پرېږدئى، ددې وجې چه پهدې وخت كښې شيطانان خورېږى، بيا چه كله دشپې يوحصه تيره شى نودې لره پرېښودې شى، دالله جل جلاله نوم واخلئ اودروازې بندې كړئى ځكه چه شيطانان بندى دروازې نه پرانيزى. دمشكيزې خوله ياسرېه بسم الله سره بنده وئ، لوښولره هم ددې په لنډوالى باندې څه څيزايږدئ اوخپل چراغونه (مشعلونه) مړه كوئ، (چه هسې نه دهغې نه دشپې په كور كښې اور اولګى).

**دمانبام په وخت كښې د ماشومانو دكور نه دبهر وتلو حكم :**

**قوله** : فَكُفُّوا صِبْيَانَكُمْ : يعنى بچى دمانبام په وخت كښې دبهروتلو نه منع كوئى. ځكه چه په دې وخت كښې كوم شيطانان ګرزى، هغوى بچوته نقصان رسولې شى، علامه ابن بطال رحمه الله فرمائى : (خشى ﷺ على الصبيان عند انتشار الجن ان تلم بهم فتصرعهم فان الشيطان قد اعطاه الله تعالى قوة عليه واعلمنا رسول الله ان التعرض للفتن مما لاينبغى وان الاحتراس منها احزم على ان ذالك الاحتراس لايرد قدرا ولكن يبلغ النفس عذرها ولئلا يتسبب له الشيطان الى نوم نفسه فى التقصير) (۱)

يعنى شيطان ته الله تعالى يوقوت وركړې دې، ددې وجې حضورنبى كريم ﷺ د جناتو د انتشار په وخت كښې دخدشې اظهاركړې دې. دفتنونه دبچ كيدوډپاره حضورنبى اكرم ﷺ مونږ ته تعليم راكړې دې چه څه په تقدير كښې ليكلى شوى وى، اګرچه داشان حفاظت سره تقديرنه بدلېږى بياهم دروستوپريشانئ اوكوتاهې نه دبچ كيدوډپاره داضرورى دى.

**قوله** : وَأَوْكُوا قِرَبَكُمْ : (اوكى) دباب افعال نه دې، ددې معنى ده چه ديوڅيزوغيره رسئ سره تړل، (قرب) د (قربة) جمع دې مشكيزې ته وائى.

(ولوان تعرضوا عليها شئيا) شرط دې (جزاء لكان كافيا) محذوف دې. (۲)

---

۱) :عمدة القارى :(۲۱ص۱۹۷)_ وارشاد السارى (ج ۱۲ص۳۵۹)_

۲) عمدة القارى :(۲۱ص۱۹۷)_

علامه عینی رحمه الله فرمائی چه: «وانما امر بالتغطية لان فی السنة ليلة ينزل فيها وباء وبلاء لايمر باناء مكشوف الانزل فيه من ذالك والاعاجم يتوقعون ذالك في كانون الاول»[1]
یعنی حضور نبی کریم ﷺ دلو لوښو د پټولو حکم په دې وجې ورکړې دې چه په کال کښې یوه شپه داسې راځي چه په هغې کښې وباء نازلیږي او هر ناپټو شوي لوښي کښې داخلیږي.

**قوله**: وَأَطْفِئُوا مَصَابِيحَكُمْ: «مصابیح» د مصباح جمع ده. چراغ وغیره مړه کولو حکم د دې وجې دې چه هغه داوده کیدونه پس داور دلګیدو سبب جوړیدې شي. په مسجدونو وغیره کښې چراغ او مشعلونه آویزنده کولې شي، هلته هم که داور لګیدو اندیښنه وی نو هم دا حکم دې چه هغه دې مړه کړې شي ګنی نه.[2]
دباب په آخری روایت کښې د «اسقية» لفظ راغلې دې، دا د «سقاء» جمع ده، دا وبو وغیره مشکیزې ته وائی.[3]

## ۲۲=باب اخْتِنَاثِ الأَسْقِيَةِ

[۵۳۰۲] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ-رضى الله عنه- قَالَ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ-صلى الله عليه وسلم- عَنِ اخْتِنَاثِ الأَسْقِيَةِ. يَعْنِي أَنْ تُكْسَرَ أَفْوَاهُهَا فَيُشْرَبَ مِنْهَا.

[۵۳۰۳] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا يُونُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا سَعِيدٍ الْخُدْرِيَّ يَقُولُ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ-صلى الله عليه وسلم- يَنْهَى عَنِ اخْتِنَاثِ الأَسْقِيَةِ. قَالَ عَبْدُ اللَّهِ قَالَ مَعْمَرٌ أَوْ غَيْرُهُ هُوَ الشُّرْبُ مِنْ أَفْوَاهِهَا.

**قوله**: (اخْتِنَاثِ): د «خنث» نه دباب افعال مصدر دې چه ددې معنی اړول رازی. دلته په رومبی حدیث کښې ددې تشریح «ان تکسر افواهها» سره کړې ده. په دې کښې کسرنه مراد خو ماتول نه دی بلکه اړول مراد دی. او په دویم حدیث کښې ددې تشریح «الشرب من افواهها» سره کړې شوې ده.[4]

---

[1] :عمدة القاری :(۲۱ص۱۹۷)_. وارشاد الساری (ج ۱۲ص ۳۶۰)_
[2] عمدة القاری :(۲۱ص۱۹۸)_
[3] (۵۳۰۲) الحدیث اخرجه البخاری ایضا فی هذا الباب (رقم الحدیث ۵۳۰۳) واخرجه ابوداود فی الاشربة باب فی اختناث الاسقیة (رقم الحدیث ۳۷۲۰_ ۳۳۷) واخرجه الترمذی فی الاشربة باب ماجاء فی النهی عن اختناث الاسقیة :ج۴ص۳۰۲) رقم الحدیث ۱۸۹۰) واخرجه ابن ماجه فی الاشربة باب اختناث الاسقیة : ج۲ص۱۱۳۱رقم الحدیث ۳۴۱۸) واخرجه مسلم فی الاشربة باب اداب الطعام والشرب واحکامها:علیه ۶۰۰(رقم الحدیث ۲۰۲۳)_
[4] ارشادالساری :(۱۲ص۳۶۱) فتح الباری (ج۱۰ص ۱۱۰) وعمدة القاری (ج۲۱ص۱۹۸)_

**په مشكيزه باندې خوله لګول اودهغې نه منع كولو كښې حكمتونه** : مطلب دادې چه د مشكيزې وغيره خله اړول اوودې نه اوبه څكلو نه حضرت نبى كريم ﷺ منع فرمائيلې ده. ددې ممانعت محدثينو ډيرمصلحتونه بيان فرمائيلى دى:

① په دې كښې اوبه دضرورت نه زياتې استعماليږې اوداوبوضائع كيدو خدشه وى.[1]

② په كپړو وغيره باندې دتويدوقوى انديښنه وى.[2]

③ زيات مقدار كښې اوبه حلق اوخيتې ته ورزى اودې ته نقصان رسيديشى حلق اومعده دواړودپاره دادنقصان باعث كيديشى.[3]

④ اكثروپه مشكيزه وغيره كښې چينجى وغيره وى. چه نيغ په نيغه ددې (سرې) خلې ته تلې شى دا چينجى وغيره،ددې وجې حضورنبى كريم ﷺ ممانعت فرمائيلې دې.[4]

**د دواړ حديثونو په مينځ كښې تعارض اودهغې جواب** : البته په دې باندې ديوحديث نه اشكال كيديشى.لكه څنګه چه امام ترمذى رحمه الله په شمائل ترمذى كښې اوحضرت امام احمدبن حنبل رحمه الله په مسند احمد كښې نقل كړې دې. (**ان النبى ﷺ دخل على ام سليم وقربة معلقة فشرب من فم القربة**)[5]

په ظاهره دواړوحديثونو كښې تعارض دې. ددې مختلف جوابونه وركړې شوى دى

① دممانعت والاحاديث دغټومشكومتعلق دې. چه دهغې دهانه زياته وى اوفراخه اوكشاده وى اودحضورنبى اكرم ﷺ عمل دوړو مشكونومتعلق دې.چه دهغې دهانه تنګه وى اوپه دې كښې ذكرشوى داكثرنقصان انديښنه نه وى.[6]

② دممانعت تعلق دوام اوعادت سره دې چه داشان مشكوسره خله نزدې كولوعادت نه دې پكار.په دې كښې علاوه په خله كښې په مزه مزه بدبوپيدا كيږى اودنبى كريم ﷺ عمل كله دبيان جوازدپاره وو.[7]

③ داباحت تعلق ضرورت احتياج سره دې،لكه دڅكلودپاره څه وړوكې لوښې نه وى او

---

[1] فتح البارى (ج١٠ص١١٢) وعمدة القارى (ج٢١ص٢٠٠)_

[2] وشرح الطيبى،كتاب الاطعمة،باب الاشربة :ج٨ص١٨٦). وفتح البارى : ج١٠ص١١٢)_

[3] عمدة القارى (ج٢١ص٢٠٠) وشرح الطيبى،كتاب الاطعمة،باب الاشربة :ج٨ص١٨٦). وفتح البارى : ج١٠ص١١٢)_

[4] عمدة القارى (ج٢١ص١٩٨) وشرح الطيبى،كتاب الاطعمة،باب الاشربة :ج٨ص١٨٦). وفتح البارى : ج١٠ص١١٢) ومرقاة المفاتيح كتاب الاطعمة،باب الاشربة :ج٨ص٢١٦). _

[5] شمائل الترمذى باب ماجاء فى صفة شرب النبى (ص) ١٤ومسند الامام احمد بن حنبل (ج٣ص١١٩)_

[6] عمدة القارى (ج٢١ص١٩٨) وشرح الطيبى،كتاب الاطعمة،باب الاشربة :ج٨ص١٨٦). ومرقاة المفاتيح كتاب الاطعمة،باب الاشربة :ج٨ص٢١٦). وفتح البارى : ج١٠ص١١٢) _

[7] شرح الطيبى،كتاب الاطعمة،باب الاشربة :ج٨ص١٨٦). ومرقاة المفاتيح كتاب الاطعمة،باب الاشربة :ج٨ص٢١٦). وفتح البارى : ج١٠ص١١٢) _

دممانعت تعلق عام حالات سره دي.[1]

④ بعضو حضراتو وئيلي دي چه داشان اوبه څکل مخکښې مباح وو. ليکن بيا احاديث دنهی دا اباحت منسوخ کړو.

⑤ دا اباحت تعلق ضرورت او احتياج سره دې. لکه دخکلو دپاره څه وړوکي لوښي نه وي او د ممانعت تعلق عام حالات سره دې.[2]

⑥ احاديث نهی په نهی تنزيهی باندې محمول دي. اوددې عمل دبيان جوازدپاره وو. نهی تنزيهی اوجوازدواړه جمع کيديشي. ترجيح ورکړې شوې ده. ځکه چه هغه قول دی اودفعل نه ثابتيږی.[3]

## ٢٣= بابُ الشُّرْبِ مِنْ فَمِ السِّقَاءِ

حضرت امام بخاری رحمه الله ړومبې ترجمه داختناث عنوان سره قائمه کړې چه ددې معنی ده دمشکيزه خوله اړول اودلته (الشُّرْبِ مِنْ فَمِ السِّقَاءِ) فرمائی اواشاره کوی چه په حديث کښې وارد شوی نهی چه صرف اختناث سره خاص نه ده. بلکه عام ده. دبعضو لوښو سرونه نه شی اخوا کولې. دحضرت امام بخاری رحمه الله مقصد دادې چه دادسې لوښونه اوبو څکل هم په نهی کښې داخل دی.[4]

[٥٣٠٤] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ قَالَ لَنَا عِكْرِمَةُ أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِأَشْيَاءَ قِصَارٍ حَدَّثَنَا بِهَا أَبُو هُرَيْرَةَ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- عَنِ الشُّرْبِ مِنْ فَمِ الْقِرْبَةِ أَوِ السِّقَاءِ، وَأَنْ يَمْنَعَ جَارَهُ أَنْ يَغْرِزَ خَشَبَهُ فِي دَارِهِ.

[٥٣٠٥] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ أَخْبَرَنَا أَيُّوبُ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رضى الله عنه- نَهَى النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- أَنْ يُشْرَبَ مِنْ فِي السِّقَاءِ.

[٥٣٠٦] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رضى الله عنهما- قَالَ نَهَى النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- عَنِ الشُّرْبِ مِنْ فِي السِّقَاءِ.

روای ته په قربه اوسقاکښې شک دې، ددواړو په مينځ کښې فرق دادې چه قربه صرف اوبو دپاره استعمالولې شی اوسقا اوبو او پئيو دپاره استعماليږی.[5]

---

[1] شرح الطيبی،کتاب الاطعمة،باب الاشربة :ج٨ص١٨٦)، ومرقاة المفاتيح کتاب الاطعمة،باب الاشربة :ج٨ص٢١٦)، وفتح الباری : ج١٠ص١١٣) _

[2] شرح الطيبی،کتاب الاطعمة،باب الاشربة :ج٨ص١٨٦)، ومرقاة المفاتيح کتاب الاطعمة،باب الاشربة :ج٨ص٢١٦)، وفتح الباری : ج١٠ص١١٣)و عمدة القاری (ج٢١ص٢٠٠)_

[3] فتح الباری (ج١٠ص١١٣)، وارشاد الساری (ج ١٢ص٣٦٣) والابواب والتراجم :ج٢ص٩٧._ وعمدة القاری (ج٢١ص١٩٩)_

[4] فتح الباری (ج١٠ص١١١)، والابواب والتراجم :ج٢ص٩٧._

[5] عمدة القاری (ج٢١ص١٩٩)_

**قوله**: وَأَنْ یَمْنَعَ جَارَهُ أَنْ یَغْرِزَ خَشَبَهُ فِی دَارِهِ: حضور نبی کریم ﷺ ددې خبرې ممانعت اوفرمائیلوچه یو سړې خپل ګاونډی لره په خپل دیوال کښې یو لرګی ټکوهولونه منع کړی، څوک سړې په خپل کورکښې دضرورت دپاره څه لرګې وغیره ښخوی نوپړوسی ته داحق نشته دې چه هغه ددې نه منع کړی. د(غرز) معنی په زمکه کښې څه څیزښخول دی.

## ۲۴=باب النَّهْیِ عَنِ التَّنَفُّسِ فِی الإِنَاءِ

[۵۳۰۷] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَیْمٍ حَدَّثَنَا شَیْبَانُ عَنْ یَحْیَی عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِی قَتَادَةَ عَنْ أَبِیهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله علیه وسلم- «إِذَا شَرِبَ أَحَدُكُمْ فَلاَ یَتَنَفَّسْ فِی الإِنَاءِ، وَإِذَا بَالَ أَحَدُكُمْ فَلاَ یَمْسَحْ ذَكَرَهُ بِیَمِینِهِ، وَإِذَا تَمَسَّحَ أَحَدُكُمْ فَلاَ یَتَمَسَّحْ بِیَمِینِهِ». [ر: ۱۵۲]

**په لوښی کښې دننه ساه اخستل مکروه دی**: اوبو څکلوپه وخت کښې لوښی کښې دننه ساه مکروه دی، حضورنبی کریم ﷺ ددې نه منع فرمائیلې ده، په لوښی کښې دننه ساه اخستلوسره لعاب وغیره دې کښې دننه دغورزیدو اندیښنه وی، چه دنورودپاره باعث دنفرت ګرزی.څوکه سړې ځانله اوبه څکی اوده سره بل څوک نشته دې نوداسې صورت کښې ممانعت نشته دې. بعضې حضراتو داخبره کړې ده.[۱] لیکن دحدیث الفاظ چونکه عام دی، په دې کښې دنوروسړوڅه قید نشته دې، ددې وجې داحکم عام کیدل پکار دې.[۲]

## ۲۵=باب الشُّرْبِ بِنَفَسَیْنِ أَوْ ثَلاَثَةٍ

[۵۳۰۸] حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ وَأَبُو نُعَیْمٍ قَالاَ حَدَّثَنَا عَزْرَةُ بْنُ ثَابِتٍ قَالَ أَخْبَرَنِی ثُمَامَةُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ كَانَ أَنَسٌ یَتَنَفَّسُ فِی الإِنَاءِ مَرَّتَیْنِ أَوْ ثَلاَثًا، وَزَعَمَ أَنَّ النَّبِیَّ -صلى الله علیه وسلم- كَانَ یَتَنَفَّسُ ثَلاَثًا.

په ړومبی باب کښې حضرت امام بخاری رحمه الله اوفرمائیل چه په لوښی کښې دننه ساه اخستل درست نه دی. اوپه دې باب کښې فرمائی چه داوبو څکلوپه وخت کښې دوه ساه ګانوپه مینځ کښې اخستل پکاردی یعنی په یوساه اوبه څکل صحیح نه دی، البته ساه دې په لوښې کښې دننه نه اخلی، بلکه لوښې دې دخلې نه داخواکړی اوساه دې واخلی.[۳]

حضرت حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه:

(فکانه اراد ان یجمع بین حدیث الباب والذی قبله لان ظاهرهما التعارض اذ الاول صریح فی النهی عن التنفس فی الاناء والثانی یثبت التنفس فحملها علی حالتین فحالة النهی علی التنفس داخل الاناء وحالة الفعل علی من

---

[۱]) عمدة القاری (ج۲۱ص۲۰۰) فتح الباری (ج۱۰ص۱۱۵).

[۲]) فتح الباری (ج۱۰ص۱۱۵).

[۳]) عمدة القاری (ج۲۱ص۲۰۰)

تنفس خارجه فالاول على ظاهره من النهي والثاني تقديره كان يتنفس في حالة الشرب في الاناء)[1]

امام ترمذی رحمه الله يوروايت نقل کړې دې چه په هغې کښې دی چه (لاتشربوا واحدا كشرب البعير ولكن اشربوا مثنى وثلاث وسموا اذا انتم شربتم واحمدوا اذا انتم رفعتم)[2]

**د اوبو څکلو په وخت کښې دساه اخستلو مستحب طريقه** : مستحب دادې چه داوبو څکلو په مينځ کښې دې درې ساه ګانې واخستلې شي، يوساه سره اوبه څکل که جائزدې ليکن بهترنه دی. په غړپ غړپ يوساه سره داوبو څکلو طبعي نقصانات هم شته دې.

په دې کښې هم مستحب صورت دادې چه مخکښې دې لږه ساه واخستلې شي اولږې اوبه دې اوڅکلې شي، په دويمه ساه کښې دې ددې نه لږې زياتې اوڅکی، اوپه دريمه ساه کښې دې پوره اوڅکلې شي.

البته دساه اخستلوپه وخت کښې دې ګلاس دخلې نه لرې کړې.

امام ترمذی رحمه الله دحضرت ابوسعيدخدری رضی الله عنه نه روايت نقل کوی چه په هغې کښې دی چه (ان النبي صلی الله علیه وسلم نهى عن النفخ في الشراب فقال رجل: القذاة اراها في الاناء قال: اهرقها قال: فاني لا اروى من نفس واحد قال: فابن القدح اذا عن فيك)[3] حاکم دا روايت صحيح ګرزولې دې.[4]

او سنن ابن ماجه کښې دحضرت ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې چه حضورنبی کريم صلی الله علیه وسلم فرمائيلی دی چه (اذا شرب احدکم فلا يتنفس في الاناء فاذا اراد ان يعود فلينح الاناء ثم ليعد ان كان يريد)[5]

دطرانی په روايت کښې دی چه (ان النبي صلی الله علیه وسلم كان يشرب في ثلاثة انفاس اذا ادنى الاناء الى فيه يسمى الله فاذا اخره حمد الله يفعل ذالك ثلاثا)[6]

امام ترمذی رحمه الله اوابن ماجه رحمه الله روايتونوکښې تصريح راغلې ده که دساه اخستلو ضرورت وی نوساه دې په لوښی کښې دننه نه اخلی بلکه لوښې دې دخپلې خولې نه جدا کړی، دمسلم شريف روايت کښې دی چه (ان النبي صلی الله علیه وسلم كان يتنفس في الاناء ثلاثا ويقول هو اروى وامرا وابرا)[7]

دسنن ابی داود روايت کښې د (اروی) په ځائې (اهنا) دې[8]

---

[1] فتح الباري (ج۱۰ص۱۱٤)۔_

[2] سنن الترمذی،کتاب الاشربة باب ماجاء في التنفس في الاناء :ج٤ص۳۰۲) رقم الحديث ۱۸۸۵)_

[3] سنن الترمذی،کتاب الاشربة باب ماجاء في كراهية النفخ في الشراب :ج ٤ص۳۰۲) رقم الحديث ۱۸۸۷)

[4] المستدرک على الصحيحين كتاب الاشربة :ج۳۰۳،۳۰٤،٤_

[5] سنن ابن ماجه،کتاب الاشربة باب التنفس في الاناء (ج۲ص۱۱۳۳)،،رقم الحديث ۳٤۲۷)_

[6] فتح الباري (ج۱۰ص۱۱۵)،_

[7] صحيح مسلم کتاب الاشربة باب كراهية التنفس في الاناءج ۳ص۱۶۰۲). رقم الحديث :۲۰۲۸)_

[8] سنن ابوداودکتاب الاشربة باب في الساقي متى يشرب :ج۳ص۳۳۸) رقم الحديث ۳۷۲۷)_

**داوبو څکلو اداب** : دذکرشوؤ احادیثو په رڼړا کښې لاندینی آداب معلوم شو.

① اوبه دې په ناسته اوڅکلې شی
② په ښی لاس دې اوڅکلې شی
③ په شروع کښې دې بسم الله اووئیلې شی
④ په دریو ساګانو دې اوڅکلی اوهرساه سره دې بسم الله او وائی
⑤ ګلاس کښې دننه دې ساه نه اخلی بلکه ګلاس دې دخلې نه لرې کړې
⑥ اود څکلونه پس دې دالله جل جلاله شکر ادا کړی. اوصرف الحمد لله وئیل کافی دی اوبعضو علماء کراموداد دعانقل فرمائیلې ده چه (الحمدلله الذی جعله عذبا فراتا برحمته ولم یجعله ملحا اجاجا بذنوبنا)[1]

## ۳٦= باب الشُّرْبِ فِي آنِيَةِ الذَّهَبِ.

[۵۳۰۹] حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْحَكَمِ عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى قَالَ كَانَ حُذَيْفَةُ بِالْمَدَايِنِ فَاسْتَسْقَى، فَأَتَاهُ دِهْقَانٌ بِقَدَحِ فِضَّةٍ، فَرَمَاهُ بِهِ فَقَالَ إِنِّي لَمْ أَرْمِهِ إِلاَّ أَنِّي نَهَيْتُهُ فَلَمْ يَنْتَهِ، وَإِنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - نَهَانَا عَنِ الْحَرِيرِ وَالدِّيبَاجِ وَالشُّرْبِ فِي آنِيَةِ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَقَالَ «هُنَّ لَهُمْ فِي الدُّنْيَا وَهِيَ لَكُمْ فِي الآخِرَةِ». [ر: ۵۱۱۰]

په (کتاب الاطعمة) کښې (باب الاکل فی اناء مفضض) تحت دسروزرو په لوښو کښې دخوراک څکاک مسئله تیره شوې ده.

**قوله: فَأَتَاهُ دِهْقَانٌ:** (دهقان) (ددال په کسره سره) سردارته وائی علامه عینی رحمه الله فرمائی چه (هوزعیم القوم و کبیرالقریة)[2]

## ۳۷= باب آنِيَةِ الْفِضَّةِ.

[۵۳۱۰] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ عَنِ ابْنِ عَوْنٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى قَالَ خَرَجْنَا مَعَ حُذَيْفَةَ وَذَكَرَ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «لاَ تَشْرَبُوا فِي آنِيَةِ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ، وَلاَ تَلْبَسُوا الْحَرِيرَ وَالدِّيبَاجَ، فَإِنَّهَا لَهُمْ فِي الدُّنْيَا وَلَكُمْ فِي الآخِرَةِ». [ر: ۵۱۱۰]

[۵۳۱۱] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ عَنْ نَافِعٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ -

[1] الدرلمنثور (ج۵ص۲٤۷) وفی روایة (مالحا دجاجا) وشعب الایمان للبیهقی رقم الحدیث (٤٤٧٩)_
[2] عمدة القاری (ج۲۱ص۲۰۱) ارشادالساری :(۱۲ص۳٦٤) فتح الباری (ج۱۰ص۱۱٦)_

صلى الله عليه وسلم - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «الَّذِى يَشْرَبُ فِى إِنَاءِ الْفِضَّةِ إِنَّمَا يُجَرْجِرُ فِى بَطْنِهِ نَارَ جَهَنَّمَ».

[۵۳۱۲] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنِ الأَشْعَثِ بْنِ سُلَيْمٍ عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ سُوَيْدِ بْنِ مُقَرِّنٍ عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ أَمَرَنَا رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم - بِسَبْعٍ، وَنَهَانَا عَنْ سَبْعٍ، أَمَرَنَا بِعِيَادَةِ الْمَرِيضِ، وَاتِّبَاعِ الْجِنَازَةِ، وَتَشْمِيتِ الْعَاطِسِ، وَإِجَابَةِ الدَّاعِى، وَإِفْشَاءِ السَّلاَمِ، وَنَصْرِ الْمَظْلُومِ، وَإِبْرَارِ الْمُقْسِمِ، وَنَهَانَا عَنْ خَوَاتِيمِ الذَّهَبِ، وَعَنِ الشُّرْبِ فِى الْفِضَّةِ - أَوْ قَالَ آنِيَةِ الْفِضَّةِ - وَعَنِ الْمَيَاثِرِ وَالْقَسِّىِّ، وَعَنْ لُبْسِ الْحَرِيرِ وَالدِّيبَاجِ وَالإِسْتَبْرَقِ.

ددې دترجمې ضرورت نه ووځکه چه سابقه ترجمه کښې داداخل دی لیکن هلته چه کوم حدیث ذکرکړې دې هغه (ان النبی ﷺ نهانا) دماضی صغې سره دې. اودباب په دې حدیث کښې (لاتشربوا) نهی ده.[۱]

**عبد الله بن عبدالرحمان**: دباب دویم روایت په سندکښې عبدالله بن عبدالرحمان دې، داحضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه نمسې دې اودام المؤمنین حضرت ام سلمه رضی الله عنها خورې دې. دې دخپل والداوخپلې تروړنه روایت نقل کوی.[۲] امام ترمذی رحمه الله نه علاوه باقی حضرات ددوی نه حدیث نقل کړې دې.[۳] اوابن حبان په کتاب الثقات کښې ددوی ذکرکړې دې.[۴]

حضرت حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه (هو ثقة ماله فی البخاری غیرهذا الحدیث)[۵]

دباب آخری حدیث مخکښې تیرشوې دې، په هغې کښې څو الفاظ اوګورئی:

**قوله**: المیاثر دمیثرة: (بکسر المیم وسکون الیاء) جمع ده. داپه زین باندې داوړلو والا کپړې نوم دې. چه هغه عام طوردریښمونه جوړولې شی. ابوعبیده رضی الله عنه فرمائی چه (المیاثر کانت من مراکب الاعاجم من دیباج اوحریر)[۶]

**قوله**: (القسی): دقاف په فتحې اودسین مکسورمشدده سره، داد(قیس) طرفته منسوب دې. چه دیوښار نوم دې. علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه دادشام یوښار دې.[۷] علامه عینی

---

[۱] عمدة القاری (ج۲۱ص۲۰۲)_
[۲] فتح الباری :ج۱۰ص۱۱۹)، وتهذیب الکمال :ج۱۵ص۱۹۷).رقم الحدیث :۳۳۷۴)
[۳] تهذیب الکمال :ج۱۵ص۱۹۷)وتهذیب التهذیب)ج ۵ص۲۹۱)_
[۴] ثقات ابن حبان :ج۵ص۱۰.ددوی حالات اوګورئی.تاریخ البخاری الکبیر: ۵الترجمة ۳۸۸، المعروف والتاریخ :ج۱ص۲۸۵،۲۴۱)الجمع لابن القیسرانی :ج۱ص ۲۵۴، والکاشف :۲_الترجمة :۳۸۴۵)_
[۵] عمدة القاری (ج۲۱ص۲۰۱) فتح الباری (ج۱۰ص۱۱۶)_
[۶] عمدة القاری (ج۲۱ص۲۰۳) ارشادالساری :(۱۲ص۳۶۶)_
[۷] عمدة القاری (ج۲۱ص۲۰۳) شرح البخاری للکرمانی :ج۲۰ص۱۷۱)_

رحمه الله ددې تردید کړې دې. او فرمائي چه داد مصریو بنارو وچه ویران شوې وو.[1] قسی کپړا هم دریښمونه جوړیده. ددې وجې حضورنبی اکرم ﷺ منع فرمائیلې ده.

**قوله**: (دیباج): نری ریښمو او (استبرق) غټو ریښموته وئیلی شی.[2] او حضرت حافظ ابن حجر رحمه الله لیکی چه:

(وفی هذه الاحادیث تحریم الاکل والشرب فی انیه الذهب والفضة علی کل مکلف رجلا کان او امراة ولا یلتحق ذالك بالحلی للنساء لانه لیس من التزین الذی ابیح لها فی شیء قال القرطبی: ویلتحق بهما (ای بالاکل والشرب) مافی معناهما مثل التطیب والتکحل وسائر وجوه الاستعمالات وبهذه قال الجمهور.....)_[3]

## ۲۸= باب الشُّرْبِ فِي الْأَقْدَاحِ

[۵۳۱۳] حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ عَبَّاسٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ سَالِمٍ أَبِي النَّضْرِ عَنْ عُمَيْرٍ مَوْلَى أُمِّ الْفَضْلِ عَنْ أُمِّ الْفَضْلِ أَنَّهُمْ شَكُّوا فِي صَوْمِ النَّبِيِّ -صلی الله علیه وسلم- يَوْمَ عَرَفَةَ، فَبُعِثَ إِلَيْهِ بِقَدَحٍ مِنْ لَبَنٍ فَشَرِبَهُ.[ر: ۱۵۷۵]

**قوله: الْأَقْدَاح**: د (قدح) جمع ده. (قدح) پیالئ او کټوری ته وائی.[4]

**دترجمة الباب مقصد**: ① په پیالئ او کټوری کښې او به څکل جائز دی. یادفاسقانو خلقو سره دمشابهت په وجه ممنوع دی، شاید حضرت امام بخاری رحمه الله دې طرفته اشاره کول غواړی چه په دې کښې څکل اګرچه دفساقو شعار دې لیکن هغه خاص مشروب او مخصوص هیئت نقطه نظرسره دهغوی شعاردې. بیاهم که ددوی مخصوص هیئت لره اګراختیارنه کړې شی نو فی نفسه قدح کښې او به څکل بلاکراهت جائزدی په دې ترجمة کښې حضرت امام بخاری رحمه الله ددې جوازثابتول غواړی. حضرت حافظ ابن حجر رحمه الله دترجمة الباب مقصدبیان کړې دې.[5]

② لیکن علامه عینی رحمه الله ددې تردیدکړې دې اوفرمائي چه دحضرت حافظ ابن حجر رحمه الله داخبره درست نه ده. په کټوری کښې او به څکل دفاسقانو شعارڅنګه دې حالانکه پخپله حضرت امام بخاری رحمه الله راتلونکې باب د (باب الشرب من قدح النبی ﷺ) عنوان سره قائم کړې دې. دحضورنبی اکرم ﷺ دمختلفو کټورو عالمانو ذکرکړې دې، چه په هغې کښې به ئې یو تو ریان او بل ته مغیث او دریم ته مضبب وئیلو.[6]

---

[1] عمدة القاری (ج ۲۱ ص ۲۰۳) ارشادالساری: (۱۲ ص ۳۶۸)_

[2] عمدة القاری (ج ۲۱ ص ۲۰۳) ارشادالساری: (۱۲ ص ۳۶۸)_

[3] عمدة القاری (ج ۲۱ ص ۲۰۳)

[4] عمدة القاری (ج ۲۱ ص ۲۰۴)

[5] عمدة القاری (ج ۲۱ ص ۲۰۳) فتح الباری (ج ۱۰ ص ۱۱۶)_

[6] الابواب والتراجم: ج ۲ ص ۹۸، عمدة القاری (ج ۲۱ ص ۲۰۴)_

لهذا حضرت امام بخاری رحمه الله ددې ترجمې نه مطلقا دشرب فی الاقدح جواز ثابتوی.

④ شیخ الحدیث مولانامحمدزکریا رحمه الله په «الابواب والتراجم» کښې فرمائی چه زما په نیز حضرت امام بخاری رحمه الله قدح ته په کوزی اوابریق باندې ترجیح ورکولو طرفته اشاره کوی ځکه چه دکټوری خله فراخه اوکشاده وی، که څه ګندوغیره پکښې پریوزی نوځکونکی ته په نظر راتلې شی، اوپه ابریق اوکوزه کښې داشان نه وی، نوهغه لیکی:

«ولایبعد عندی ان تکون اشارة الی ترجیح القدح علی الکوز والابریق وغیرهما فان القدح لسعة فمه یظهر فیه للشارب ماقد یسقط فیه شیٔ من التبن»(١)

دحدیث مناسبت باب سره بالکل واضح دی.

## ٢٩ = باب الشُّرْبِ مِنْ قَدَحِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - وَآنِيَتِهِ.

وَقَالَ أَبُو بُرْدَةَ قَالَ لِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَلاَمٍ أَلاَ أَسْقِيكَ فِي قَدَحٍ شَرِبَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - فِيهِ.

[٥٣١٤] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ حَدَّثَنَا أَبُو غَسَّانَ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ - رضى الله عنه - قَالَ ذُكِرَ لِلنَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - امْرَأَةٌ مِنَ الْعَرَبِ، فَأَمَرَ أَبَا أُسَيْدٍ السَّاعِدِيَّ أَنْ يُرْسِلَ إِلَيْهَا فَأَرْسَلَ إِلَيْهَا، فَقَدِمَتْ فَنَزَلَتْ فِي أُجُمِ بَنِي سَاعِدَةَ، فَخَرَجَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - حَتَّى جَاءَهَا فَدَخَلَ عَلَيْهَا فَإِذَا امْرَأَةٌ مُنَكِّسَةٌ رَأْسَهَا، فَلَمَّا كَلَّمَهَا النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَتْ أَعُوذُ بِاللَّهِ مِنْكَ. فَقَالَ «قَدْ أَعَذْتُكِ مِنِّي». فَقَالُوا لَهَا أَتَدْرِينَ مَنْ هَذَا قَالَتْ لاَ. قَالُوا هَذَا رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - جَاءَ لِيَخْطُبَكِ. قَالَتْ كُنْتُ أَنَا أَشْقَى مِنْ ذَلِكَ. فَأَقْبَلَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - يَوْمَئِذٍ حَتَّى جَلَسَ فِي سَقِيفَةِ بَنِي سَاعِدَةَ هُوَ وَأَصْحَابُهُ، ثُمَّ قَالَ « اسْقِنَا يَا سَهْلُ ». فَخَرَجْتُ لَهُمْ بِهَذَا الْقَدَحِ فَأَسْقَيْتُهُمْ فِيهِ، فَأَخْرَجَ لَنَا سَهْلٌ ذَلِكَ الْقَدَحَ فَشَرِبْنَا مِنْهُ. قَالَ ثُمَّ اسْتَوْهَبَهُ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ بَعْدَ ذَلِكَ فَوَهَبَهُ لَهُ. [ر: ٤٩٥٦]

[٥٣١٥] حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ مُدْرِكٍ قَالَ حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ حَمَّادٍ أَخْبَرَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ عَاصِمٍ الأَحْوَلِ قَالَ رَأَيْتُ قَدَحَ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم عِنْدَ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، وَكَانَ قَدِ انْصَدَعَ فَسَلْسَلَهُ بِفِضَّةٍ قَالَ وَهُوَ قَدَحٌ جَيِّدٌ عَرِيضٌ مِنْ نُضَارٍ. قَالَ قَالَ أَنَسٌ لَقَدْ سَقَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم فِي هَذَا الْقَدَحِ أَكْثَرَ مِنْ كَذَا وَكَذَا. قَالَ وَقَالَ ابْنُ سِيرِينَ إِنَّهُ كَانَ فِيهِ حَلْقَةٌ مِنْ حَدِيدٍ فَأَرَادَ أَنَسٌ أَنْ يَجْعَلَ مَكَانَهَا حَلْقَةً مِنْ ذَهَبٍ أَوْ فِضَّةٍ فَقَالَ لَهُ

---

(١) الابواب والتراجم: ج٢ص٩٨.

أَبُوطَلْحَةَ لَاتُغَيِّرَنَّ شَيْئًا صَنَعَهُ رَسُولُ اللَّهِ-صلى الله عليه وسلم- فَتَرَكَهُ.[ر: ۲۹۴۲]

**دترجمة الباب مقصد:** ① ابن منیراونورشارحین ددې ترجمة الباب مقصد داتوهم دفع کول ښائی چه دحضورنبی کریم ﷺ دوفات نه پس دحضورنبی کریم ﷺ پیالئ استعمالول درست نه دی ځکه داد اجازت نه بغیردنوروپه مال کښې تصرف دې اوهغه جائزنه دی حضرت بخاری رحمه الله دې وهم لره دلرې کولودپاره داترجمة الباب قائم کړوچه حضرات صحابه کرام رضي الله عنهم اودوی نه پس راتلونکودحضورنبی اکرم ﷺ پیالئ استعمال کړۀ ځکه چه حضورنبی اکرم ﷺ څه پریښودی ووهغه صدقه وه.دچامیراث نه ووچه په ملک غیرکښې بغیرداجازت نه تصرف لازم راشی.(۱)

خوپه دې باندې اشکال کیدشی چه صدقې سره صرف فقیراستفاده کولې شی، غنی نه. حالانکه دحضورنبی اکرم ﷺ پیالونه اغنیاء هم استفاده اوکړه.

ددې جواب داورکړې شوچه غنی دفرض صدقه (زکوة وغیره) نه استفاده نه شی کولې اودحضورنبی اکرم ﷺ ترکه صدقه دقبیل نه نه وه.(۲)

حضرت حافظ ابن حجر رحمه الله ددې جواب ورکړې دې مذکوره صدقه اوقاف مطلقه دقبیل نه وو اواوقاف مطلقه نه غنی اوفقیر دواړه استفاده کولې شي.(۳)

② شیخ الحدیث مولانامحمدزکریا رحمه الله فرمائی چه،ددې بحثونوهډو ضرورت نشته دې، بلکه دحضرت امام بخاری رحمه الله مقصددادې چه په طوردتبرک دحضورنبی اکرم ﷺ ملکیت وی یا نه وی. نوحضرت لیکی چه:

(قلت لاحاجة الى هذا البحث الطويل بل الغرض من الترجمة الشرب من قدح شرب منه النبى ﷺ تبركا به اعم من ان يكون ذالك القدح فى ملكه ﷺ امرلا وعلى هذا فمطابقة الحديث للترجمة ايضا ظاهرة فالظاهران القدح فى اول حديث الباب كان لسهل لاللنبى ﷺ فلاحاجة حينئذ فى اثبات المطابقة الى ماذكره العلامة العينى من ان هذا القدح فى الاصل كان النبى ﷺ فانه خلاف الظاهر بل الظاهر انه كان لسهل رضي الله عنه والله اعلم)(۴)

ابوبرده دمشهورصحابی دحضرت ابوموسی اشعری رضي الله عنه خوئې دې،ددۀ نوم عامردې.(۵)

داحدیث حضرت امام بخاری رحمه الله مخکښې په کتاب الاعتصام کښې موصولا نقل فرمائیلې دې.(۶)

حضرت عبدالله بن سلام سره یوپیاله وه.چه په هغې کښې حضورنبی اکرم ﷺ څکل کړی وو

---

(۱) عمدة القاری (ج۲۱ص۲۰٤) فتح الباری (ج۱۰ص۱۲۲) الابواب والتراجم :ج۲ص۹۸._

(۲) عمدة القاری (ج۲۱ص۲۰٤) فتح الباری (ج۱۰ص۱۲۲) الابواب والتراجم :ج۲ص۹۸._

(۳) فتح الباری (ج۱۰ص۱۲۲) الابواب والتراجم :ج۲ص۹۸._

(۴) الابواب والتراجم :ج۲ص۹۸._

(۵) عمدة القاری (ج۲۱ص۲۰۵)_

(۶) عمدة القاری (ج۲۱ص۲۰٤) فتح الباری (ج۱۰ص۱۲۲)_

**قوله**: حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ : دې حديث كښې د(ابنة الجون) واقعه بيان كړې شوې ده. چه دهغې پوره تفصيل په كتاب الطلاق كښې تيرشوې دې.(١)

**قوله**: أُجُمِ بَنِي سَاعِدَةَ : (اجم) دهمزه اوجيم ضمه سره..(بناء يشبه القصر) يعنى محل سره مشابه ديو تعميرنوم دې، ددې جمع (اجام) رازى.(٢)

علامه كرمانى رحمه الله فرمائى چه (اجم) د(اجمة) جمع ده.(وهى الغيضة) (٣)غيضه د ګڼرو ونو بوټو ځائې ته وائى اوجوهرى رحمه الله فرمائى چه (حصن بناء اهل المدينة من الحجارة) (٤) يعنى دكانړونه جوړې شوې قلعې ته (اجم) وائى.

علامه كرمانى رحمه الله فرمائي چه (منكسة) داسم فاعل صيغه ده اودباب افعال نه اودباب تفعيل دواړونه كيديشى. (٥)په معنى دسرټيټولو

(اشقى) اګرچه دتفضيل صيغه ده ليكن دلته مطلقا دصفت په معنى كښې ده. اود(ذالک) اشاره دحضورنبى اكرم ﷺ شرف زوجيت فوت كيدو طرفته ده.يعنى ددې شرف فوت كيدوپه وجه كښې زما ډيره غټه بدبختى ده.

**قوله**: فَخَرَجْتُ لَهُمْ بِهَذَا الْقَدَحِ فَأَسْقَيْتُهُمْ فِيهِ، فَأَخْرَجَ لَنَا سَهْلٌ : حضرت سهل بن سعد رضى الله عنه فرمائى چه ماحضورنبى اكرم ﷺ اوحضرات صحابه كرام رضى الله عنهم د اوبو څكولو دپاره داكټورې راويستلو اومونږ په دې كښې اوبه اوڅكې مخكښې راوى حضرت ابوحازم سلمه بن دينار فرمائى چه حضرت سهل هغه پياله راوويستله اومونږ په هغې كښې اوبه اوڅكلې، حضرت حافظ ابن حجر رحمه الله دحديث مناسبت باب سره بيانوى اوفرمائى چه :

(ومناسبته للترجمة ظاهرة من جهة رغبة الذين سالوا سهلا ان يخرج لهم القدح المذكور ليشربوا فيه تبركا به)(٦)

يعنى حضرت عمربن عبدالعزيز رحمه الله (دخپلې مدينې منورې ګورنرئى) په دوران كښې هغه پياله حضرت سهل نه دهبه په طورطلب كړه نوهغوى هغه پياله دوى ته هبه كړه.

حضرت حافظ ابن حجر رحمه الله ددې حديث نه څوآداب مستنبط كوى اوفرمائى چه :(٧)

عاصم احول فرمائى چه ماحضرت انس رضى الله عنه سره دحضورنبى اكرم ﷺ يوپياله مباركه ليدلې وه چه ماته شوې وه.هغوى په دې كښې دچاندئ كړه اچولې وه هغه دلرګى يوښكلې پياله

---

١) عمدة القارى (ج٢١ص٢٠٤) فتح البارى (ج١٠ص١٢٢)وكشف البارى :كتاب الطلاق _

٢) فتح البارى (ج١٠ص١٢٢) عمدة القارى (ج٢١ص٢٠٥) _

٣) فتح البارى (ج١٠ص١٢٢) وشرح الكرمانى ج٢٠١٧٢)و عمدة القارى (ج٢١ص٢٠٥) _

٤) فتح البارى (ج١٠ص١٢٢) وشرح الكرمانى ج٢٠١٧٢)_

٥) فتح البارى (ج١٠ص١٢٥) وشرح الكرمانى ج٢٠١٧٢)_

٦) الابواب والتراجم :ج٢ص٩٨، فتح البارى (ج٢٠ص١٧٢) _

٧) فتح البارى (ج١٠ص١٢٣) _

مبارکه وه حضرت انس رضی الله عنه فرمائی چه ما په دې پياله مبارکه کښې حضورنبی اکرم ﷺ ته ډېر ځل (څه نه څه) څکولی دی.

**قوله**: فَسَلْسَلَهُ بِفِضَّةٍ : شارحينو ددې ترجمه کړې ده (وصل بعضه ببعض بفضة) يعنی دا دچاندئې کړوسره جوړه کړې شوې وه.[1]

**قوله**: وَهُوَ قَدَحٌ جَيِّدٌ عَرِيضٌ مِنْ نُضَارٍ : (نضار) دنون ضمه اودضادتخفيف سره. دا يوښه لرګې وی چه دهغې نه عام طورلوښې جوړولې شی.[2]

دا ماقبل حديث سره موصول دې،[3] عاصم احول فرمائی چه ابن سرين اوفرمائيل چه په دې کښې داوسپنې يوکړه وه. حضرت انس رضی الله عنه اراده اوکړه چه ددې په ځائې دسروزرويا چاندئې کړه اولګوی نوحضرت ابوطلحه رضی الله عنه هغه لره منع کړو. اووې فرمائل چه داڅيزمه بدلوه ځکه چه داحضورنبی اکرم ﷺ جوړه کړې وه نو هغوی خپله اراده ترک کړه، علامه عينی رحمه الله ليکی چه

(وفی الحديث جواز اتخاذ ضبة الفضة وكذلك السلسة والحلقة ولكن فيه اختلاف فقال الخطابی منعه مطلقا جماعة من الصحابة والتابعين وهوقول مالك والليث وعن مالك يجوز من الفضة اذا كان يسيرا وكرهه الشافعی وقال ابوحنيفه واصحابه فلاباس اذا اتقی وقت الشرب موضع الفضة وبه قال احمد واسحاق وتحرم ضبة الذهب مطلقا....... وروى الطبرانی فی الاوسط من حديث ام عطية ان النبی ﷺ نهی عن لبس الذهب وتفضيض الاقداح ثم رخص فی تفضيض الاقداح وهوحجة علی الشافعی)[4]

## ۳۰= باب شُرْبِ الْبَرَكَةِ وَالْمَاءِ الْمُبَارَكِ

[۵۳۱۲] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنِ الأَعْمَشِ قَالَ حَدَّثَنِي سَالِمُ بْنُ أَبِي الْجَعْدِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ - رضی الله عنهما - هَذَا الْحَدِيثَ قَالَ قَدْ رَأَيْتُنِي مَعَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - وَقَدْ حَضَرَتِ الْعَصْرُ وَلَيْسَ مَعَنَا مَاءٌ غَيْرَ فَضْلَةٍ فَجُعِلَ فِي إِنَاءٍ، فَأُتِيَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - بِهِ فَأَدْخَلَ يَدَهُ فِيهِ وَفَرَّجَ أَصَابِعَهُ ثُمَّ قَالَ «حَيَّ عَلَى أَهْلِ الْوُضُوءِ، الْبَرَكَةُ مِنَ اللَّهِ». فَلَقَدْ رَأَيْتُ الْمَاءَ يَتَفَجَّرُ مِنْ بَيْنِ أَصَابِعِهِ، فَتَوَضَّأَ النَّاسُ وَشَرِبُوا، فَجَعَلْتُ لاَ آلُو مَا جَعَلْتُ فِي بَطْنِي مِنْهُ، فَعَلِمْتُ أَنَّهُ بَرَكَةٌ. قُلْتُ لِجَابِرٍ كَمْ كُنْتُمْ يَوْمَئِذٍ قَالَ أَلْفًا وَأَرْبَعَمِائَةٍ.

[1] عمدة القاری (ج۲۱ص۲۰۶) فتح الباری (ج۱۰ص۱۲۳)_ارشادالساری :(۱۲ص ۳۷۰)_

[2] عمدة القاری (ج۲۱ص۲۰۶) فتح الباری (ج۱۰ص۱۲۳)_ارشادالساری :(۱۲ص ۳۷۰)_

[3] عمدة القاری (ج۲۱ص۲۰۶) فتح الباری (ج۱۰ص۱۲٤)_

[4] عمدة القاری (ج۲۱ص۲۰۶)_

تَابَعَهُ عَمْرٌو عَنْ جَابِرٍ. وَقَالَ حُصَيْنٌ وَعَمْرُو بْنُ مُرَّةَ عَنْ سَالِمٍ عَنْ جَابِرٍ خَمْسَ عَشْرَةَ مِائَةً وَتَابَعَهُ سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ عَنْ جَابِرٍ. [ر ۳۳۸۳]

دبرکت نه دبرکت والا اوبه مراد دی. په برکت والاځيز باندې هم دبرکت اطلاق کيږی (۱)

**دترجمة الباب مقصد** ① علامه ابن بطال وغيره ددې ترجمة الباب مقصد ا ښائی چه حضرت امام بخاری ښودل غواړی چه برکت والا اوبه کثرت سره استعمالولې شی. (۲)

② شيخ الحديث حضرت مولانا زکريا رحمه الله فرمائی چه زما په نيز د حضرت امام بخاری مقصد دادې چه حضرت امام بخاری رحمه الله خود رومبئ پياله نه دحضورنبی کريم ﷺ دمخصوصې پيالئ تبرک حاصلولو جواز ښودلې دې. اوپه دې کښې مطلقا دتبرک جواز ښائی که هغه دحضورنبی اکرم ﷺ دلاس نه وی او که دبزرګانو دلاس نه ددې وجې حضرت امام بخاری رحمه الله دترجمة الباب الفاظ عام اوساتل اوليکی چه **(والاوجه عندی ان الغرض من الترجمة السابقة الاستبراك المخصوص بقدح النبى ﷺ واشار بهذه الترجمة الى الاستبراك مطلقا اعم من ان يكون حصل بيد النبى ﷺ او بيد غيره من الصلحاء ويشير اليه اطلاق لفظ الترجمة وان كان المذكور فى حديث الباب ذكر بركة النبى ﷺ فيقاس بركة غيره عليه ﷺ)** (۳)

حضرت جابر رضی الله عنه فرمائی چه څه دحضورنبی اکرم ﷺ سره اوم دمازيګر دمونځ وخت شو اومونږ سره لږې اوبه پاتې شوې وې هغه اوبه حضورنبی اکرم ﷺ په يولوښې کښې واچولې اودحضورنبی اکرم ﷺ په خدمت کښې پيش کړې شوې حضورنبی اکرم ﷺ خپل لاس مبارک په دې کښې داخل کړو. اوخپلې ګوتې ئې فراخې اوساتلې ا ووې فرمائيل چه اودس کولو والا راشئ برکت دالله جل جلاله دطرفنه دې نوما اوکتل چه اوبه د حضورنبی اکرم ﷺ دګوتو مبارک دمينځ نه روانې خلقو اودس ونه اوکړل اواوبه ئې اوڅکلې ماهم ددې اوبونه ښه په مړه خيټه اوبه اوڅکلې ځکه چه ماته معلوم وو چه دابرکت والا اوبه دی

راوی سالم بن ابى الجعد وائی چه ما دحضرت جابر رضی الله عنه نه تپوس اوکړو چه په هغه ورځ تاسو څومره کسان وې نوهغوی اوفرمائيل چه څوارلس سوه کسان وو.

دې حديث کښې چه کومه واقعه بيان کړې شوې ده. داپه حديبيه کښې پيښه شوې وه. (۴) دحديث مناسبت ترجمة الباب سره ظاهردې

**قوله وَلَيْسَ مَعَنَا مَاءٌ غَيْرَ فَضْلَةٍ:** (فضلة) هر يچ شوی ځيزته وائی مافضل من الشئ.

---

۱) عمدة القارى (ج۲۱ص۲۰۶) فتح البارى (ج۱۰ص۱۲۵)_ارشادالسارى :(۱۲ص۳۷۰) الابواب والتراجم۲۹۷)_

۲) الابواب والتراجم۲۹۷) فتح البارى (ج۱۰ص۱۲۶)_

۳) الابواب والتراجم۲۹۷)_

۴) فتح البارى (ج۱۰ص۱۲۶)_ارشادالسارى :(۱۲ص۳۷۲) عمدة القارى (ج۲۱ص۲۰۷)_

**قوله**: حَيِّ عَلَى أَهْلِ الْوُضُوءِ: اکثرو روایتونو کښې داشان دی، په دې صورت کښې «اهل الوضوء» منادی منصوب دې، «وضوء «دواوفتحې سره «اسم لمایتوضابه» هغه اوبۀ چه هغې سره اودس کولې شی، ترجمه به ئې وی چه «ائې اودس کولوو الومالره راشی.»[1]

**قوله**: فَجَعَلْتُ لاَ آلُو مَا جَعَلْتُ فِي بَطْنِي مِنْهُ: «الایالو» بروزن «دعا،یدعو» دباب نصرنه دې، په معنی دکوتاهئ کولو.[2] یعنی مااوبو کښې هیڅ قسمه کمی اوکوتاهی اونه کړه اوښه په مړه خېټه مې اوڅکلې.

علامه عینی رحمه الله فرمائی: «وفیه من الفقة ان الاسراف فی الطعام والشراب مکروه الا الاشیاء التی اری الله فیها برکة غیر معهودة وانه لاباس بالاستکثار منها ولیس فی ذالك سرف ولا استکثار ولا کراهیة»[3]

....

## ۷۸- کتاب المرضی

«الاحادیث: ۵۳۱۷: ۵۳۵۳»

کتاب المرضی ښې دویشت «۲۲» ابواب او اته څلویښت «۴۸» احادیث مکرر دی، او څوارلس احادیث په ړومبی ځل په دې کښې ذکر کړې شوی دی، په دې څوارلسو کښې لس احادیثه متفق علیه دی، یعنی امام مسلم رحمه الله هم دهغې تخریج کړې دې، کتاب المرضی کښې درې آثار دی،

بسم الله الرحمن الرحیم

## ۷۸- کتاب المرضی

حضرت امام بخاری رحمه الله دکتاب الاشربه نه پس دکتاب المرضی ذکر فرمائیلی دې شارحینو دلته کښې څه مناسبت نه دې بیان کړې لیکن مناسبت ظاهر دې ځکه چه طعام او شراب دانسان جسم سره تعلق لری اودمرض تعلق هم دانسان دجسم سره دې، او د شرابو او طعامو بې اعتدالی عموماً دمرض سبب جوړیږی، ددې دوجې نه امام بخاری داشربه نه پس متصل دکتاب المرضی ذکرکړې دې،

---

[1] ارشادالساری :(۱۲ص۳۷۲) عمدة القاری (ج۲۱ص۲۰۷)_

[2] فتح الباری (ج۱۰ص۱۲۶)_ارشادالساری :(۱۲ص۳۷۲) _

[3] عمدة القاری (ج۲۱ص۲۰۷)_

مرضى،، دفعلى په وزن سره دمريض جمع ده، دلته مرض نه دجسم مرض مراددې، دمرض اطلاق په روحانى بيمارئې باندې هم كيږى،لكه څنګه چه قرآن پاك كښې دمنافقينو متعلق فرمائيلى شوى دى،،﴿فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ﴾ اويادشهوت په وجه لاحق كيږى،په قرآن كښې دى چه﴿فَيَطْمَعَ الَّذِيْ فِيْ قَلْبِهٖ مَرَضٌ﴾[1] دجسمانى مرض تعريف ((خروج الجسم عن المجرى الطبيعى ويعبرعنه بانه حالة اوملكة تصدربها الافعال عن الموضوع لها غير سليمة))[2] يعنى دجسم خپل طبعى حالت نه وتلوته مرض وائى،

# ۱- باب ماجاء فى كفارة المرض

**قوله**: وقول الله تعالى: مَنْ يَّعْمَلْ سُوْٓءًا يُّجْزَ بِهٖ: [النساء: ۱۲۳]

كفاره دكفرنه مبالغه ده، چه ددې اصل معنى پټول دى،دلته مطلب دادې چه دمومن مرض ددهٔ دګناهونو دپاره مرض جوړيږى،[3] علامه كرمانى فرمائى چه ((كفارة المرض)) كښې اضافت بيانيه دې لكه چه په شجرة الاراك كښې اضافت بيانيه دې،((لان المرض ليست له كفارة بل هوالكفارة نفسها))[4] او داضافت په معنى د،،فى،، كښې هم كيديشى،((اى كفارة فى المرض)) اوداد،،اضافة الصفة الى الموصوف،، دقبيل نه دې، [5]

**قوله**: وقول الله تعالى: مَنْ يَّعْمَلْ سُوْٓءًا يُّجْزَ بِهٖ: دسورة النساء آيت كريمه دې،پوره آيت دادې ((لَيْسَ بِاَمَانِيِّكُمْ وَلَآ اَمَانِيِّ اَهْلِ الْكِتٰبِ ؕ مَنْ يَّعْمَلْ سُوْٓءًا يُّجْزَ بِهٖ ۙ وَلَا يَجِدْ لَهٗ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا))يعنى نه ستاپه خواهيشونوباندې مداردې اونه داهل كتابو په خواهيشونو باندې مدار دې،چه څوك بدكوى نوهغه به دهغې سزاومومى اوددې سرې به دالله نه علاوه نه څوك حمايتى وى اونه به ددوى څوك مددګاروى،(چه دالله تعالى دعذاب نه دوى لره نجات وركړى)

علامه ابن بطال رحمه الله ددې آيت كريمه معنى بيانوى فرمائى چه ((ذهب اكثرالناس اهل التاويل الى ان معنى الاية ان المسلم يجازى على خطاياه فى الدنيا بالمصائب التى فيها تقع له فيها فتكون كفارة لها))[6] يعنى دمسلمانانو دګناهونو سزا دوى ته دمصائبو په شكل كښې وركولى شى، چه په كومو كښې دوى مبتلا كيږى،

حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله دحضرت عائشه رضى الله عنها روايت نقل كوى چه كله داآيت نازل شو

[1] فتح البارى: ۱۲۸/۱۰ الابواب والتراجم: ۹۸/۲)_

[2] عمدة القارى: ۲۰۷/۲۱و وارشادالسارى: ۳۷۳/۱۲، وشرح الكرمانى: ۱۷۵/۲۰)_

[3] عمدة القارى: ۲۰۷/۲۱،وارشادالسارى: ۳۷۳/۱۲، وفتح البارى: ۱۲۸/۱۰)_

[4] عمدة القارى: ۲۰۷/۲۱، فتح البارى: ۱۲۸/۱۰، وشرح الكرمانى: ۱۷۵/۲۰)_

[5] عمدة القارى: ۲۰۸/۲۱، وارشادالسارى: ۳۷۳/۱۲، فتح البارى: ۱۲۸/۱۰، وشرح الكرمانى: ۱۷۵/۲۰)_

[6] عمدة القارى: ۲۰۷/۲۱، فتح البارى: ۱۲۸/۱۰، الابواب والتراجم، ۹۸/۲۰)_

نو مسلمانان ډیرپریشانه شول او دوی ووئیل چه ((انا لنجزی بکل ما عملناه هلکنا اذًا....)) که مونږ ته دخپل هر عمل سزا راکولی شی نو بیا مونږ به هلاك شو، حضورنبی اکرم ﷺ ته د دوی دپریشانۍ داکیفیت معلوم شو نوونۍ فرمائیل چه ((نعم یجزی به فی الدنیا من مصیبة فی جسده مما یوذیه))[1] داشان حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه نه مروی دی چه هغوی حضورنبی اکرم ﷺ ته اوفرمائیل چه ((یا رسول الله کیف الصلاح بعد هذه الایة، لیس بامانیکم، فقال غفر الله لك یا ابا بکر الست تمرض الست تحزن قال قلت بلی قال هو ما تجزون))[2]

خلاصه دکلام داشوه چه دګناهونو سزا یومومن ته دمصائبو اومرضونو په شکل کښې ورکولی شي نو دمؤمن بیماری اودده مرض دده دګناهونوجزا اوکفاره ده. ددې وجې حضرت امام بخاری رحمه الله داآیت ددې باب نه پس ذکر اوفرمائیلو

فائده: مؤمن چه کله په مصائبو اوبیمارو اوغمونو کښې مبتلا شی نو دا دګناهونو په وجه وی په دې صورت کښې دا ابتلاء دده دګناهونو کفاره جوړیږی. اویا دګناهو نو دکفارې دپاره نه بلکه درفع درجات دپاره یوصالح مؤمن لره په مصائبو کښې مبتلا کولی شی. صوفیاء کرامو فرمائیلی دی چه ړومبی صورت کښې سړی باندې دبې قرارۍ صورت وی اوپه دوئم صورت کښې په مصیبت کښې داخته کیدو نه باوجود سړې پر سکون وی اورجوع الی الله کښې مزید اضافه کیږی.

[۵۳۱۷] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ الْحَكَمُ بْنُ نَافِعٍ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ أَنَّ عَائِشَةَ رضی الله عنها زَوْجَ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم «مَا مِنْ مُصِيبَةٍ تُصِيبُ الْمُسْلِمَ إِلاَّ كَفَّرَ اللَّهُ بِهَا عَنْهُ، حَتَّى الشَّوْكَةِ يُشَاكُهَا»

[۵۳۱۸] [3] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ عَمْرٍو حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَلْحَلَةَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «مَا يُصِيبُ الْمُسْلِمَ مِنْ نَصَبٍ وَلاَ وَصَبٍ وَلاَ هَمٍّ وَلاَ حُزْنٍ وَلاَ أَذًى وَلاَ غَمٍّ حَتَّى الشَّوْكَةِ يُشَاكُهَا، إِلاَّ كَفَّرَ اللَّهُ بِهَا مِنْ خَطَايَاهُ».

مذکوره دواړه حدیثونه حضرت امام بخاری رحمه الله دلته په ړومبی ځل ذکر فرمائیلی دی [4] ړومبی حدیث دحضرت عائشه رضی الله عنها نه مروی دې حضورنبی اکرم ﷺ فرمائی چه هیڅ یو مصیبت مسلمان ته نه رسی مګر داچه الله جل جلاله دده دپاره ددې په بدله کښې دده ګناهونه

---

[1] فتح الباری: ۱۰/۱۲۸)_

[2] فتح الباری: ۱۰/۱۲۸،۱۲۹)_

[3] الحدیث اخرجه الترمذی فی الجنائز باب ماجاء فی ثواب المریض: ۳/۲۹۸، رقم الحدیث: ۹۶۶) واخرجه المسلم فی کتاب البر والصلة باب ثواب المومن فی ما یصیبه من مرض: ۳/۱۹۹۳) رقم الحدیث: ۲۵۷۲)

[4] اخرجه المسلم فی البر والصلة والاداب باب ثواب المومن فی ما یصیبه من مرض.....الخ)_

رژوی، تردې پورې چه يو ازغې دده په بدن کښې لاړ شی،

دوئم حديث دحضرت ابو هريره رضي الله عنه نه مروی دې حضورنبی اکرم صلى الله عليه وسلم فرمائی چه مسلمان ته هيڅ څه غم اوتکليف نه رسی تردې پورې چه دده په بدن کښې يو ازغې هم لاړ شی نو الله جل جلاله دده دپاره دګناهونو کفاره جوړه وی،

**قوله**: ما من مصيبة تصيب المسلم: مصيبت په اصل کښې «الرمية بالسهم» ته وائی، بيا دالفظ مطلقا هرې حادثې دپاره استعماليدل شروع شو، [1] علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه «المصيبة فی اللغة ينزل بالانسان مطلقاً وفی العرف ما نزل به من مکروه خاصة وهوالمراد هٰهنا» [2] امام راغب رحمه الله فرمائی چه لفظ «اصابه» دخير اوشر دواړو دپاره استعماليږی، نو قرآن کريم کښې دی، «إِنْ تُصِبْكَ حَسَنَةٌ تَسُؤْهُمْ وَإِنْ تُصِبْكَ مُصِيبَةٌ» [3] بعضو وئيلی دی چه استعماليږی خو په دواړه کښې خو مشتق منه ددواړو بيل بيل دې، «اصابة فی الخير» د «صوب» نه مشتق دې «صوب» په قدرد ضرورت نازل شوی باران ته وائی، او «اصابة فی الشر» د «اصابة السهم» نه ماخوذ دې، [4]

**قوله**: حتى الشوكة يشاكها: «يشاك» د «يقال» په وزن باندې دمضارع مجهول صيغه ده، «يشاك، شوكا» لازم او متعدی دواړه استعماليږی، ازغی تلل او ازغی منډل، [5]

حضرت حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دا اصل کښې «يشاك بها» دې با جاره ئې حذف کړه اوفعل ئې دې سره نيغ په نيغه يوځائې کړودې ته «حذف او ايصال» وونيلی شی، حضرت حافظ ابن حجر رحمه الله ددې ترجمه کړې ده، «ای يشوکه غيره بها» يعنی بل څوك چا کښې ازغی اوتومبی، يا په خپله پکښې لاړ شی، [6]

**قوله**: الا كفر الله بها عنه: دمسند احمد په روايت کښې دی چه «الا كان كفارة لذنبه» [7] شيخ عزالدين بن سلام فرمائی چه داجراوثواب تعلق دانسان خپل کسب سره دې، لهذا مصائب اوتکليفونه په دې کښې داخل نه دی، خوکه په دې باندې صبر اوکړی نوهغه به په دې صبر باندې داجراوثواب مستحق کيږی، [8] ليکن نورو علماؤ ددې ترديد کړې دې اووئيلی ئې دی چه په احاديثو صريحه کښې مطلقاً په مصائبو باندې داجراوثواب وعده ده، که سرې په

---

[1] عمدة القاری: ۲۱/۲۰۸)_
[2] عمدة القاری :۲۱/۲۰۸، وشرح البخاری للکرمانی :۲۰/۱۷۵و فتح الباری، ۱۰/۱۲۹)_
[3] عمدة القاری :۲۱/۲۰۸و فتح الباری :۱۲۹/۱۰)_
[4] عمدة القاری :۲۱/۲۰۸، فتح الباری: ۱۰/۱۲۹)_
[5] عمدة القاری: ۲۱/۲۰۸۰-
[6] عمدة القاری: ۲۱/۲۰۸، وفتح الباری:۱۰/۱۲۹۰-
[7] فتح الباری :۱۰/۱۲۹)_
[8] فتح الباری :۱۰/۱۳۰)_

هغې باندې صبر او کړی او که اونکړی، راضی وی او که نه وی، نو علامه قرافی رحمه الله فرمائی چه: «المصائب کفارات جزما سواء اقترن بها الرضا ام لا لکن ان اقترن بها الرضا عظم التکفیر والا قل»[1] بهر حال که دسړی گناهونه وی نو مصائب دده دپاره کفارات جوړیږی او که دده گناهونه نه وی نو هغې سره دده درجات اوچتیږی اوبلندیږی، [2] علامه قرافی رحمه الله تعالی علیه فرمائی چه یوسړې په مصیبت کښې وی نوهغه ته دا ووئیل مناسب نه دی چه «جعل الله هذه المصیبة کفارة لذنبك» ځکه چه کله شریعت مصیبت لره کفاره جوړه کړې ده نودوباره ددې دعا ضرورت نشته دې، [3]

## تراجم رجال

**زهیربن محمد:** دده کنیت ابوالمنذر دې، خراسانی، مروزی، اوخرقی دده نسبت دې، «خرق» دخاء اوراُ په فتحې سره په مروکښې دیوکلی نوم دې، [4] حضرت امام بخاری رحمه الله ددوی نه صرف دوه احادیثه نقل کړی دی، یودا اودوئیم په کتاب الاستیذان کښې بعضو محدثینو دده په حافظه کښې کلام کړې دې، [5] لیکن حضرت امام بخاری رحمه الله په تاریخ صغیر کښې فرمائی چه شام والو دده نه کوم روایتونه نقل کړی دی هغه مناکیر دی، بیاهم د بصرې والو روایتونه صحیح دی، [6] حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله دده باره کښې د «لیس به باس مستقیم الحدیث» او «مقارب الحدیث» الفاظ وئیلی دی، [7]

یحیي بن معین رحمه الله فرمائی چه «صالح لا باس به» [8] امام دارمی رحمه الله فرمائی «ثقة» [9] امام نسائی رحمه الله فرمائی چه دوی ضعیف دې، [10] اوبل ځائې کښې فرمائی چه «لیس بالقوی» [11] په ۲۲۲ هجرې کښې ددوی وفات اوشو، [12]

---

[1] ) فتح الباری : ۱۰/۱۳۰)_

[2] ) فتح الباری: ۱۰/۱۳۰)_

[3] ) فتح الباری : ۱۰/۱۳۰)_

[4] ) تهذیب الکمال : ۹/۴۱٤، رقم الترجمه : ۲۰۱۷)_

[5] ) فتح الباری: ۱۰/۱۳۰. الجرح والتعدیل : ۱/۳، االترجمه: ۲۶۸۶)_

[6] ) تاریخ الصغیر للامام البخاری : ۲/۱۴۹)_

[7] ) تهذیب الکمال : ۱٤/٤۱۷)_

[8] ) تاریخ عثمان بن سعید الدارمی، الترجمه : ۳۴۳)_

[9] ) تهذیب الکمال: ۱٤/٤۱۷)_

[10] ) تهذیب الکمال: ۱٤/٤۱۷)_

[11] ) الضعفاء والمتروکین للنسائی، الترجمة : ۲۱۸، وتهذیب الکمال : ۱٤/٤۱۸)_

[12] ) تهذیب الکمال : ۱٤/٤۱۷ ددوی حالاتو کتلو دپاره اوگورئی، تاریخ الکبیر للبخاری، ۳/الترجمه ۱٤۲۰، معجم البلدان : ٤/٤۲۵، وسیراعلام النبلاء : ۸/۱۶۸، ومقدمه فتح الباری: ۱۰/۱۳۱)_

نصب، د ، تعب ، په معنى كښې دې د ، وزنا تعب ، په شان ، «وصب» مرض ته وائى، بعضو وئيلى دى چه «وصب» مرض ته وائى چه د كيدو نه پس ختم شى، (١)

**هَمّ:** ديو خطرناكې اونقصان وركونكى معامله پيښيدو په سلسله كښې فكر كولو كښې چه كومه پريشانى سرى ته كيږى هغې ته هم وائى،

**غَمّ:** ديو ناګواره واقعې پيښيدو سره انسان په زړه كښې چه كوم تكليف راوزى هغې ته غم وائى، «حزن» دهغه څيز مفقود كيدو سره لاحق كيږى چه دهغې مفقود كيدل دسړى دپاره شاق وى(٢) بعضو وئيلى دى چه دحزن تعلق دمافات سره دې اودهم تعلق دمآآت سره دې، (٣)

[٥٣١٩] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ سُفْيَانَ عَنْ سَعْدٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ كَعْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم قَالَ: «مَثَلُ الْمُؤْمِنِ كَالْخَامَةِ مِنَ الزَّرْعِ تُفَيِّئُهَا الرِّيحُ مَرَّةً، وَتَعْدِلُهَا مَرَّةً، وَمَثَلُ الْمُنَافِقِ كَالأَرْزَةِ لاَ تَزَالُ حَتَّى يَكُونَ انْجِعَافُهَا مَرَّةً وَاحِدَةً» وَقَالَ زَكَرِيَّاءُ حَدَّثَنِي سَعْدٌ حَدَّثَنَا ابْنُ كَعْبٍ عَنْ أَبِيهِ كَعْبٍ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم-.

داحديث دلته كښې امام بخارى په ړومبى ځل ذكرفرمائيلى دې، (٤) حضرت كعب فرمائى چه رسول الله اوفرمائيل چه دمومن مثال د پتې دونو پشان دې چه كله هوا ده لره يوخوا بل خوا اړوى رااړوى اوكله ده لره نيغوى اودمنافق مثال دصنوبردونې په شان دې چه هميشه قائم وى اوتردې چه يو ځل اودريږى،

[٥٣٢٠] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ قَالَ حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ فُلَيْحٍ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي عَنْ هِلاَلِ بْنِ عَلِيٍّ مِنْ بَنِي عَامِرِ بْنِ لُؤَيٍّ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رضى الله عنه- قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- «مَثَلُ الْمُؤْمِنِ كَمَثَلِ الْخَامَةِ مِنَ الزَّرْعِ مِنْ حَيْثُ أَتَتْهَا الرِّيحُ كَفَأَتْهَا، فَإِذَا اعْتَدَلَتْ تَكَفَّأُ بِالْبَلاَءِ، وَالْفَاجِرُ كَالأَرْزَةِ صَمَّاءَ مُعْتَدِلَةً حَتَّى يَقْصِمَهَا اللَّهُ إِذَا شَاءَ». [٧٠٢٨]

داحديث هم امام بخارى دلته په ړومبى ځل ذكر كړې دې، (٥)

---

(١) ومقدمه فتح البارى: ١٠/١٣١)_

(٢) الهم ينشاء عن الفكر فيما يتوقع حصوله مما يتاذى به، والغم يحدث للقلب بسبب ماحصل، والحزن يحدث ما يشق على المراة فقده (فتح البارى: ١٠/١٣١، عمدة القارى: ٢١/٢٠٩)_

(٣) ارشادالسارى، ١٢/٣٧٥)_

(٤) الحديث الذى اخرجه المسلم فى صفات المنافقين واحكامهم باب مثل المومن كالزرع ومثل المنافق كشجرة الارز: ٤/٢١٦٣، رقم الحديث : ٢٨٠٩، واخرجه النسائى فى باب الطب باب مثل المومن: ٤/٣٥١، رقم الحديث : ٧٢٧٩)_

(٥) الحديث الذى اخرجه البخارى ايضاً فى كتاب التوحيد، باب فى المشية والارادة :رقم الحديث : ٧٠٢٨، هذا الحديث من افراد البخارى)_

حضرت ابوهریره رضي الله عنه فرمائي چه حضورنبي اکرم ﷺ فرمائي چه دمومن مثال دپټي دبوټو په شان دې. چه دکوم طرف نه چه هوا رازي نو هغه طرفته هغه ځملي او کله چه هواودريږي نو بيا هغه نيغ شي اودفاجرمثال دصنوبردوني په شان دې چه هغه نيغه اودريږي نوتردې چه بيا کله الله تعالى اوغواړي نو په يوځل ئې روباسي.

**قوله**: ((مثل المومن کالخامة)): ((خامة)) خامه تازه راټوکيدونکې شنې کيدووالا ونې ته وائي. ([1])مسند احمد کښې روايت دې چه ((مثل المومن کمثل السنبلة تخرمرة وتستقيم مرة ([2])اوپه يو بل روايت کښې دې چه ((مثل المومن مثل الخامي تحمرمرى و تصفر اخرى)) ([3])يعنى دمومن مثال دونې په شان دې چه کله سره اوشادابه وى او کله زيړه اومړه شوى.

**قوله**: تفئوها مرة أوتعدلها مرة: باب ((تفيئو)) د تفعيل دباب نه دمضارع واحدمونث صيغه ده : دې ماده ده ((فاء)) په معنى د ، رجع ، سره او((افاء)) متعدى دې باب تفعيل نه. ددې معنى ټيټيدل اومائل کيدلو ده،دلته د((تفئو)) نه دې ذکر شوې. فاعل ((الريح)) دې. يعنى هوادوى لره کله راټيټه وى او کله رانيغوى.

**قوله**:مثل المنافق کالارزة: دلته په رومبى روايت کښې ((منافق)) اوپه دوئم روايت کښې ((فاجر)) اودصحيح مسلم په روايت کښې ((الکافر))دې ([4]) ((ارزة))د ((همزه فتحې سره او کسرې سره اود ، ر ، سکون سره))دصنوبرونې ته وائى،بعضوئيلى دى چه دايوه مضبوطه ونه وى چه هوائې نه شى خوزولې.

**قوله**: انجعافها: ((انجعاف)) راوخکلوته وائى ((تقول جعفته فانجعف مثل قلعته فانقلع))د دې جملې دوه مطلبونه بيان کړې شوى دى.

① يو مطلب دادې چه مومن باندې آفات اوبلاګانې راځى کله تندرست وى او کله بيمار وى.کله خوشحاله اوکله غمژن وى،کله خوشحاله اوکله تنګدسته وى،هغه په يو حالت باندې برقراره نه پاتې کيږى.څنګه چې تازه راوښکلې شينکې مختلف اطرافونه چليدونکى هواګانې دې لره خوزى.داشان مومن باندې مختلف مصيبتونه راځى. اوهميشه دې آسوده حال اوخوشحاله نه وى. اومنافق لره مزې مزې وى. هغه ښه خوشحاله اوصحت منداوآسوده وى.اچانک مرګ راشى اويکدم دده خاتمه اوشى.اوداخرت په نعمتونوکښې دهغه هيڅ حصه نه وى. ([5])

---

[1]) عمدة القاري: ۲۱/۲۰۹، فتح الباري :(۱۰/۱۳۱)_

[2]) مسند الامام احمد خنبل، : ۳/۳۴۹)_

[3]) مسند الامام احمد خنبل، : ۳/۳۴۹)_

[4]) فتح الباري: ۵/۱٤۲)_

[5]) فتح الباري،۱۰/۱۳۲)_

② دوئيم مطلب دادې چه مومن باندې چه كله مصيبتونه راځي نو الله تعالى جل جلاله رحم اوكرم نه نه مايوسه كيږي. صبركوي اود الله تعالى نه داجراوخيرااميد ساتي. اوكله چه هغه مصيبت ختم شي نوبياد هغه شكر اداكوي. اومنافق په مصيبتونو كښې دالله تعالى درحمت نه مايوسه شي اوپه دې مايوسې كښې ويلې كيږي اوختميږي.[1] د مومن اومنافق دامثال دغالب په اعتبار سره بيان شوې دي. گنى داسې هم كيدې شي چه يوسړى مومن هم وى اوالله جل جلاله دهر قسمه مصيبتونو اوبلاگانو نه بچ ساتلې وى. داشان ډيرمنافقان داسې هم كيديشى چه په مصيبتونو اوغمونو كښې اخته وى. اوحضرت حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى «وهذا فى الغالب من حال الاثنين».[2]

**قوله: وقال زكريا حدثنى سعد حدثنى ابن كعب عن ابيه كعب:** داتعليق امام مسلم رحمه الله موصولاً نقل كړې دې.[3] په دې تعليق اوحديث كښې دوه فرقونه دى.

① حديث موصول كښې سفيان عن سعد عنعنه دې حالانكه تعليق كښې «زكرياحدثنى سعد» دتحديث تصريح كړې ده.

② تعليق كښې «حدثنى ابن كعب» دې. ابن مبهم دې. حالانكه موصول كښې «عبدالله بن كعب عن ابيه» دابن نوم ذكر كړې شوى دې. داشان دتعليق نه دتحديث تصريح معلومه شوه اوحديث موصول نه دتعليق مبهم نوم معلوم شو.[4]

**قوله: انتها الريح كفاتها:** «كفات» دباب فتح نه دې. «كفا، كفا» راگرځيدل.[5]

**قوله: فاذا اعتدلت تكفا بالبلاء:** قاضى عياض رحمه الله فرمائى چه «اعتدلت» په ځائې صحيح «انقلبت» دې او «تكفا بالبلاء» دامومن وصف دې.[6] «اذا اعتدلت» شرط دې اودډې جزاء محذوف ده. تقديرى عبارت دې «اذا اعتدلت استقامت الخامة» يعنى كله هغه چه واپس شى نوداشينكې نيغ شى. مومن هم دآفت سره داشان راگرځى اوكله چه آفت لاړشى نودې دالله تعالى شكر اداكوى اونيغ شى.[7]

[٥٣٢١] حَدَّثَنَا عَبْدُاللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِاللَّهِ بْنِ عَبْدِالرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي صَعْصَعَةَ أَنَّهُ قَالَ سَمِعْتُ سَعِيدَ بْنَ يَسَارٍ أَبَا الْحُبَابِ يَقُولُ سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ يَقُولُ قَالَ

---

[1] فتح البارى: ١٠/١٣٢، عمدة القارى: ٢١/٢١٠، وارشادالسارى: ١٢/٣٧٦)_

[2] فتح البارى: ١٠/١٣٢)_

[3] فتح البارى :١٠/١٣٢، عمدة القارى: ٢١/٢١٠، وارشادالسارى. ١٢/٣٧٦)_

[4] فتح البارى : ١/١٣٢، عمدة القارى : ٢١/٢١٠، وارشاد السارى. ١٢/٣٧٦)_

[5] فتح البارى: ١٠/١٣٢، عمدة القارى: ٢١/٢١٠، وارشاد السارى: ١٢/٣٧٦)_

[6] فتح البارى:١٠/١٣٣، عمدة القارى: ١٢/٣٧٧)_

[7] فتح البارى :١٠/١٣٢)_

رَسُولُ اللّٰہِ-صلى الله عليه وسلم-«مَنْ يُرِدِاللّٰہُ بِهِ خَيْرًا يُصِبْ مِنْهُ».
دا حديث هم دلته حضرت امام بخاري رحمه الله په رومبی ځل ذکر کړې دې.(١)

**قوله**: من يرد الله به خيرًا يصب منه: الله رب العزت چه کوم سړی سره دښيګړې کولو اراده اوکړی نوده لره په مصيبت کښې اخته کوی(چه دمصيبت په وجه دده ګناهونه معاف اوده درجات اوچت کړی)، په، يصب منه، کښې دوه اقواله دی،

① يو قول د، صاد، په کسرې اود، يا، په ضمه سره دې، يعنی «يصب» دباب افعال نه دمضارع معروف واحدمذکرغائب صيغه ده، دې کښې دننه ضمير مستترفاعل دې چه د الله تعالى جل جلاله طرفته راجع دې، اود «منه» ضمير «من يردالله» کښې «من» طرفته راجع دې، يعنی الله جل جلاله دې سړی لره په مصيبت کښې اخته کوی،(٢) عامومحدثينو هم داقول اختيارکړې دې،(٣)

② ددوئيم قول مطابق «يصب» دباء په ضمه اودصادپه فتحه سره دمضارع مجهول صيغه ده، په دې صورت کښې «منه» ته هم نائب فاعل وئيلی شی، او «يصب» کښې دننه مستترله هم نائب فاعل وئيلی شی چه «من» طرفته به راجع وی، بيا د «منه» ضمير الله جل جلاله طرفته راجع وی، يعنی هغه سړې دالله جل جلاله دطرفنه په مصيبتونو کښې اخته شی، علامه طيبی رحمه الله دې لره ادب ته زيات مناسب ګنړلې دې، ځکه چه په دې کښې نسبت الله جل جلاله طرفته نه دې کړې شوې. لکه څنګه چه قران پاك کښې آيت دې، ﴿وَاِذَا مَرِضْتُ فَهُوَ يَشْفِيْنِ﴾(٤) په دې کښې دمرض نسبت خپل طرفته اودشفاء نسبت الله طرفته شوی دې(٥) خودرومبی قول تائيد دحضرت احمدبن حنبل رحمه الله ديو حديث نه هم کيږی چه په هغې کښې دی چه «اذا احب الله قوماً ابتلاهم فمن صبر فله الصبر ومن جزع فله الجزع» په دې حديث کښې په صراحتاً سره «ابتلاهم» وئيلی شوې دې(٦)

## ٢- باب شدة المرض

[٥٣٢٢] حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الأَعْمَشِ. حَدَّثَنِي بِشْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنِ الأَعْمَشِ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ عَائِشَةَ-رضى الله عنها- قَالَتْ مَا رَأَيْتُ أَحَدًا أَشَدَّ عَلَيْهِ الْوَجَعُ مِنْ رَسُولِ اللّٰهِ-صلى الله عليه وسلم-.

---

(١) الحديث اخرجه النسائی فی کتاب الطب، باب الطب، ٤/٣٥١، رقم الحديث، ٧٤٧٨)_
(٢) فتح الباری: ١٠/١٣٤، عمدة القاری: ٢١/٢١١، وارشاد الساری: ١٢/٣٧٧)_
(٣) فتح الباری: ١٠/١٣٤، عمدة القاری: ٢١/٢١١، وارشاد الساری: ١٢/٣٧٧)_
(٤) سورة الشعراء: ٨٠)_
(٥) فتح الباری: ١٠/١٣٤، عمدة القاری: ٢١/٢١١، وارشاد الساری: ١٢/٣٧٧،٣٧٨، والابواب والتراجم، ٢/٩٨)
(٦) مسند الامام احمد بن حنبل: ٥/٤٢٨،٤٢٩)_

[۵۳۲۳] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيِّ عَنِ الْحَارِثِ بْنِ سُوَيْدٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ - رضي الله عنه - أَتَيْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - فِي مَرَضِهِ وَهُوَ يُوعَكُ وَعْكًا شَدِيدًا، وَقُلْتُ إِنَّكَ لَتُوعَكُ وَعْكًا شَدِيدًا. قُلْتُ إِنَّ ذَاكَ بِأَنَّ لَكَ أَجْرَيْنِ. قَالَ «أَجَلْ مَا مِنْ مُسْلِمٍ يُصِيبُهُ أَذًى، إِلَّا حَاتَّ اللَّهُ عَنْهُ خَطَايَاهُ، كَمَا تَحَاتُّ وَرَقُ الشَّجَرِ. [۵۳۲۴، ۵۳۳۶، ۵۳۳۷، ۵۳۴۳]

دحضرت امام بخاری رحمه الله تعالى مقصددادې چه دمرض شدت دتقرب الى الله سبب وى [۱] دباب دواړه حديثونه دلته كښې امام بخاری رحمه الله په ړومبى ځل ذكر كړى دى، [۲] په ړومبى روايت كښې حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى چه ما هيڅوك دحضور مبارك نه زيات دمرض په شدت كښې نه دى كتلى، دابوذر په روايت كښې د «اشد عليه الوجع» په ځائې «الوجع اشدعليه» دې [۳] په دې صورت كښې «الوجع» مبتدا او «اشد» ددې دپاره خبر دې اوداپوره جمله د «ما رايت» دپاره مفعول ثانى ده، [۴] «ما رايت احدًا اشد وجعا من رسول الله......» عرب هر درد او وجع ته مرض وائى.

په دوئم روايت كښې دى چه دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه مروى دى چه هغوى فرمائى چه زه دحضورمبارك په خدمت كښې حاضرشوم، اوهغه وخت دحضورنبى كريم صلى الله عليه وسلم ډيره تيزه تبه وه ماحضور نبى اكرم صلى الله عليه وسلم ته عرض اوكړو چه يا رسول الله صلى الله عليه وسلم ستاسو خوډيره زياته تبه ده. حضور مبارك اوفرمائيل چه ، آو، ځما دومره تبه ده څومره چه تاسو كښې ددوو سړو وى، ماتپوس اوكړو چه يارسول الله صلى الله عليه وسلم داپه دې وجه تاسوته به دوچند اجر ملاويږى، حضورنبى اكرم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه آو، يو مسلمان ته هيڅ تكليف نه رسى. مګرالله جل جلاله ددې په ذريعه دده ګناهونه داشان رژوى لكه څنګه چه دونې نه پاڼړې رژيږى.

**قوله: وهو يوعك وعكاً شديداً:** «وعك» دعين فتح اوسكون سره، تبه، دتبې تكليف، دتبې شدت اودتبې حرارت دپاره استعماليږى، [۵] «يوعك» صيغه مجهول ده يعنى حضورنبى اكرم صلى الله عليه وسلم په شديده تبه كښې مبتلاء وو.

**قوله: حات الله عنه خطاياه:** «حات» باب مفاعله نه دې، اصل كښې «حاتت» وو، يو تاء

---

[۱] فتح البارى: ۱۰/۱۳۷، عمدة القارى: ۲۱:۲۱۱، وارشادالسارى: ۱۲/۳۷۸، والابواب والتراجم، ۲/۹۸)_

[۲] الحديث اخرجه المسلم فى البر والصلة باب ثواب المومن فيما يصيبه من مرض: ۴/۱۹۹۰، (رقم الحديث: ۲۵۷۰) واخرجه النسائى فى كتاب الطب، باب شدة المرض: ۴/۳۵۲، رقم الحديث: ۷۴۸۴، واخرجه ابن ماجه فى الجنائز باب ماجاء فى ذكر مرض رسول الله صلى الله عليه وسلم: ۱/۵۱۸، رقم الحديث، ۱۶۲۲)_

[۳] ارشادالسارى: ۱۲/۳۷۸، فتح البارى: ۱۰/۱۳۷)_

[۴] ارشاد السارى: ۱۲/۳۷۸)_

[۵] ارشادالسارى: ۱۲/۳۷۹، عمدة القارى: ۲۱/۲۱۱، ۲۱۲)_

په بله تاء كښې مدغمه شوه نو ((حات)) شو د ((حات)) معنى رژيدل اوخوريدل دى.([1]): دلته كښې داشبه كيدې شى چه حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه داتپوس كړې ووچه تاسو ته دوچنده اجر ملاويږى. حضورمبارك ورته اوفرمائيل چه آو. دوچنداجرملاويږى. اوپه دې آخرى جمله كښې معلوم شو چه داجرملاويدو په ځائې ګناهونه ختميږى.

ددې جواب دادې چه حضورنبى اكرم ﷺ ((اجل)) اووئيل آو. ددې نه به ورته دوچند ملاويږى يعنى ددې خبرې تصديق ئې اوكړو. اوددې نه پس يو نوې خبره هم ښائى چه دا دسرې دګناهونو دمعاف كيدوسبب هم ګرځى.([2]) داكثروعالمانو مسلك دې چه شدت اومصيبت سره دسرې ګناهونه معاف كيږى اواجراوثواب ورته ملاويږى. دادرفع درجات اودحط خطيئه دواړو دپاره سبب ګرځى. اوځنى حضرات وائى چه صرف دګناهونه معاف كوى. امام ابوداود رحمه الله يومرفوع روايت نقل كړې دې فرمائى چه ((انّ العبد اذا سبقت له من الله منزلة لم يبلغها بعمله ابتلاه الله فى جسده اوفى ماله اوفى ولده ثم صبره على ذالك حتى يبلغه المنزلة التى سبقت له من الله تعالى))([3]) امام طبرى رحمه الله يوروايت نقل كړې دې چه ((من اعطى فشكروابتلى فصبروظلم فغفر اولئك لهم الامن وهم مهتدون))([4]) امام مسلم دحضرت صهيب نه يوروايت نقل كوى چه حضور مبارك اوفرمائيل چه ((عجباً لامرالمومنين ان امره كله خيروليس ذالك لاحد الاّ للمومن ان اصابته سراء فشكرالله فله اجروان اصابته ضراء فصبرفله اجرفكل قضاء الله للمسلم خير))([5]) امام نسائى رحمه الله هم ددې مفهوم يوحديث دحضرت سعدبن ابى وقاص رضي الله عنه نه نقل كړې دې ((عجبت من قضاء الله المومن ان اصابته خيرحمد وشكروان اصابته مصيبة حمدوصبر فالمومن يوجرفى كل امره))([6]) امام بخارى رحمه الله په ((الادب المفرد)) كښې دحضرت ابوهريره نه يوروايت نقل كړې دې چه ((مامن مرض يصيبنى احب الى من الحمى لانها تدخل فى كل عضووان الله يعطى كل عضوقسطه من الاخر))([7]) په دې كښې دبعضو احاديثونه معلوميږى چه مرض صرف كفارهٔ ذنوب دې اودبعضونه معلوميږى چه داجرباعث هم دې. حضرت حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه:

---

[1]) ارشاد السارى :۱۲/۳۷۹، وعمدة القارى۲۱/۲۱۲)_

[2]) وعمدة القارى۲۱/۲۱۲)_

[3]) سنن ابى داودكتاب الجنائزباب الامراض المكفرة للذنوب :۳/۱۸۳. رقم الحديث : ۳۰۹۰)_

[4]) فتح البارى :۱۰/۱۳۵)_

[5]) صحيح مسلم.كتاب الزاهد والرقائق باب المومن امره كله خير:۴/۲۲۹۵.رقم الحديث : ۲۹۹۹) وجامع الاصول. ۹/۳۲۹. رقم الحديث :۷۰۱۲. وقال والحديث فى المطبوع ناقص غير تام)_

[6]) فتح البارى:۱۰/۱۳۵. اوګورئى مسندالامام احمدبن حنبل : ۱/۷۳ ۶/۱۵)_

[7]) الادب المفرد مع شرحه فضل الله الصمد: ۱/۵۹۴) رقم الحديث :۵۰۳)_

والاولى حمل الاثبات والنفى على حالين فمن كانت له ذنوب مثلا افاد المرض تمحيصها ومن لم تكن له ذنوب كتب له بمقدار ذلك ولما كان الاغلب من بنى ادم وجود الخطايا فيهم اطلق من اطلق ان المرض كفارة فقط وعلى ذلك تحمل الاحاديث المطلقة ومن اثبت الاجر به فهو محمول على تحصيل ثواب يعادل الخطيئة فاذا لم تكن خطيئة توفى لصاحب المرض الثواب، والله اعلم بالصواب»[1]

## ٣- باب اشد الناس بلاءً الانبياء ثم الامثل فالامثل

[٥٣٢٤] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ عَنْ أَبِي حَمْزَةَ عَنِ الأَعْمَشِ عَنْ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيِّ عَنِ الْحَارِثِ بْنِ سُوَيْدٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ: دَخَلْتُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَهُوَ يُوعَكُ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّكَ تُوعَكُ وَعْكًا شَدِيدًا. قَالَ «أَجَلْ إِنِّي أُوعَكُ كَمَا يُوعَكُ رَجُلاَنِ مِنْكُمْ». قُلْتُ ذَلِكَ أَنَّ لَكَ أَجْرَيْنِ. قَالَ «أَجَلْ ذَلِكَ كَذَلِكَ، مَا مِنْ مُسْلِمٍ يُصِيبُهُ أَذًى شَوْكَةٌ فَمَا فَوْقَهَا، إِلاَّ كَفَّرَ اللَّهُ بِهَا سَيِّئَاتِهِ، كَمَا تَحُطُّ الشَّجَرَةُ وَرَقَهَا». [ر: ٥٣٢٣]

د ترجمة الباب الفاظ په دارمی او سنن ابن ماجه کښې د حضرت سعد بن ابی وقاص په روايت کښې راغلی دی، هغوی فرمائی چه «قلتُ: يارسول الله اى الناس اشد بلاءً؟ قال: الانبياء ثم الامثل فالامثل يبتلى الرجل على حسب دينه»[2] د مستدرک حاکم کښې ددې مزيد وضاحت دې، حضور مبارک او فرمائيل چه «الانبياء قال ثم من: قال ثم الصالحون»[3] «الامثل» په معنى د افضل سره دې يعنى چه څومره د الله سره افضل وى، هغه هومره هغه په مصيبت کښې مبتلاء کيږى، حديث باب کښې اګرچه صرف حضور مبارک د مرض ذکر کړې دې ليکن باقى انبياء کرام وته په دې باندې قياس کړې شو، نو حضرت حافظ ابن حجر رحمه الله ليکى چه:

«ووجه دلالة حديث الباب على الترجمة من جهة قياس الانبياء على نبينا محمد ﷺ والحاق الاولياء بهم لقربهم منهم وان كانت درجتهم منحطة عنهم والسر فيه ان البلاء فى مقابلة النعمة فمن كانت نعمة الله عليه اكثر كان بلاؤه اشد»[4]

## ٤- باب وجوب عيادة المريض

[٥٣٢٥] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ أَبِي مُوسَى الأَشْعَرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «أَطْعِمُوا الْجَائِعَ، وَعُودُوا الْمَرِيضَ،

---

[1] فتح البارى: ١٠/١٣٦)_
[2] سنن ابن ماجه كتاب الفتن باب الصبر على البلاء: ٢/١٣٣٤، رقم الحديث: ٤٠٢٣، وسنن الدارمى كتاب الرقائق باب فى اشدالناس بلاءً: ٢/٤١٢ ورقم الحديث: ٢٧٨٣)_
[3] المستدرک على الصحيحين: كتاب الرقائق: ٤/٣٠٧)_
[4] فتح البارى: ١٠/١٣٨، ١٣٩، او ګورئ ارشاد السارى: ١٢/٣٨٠، عمدة القارى: ٢١/٢١٢)_

وَفُكُّوا الْعَانِيَ». [ر: ۲۸۸۱]

[۵۳۲۶] حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ أَخْبَرَنِي أَشْعَثُ بْنُ سُلَيْمٍ قَالَ سَمِعْتُ مُعَاوِيَةَ بْنَ سُوَيْدِ بْنِ مُقَرِّنٍ عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ رضي الله عنهما قَالَ أَمَرَنَا رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم بِسَبْعٍ، وَنَهَانَا عَنْ سَبْعٍ، نَهَانَا عَنْ خَاتَمِ الذَّهَبِ، وَلُبْسِ الْحَرِيرِ، وَالدِّيبَاجِ، وَالإِسْتَبْرَقِ، وَعَنِ الْقَسِّيِّ، وَالْمِيثَرَةِ، وَأَمَرَنَا أَنْ نَتْبَعَ الْجَنَائِزَ، وَنَعُودَ الْمَرِيضَ، وَنُفْشِيَ السَّلاَمَ. [ر: ۱۱۸۲]

**د مریض دعیادت حکم:** دمریض عیادت کول دجمهوروپه نیز مندوب اومستحب دی، اود داودی اوبعضي ظاهریوپه نیز باندې واجب دی،(۱) حضرت امام بخاری رحمه الله دوجوب لفظ ترجمه کښې رورلې دې اوخپل مسلك مختار طرفته ئې اشاره فرمائیلی ده، ددې حضراتو استدلا ل د «عودوالمریض» نه دې، په دې کښې دامرصیغه استعمال شوی ده اوامردوجوب دپاره راځي،اوجمهوروحضراتو داپه وجوب باندې محمول کړې ده مریض عام دې، بعض حضرات دآشوب چشم مریض ددې نه مستثنی کوی،(۲)خوداقول رد کړې شوی دې،ځکه چه دزیدبن ارقم روایت حضرت امام ابوداود رحمه الله نقل کړې دې،هغه فرمائی چه «عادني رسول الله ﷺ من وجع كان بعيني»(۳)طبرانی هم یومرفوع روایت نقل کړې دې چه «ثلاثة ليس لهم عيادة العين والدمل والضرس»(۴)لیکن داحدیث مرفوع نه بلکه دیحیی بن ابی کثیر باندې موقوف دې،(۵)

**د عیادت کولو وخت:** په حدیث کښې چونکه مطلقاً «عودوالمریض» وئیلی شوی دی،ددې وجې دعیادت دپاره د،،دامتدادالمرض،، څه قید نشته دې، (۶) امام غزالی رحمه الله په «احیاء العلوم» کښې لیکلی دی چه عیادت دمرض درې ورځونه پس کول پکاردی، (۷)هغوی سنن ابن ماجه کښې دحضرت انس بن مالك رضي الله عنه نه استدلال کړې دې،«كان النبي صلى الله عليه وسلم لا يعود مريضاً الا بعد ثلاث»(۸) لیکن حضرت حافظ ابن حجر رحمه الله داحدیث ضعیف ګڼړی

---

(۱) فتح الباری:۱۰/۱۳۹)_

(۲) فتح الباری : ۱۰/۱۳۹،وارشادالساری،۱۲/۳۸۰،عمدة القاری: ۲۱/۲۱۳)_

(۳) فتح الباری:۱/۱٤۰ وارشادالساری : ۱۲/۳۸۰، عمدة القاری: ۲۱/۲۱۳، سنن ابی داود کتاب الجنائز، باب فی العیادة من الرمد: ۳/۱۸۶، رقم الحدیث :۳۱۰۲)_

(٤) فتح الباری : ۱۰/۱٤۰، ارشادالساری: ۱۲/۳۸۰، عمدة القاری :۲۱/۲۱۳)_

(۵) فتح الباری:۱۰/۱٤۰، وارشادالساری : ۳۸۰/۱۲، عمدة القاری :۲۱/۲۱۳)_

(۶) فتح الباری :۱۰/۱٤۰، وعمدة القاری، ۲۱/۲۱۳)_

(۷) فنج الباری : ۱۰/۱٤۰، ارشادالساری، ۱۲/۳۸۰، عمدة القاری: ۲۱/۲۱۳)_

(۸) سنن ابن ماجه، کتاب الجنائز باب ماجاء فی عیادة المریض، ۱/۳۶۲، رقم الحدیث، ۱٤۳۸)_

اووائی داحدیث صرف مسلمه بن علی نقل کړې دې اوهغه متروك راوی دې، (۱) ابوحاتم نه ددې حدیث متعلق تپوس اوکړې شو نوهغوی اوفرمائیل چه «هوحدیث باطلٌ» (۲)، داشان دعیادت دپاره څه وخت مختص نه دې، په هرمناسب وخت کښې عیادت کولی شی، عام عادت دسبا اومابنام په وخت کښې دې، امام احمد رحمه الله ته دماسپخین په وخت کښې چا اووئیل چه دفلانی مریض دعیادت دپاره ځو، نوهغوی اوفرمائیل چه «لیس هذا وقتُ عیادةٍ» (۳) بعضې حضرات وائی چه دیخنې په موسم کښې دشپې اودګرمې په موسم کښې دورځې په وخت کښې عیادت کول مستحب دی، (۴) لیکن حقیقت دادې چه په دې کښې دڅه وخت تخصیص نشته دې، دمریض اودخپل سهولت کتلونه پس عیادت کولی شی،

**دعیادت اداب**: حضراتو علماء کرام دعیادت تقریباً لس آداب لیکلی دی،

① اجازت دې واخلی اودروازې ته دې باهر بالکل مخامخ نه اودرېږی بلکه ښی یا ګس طرفته دې اودرېږی،

② دروازه دې په مزه آرام سره اوټکه وی نن سبا په کورونو کښې ټلئ لږېدلی وی، بعضې خلق په ټلې باندې ګوته کېږدی ا ولرې کوئې نه، داطریقه صحیح نه ده، دټلې بټن یوځل وهل پکاردی اوبیا ګوته اخواکول پکاردی، چه کوروالو اومریض ته تکلیف اونه رسی،

③ دخپل تعارف په وخت کښې دې دابهام نه کارنه اخلئ، په صراحت سره دې ورته خپل نوم اووائی،

④ دمناسب وخت انتخاب دې اوکړی، دمریض دخوراك څکاك اودآرام په وخت کښې عیادت کول مناسب نه دی،

⑤ مریض سره دې زیات نه کینی، خوکه چاسره ئې بې تکلفی وی اومحبت وی اودمریض خواهش هم داوی نودداسې مریض سره په کیناستو کښې څه قباحت نشته دې، بلکه په داسې صورت کښې دده دلجوئی کول پکاردی،

دحضرت حسن بصری رحمه الله په خدمت کښې دمرض په زمانه کښې یوصاحب دعیادت دپاره راغلو، اوهډوپاسیدو نه، حضرت ورته په اشاروا وپه کنایو دپوهه کولو ډیر کوشش اوکړو چه اوس ماته دکوروالو ضرورت دې، یعنی اوس تاله تګ پکار دې، لیکن هغه پوهه نه شو، نو بیا حضرت ورته په وضاحت سره اووئیل چه بعضې خلق دمریض دعیادت دپاره راشی خوبیا هډودتلو نوم نه اخلی، یعنی هډوځی نه هغه بیا هم پوهه نشو، هغه اووئیل چه حضرت دننه کونډه اولږوم، حضرت حسن بصری رحمه الله اوفرمائیل چه دننه، نه بلکه دباهر نه ئې اولږؤ، غرض داچه زیات وخت پورې مریض سره کیناستل نه دی پکار چه مریض ته کوفت اورسی،

---

(۱) فتح الباری: ۱۰/۱۴۰، ارشادالساری، ۱۲/۳۸۰، عمدة القاری: ۲۱/۲۱۳)_
(۲) فتح الباری : ۱۰/۱۴۰، ارشاد الساری : ۳۸۰/۱۲، عمدة القاری : ۲۱/۲۱۳)_
(۳) فتح الباری : ۱۰/۱۴۰،)_
(۴) فتح الباری : ۱۰/۱۴۰،)_

⑥ نظر دې لاندې ساتی، لیکن دعیادت په وخت کښې ددې دعایت ساتل پکاردی.

⑦ سوال اوتپوس دې کم کوی، ډیرزیات تفصیلات معلومولوسره بعضې وختونوکښې مریض ستړې شی.

⑧ دمریض په مخکښې دې درقت اوشفقت اوهمدردې اظهار اوکړی.

⑨ اخلاص سره دې دده دپاره دعا اوکړی، حضورنبی اکرم ﷺ نه دادعا منقول ده «اسئل الله العظیم رب العرش العظیم ان یشفیك» دا دې اوه ځل اووائی.[1]

⑩ مریض ته دې تسلی ورکړی اودده حوصله دې زیاته کړی.[2] امام ترمذی رحمه الله او امام ابن ماجه دحضرت ابو سعید نه روایت نقل کوی چه «اذا دخلتم علی المریض فنفسوا له فی الاجل فان ذلك لایرد شیئا وهو یطیب نفس المریض».[3]

# باب عیادة المغمی علیه

[۵۳۲۸] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ ابْنِ الْمُنْكَدِرِ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ - رضى الله عنهما - يَقُولُ مَرِضْتُ مَرَضًا، فَأَتَانِي النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - يَعُودُنِي وَأَبُو بَكْرٍ وَهُمَا مَاشِيَانِ، فَوَجَدَانِي أُغْمِيَ عَلَيَّ، فَتَوَضَّأَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - ثُمَّ صَبَّ وَضُوءَهُ عَلَيَّ، فَأَفَقْتُ فَإِذَا النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ كَيْفَ أَصْنَعُ فِي مَالِي كَيْفَ أَقْضِي فِي مَالِي فَلَمْ يُجِبْنِي بِشَيْءٍ حَتَّى نَزَلَتْ آيَةُ الْمِيرَاثِ. [ر: ۱۹۱]

دحضرت امام بخاری رحمه الله مقصد دادې که په یو مریض باندې دبې هوشۍ راتلو عادت وی نودده هم عیادت کول پکاردی. دادې سوچ اونکړی شی چه هغه خو بې هوشه دې، دعیادت کولوڅه فائده ده، ځکه چه داشان عیادت کولوسره به دمریض کوروالو ته تسلی اوشی، دعیادت کولو والا دعا اوخلوص برکت سره به مریض ته افاقه اوشی.[4] دحدیث مناسبت باب سره واضح دې، چه حضرت نبی کریم ﷺ دحضرت جابر رضی الله عنه عیادت کړې وو او هغه بې هوشه وو. دا حدیث په «کتاب الطهارت» او «کتاب التفسیر» کښې تیر شوې دې.[5]

---

[1] السنن الکبری للنسائی، کتاب العمل الیوم واللیلة، باب موضع مجلس الانسان من المریض عند الدعاء له.۶/۱۸۷، رقم الحدیث : ۱۸۸۲. وسنن ابی داود، کتاب الجنائز، باب الدعاء المریض عند العیادة :۳/۱۸۷، رقم الحدیث، ۳۱۰۶)_

[2] مذکوره آداب دپاره فضل الله الصمد فی التوصیح الادب المفرد، باب العیادی، جوف اللیل.۱/۵۸۶. فتح الباری: ۱۰/۱۵۶، باب قول المریض : قوموا عنی.)_

[3] سنن ا بن ماجه: کتاب الجنائز،باب ماجاء فی عیادة المریض :۱/۴۶۲، رقم الحدیث :۱۴۳۸)_

[4] فتح الباری: ۱۰/۱۴۱، ارشاد الساری : ۱۲/۳۸۲، عمدة القاری:۲۱/۲۱۳)_

[5] فتح الباری :۱۰/۱۴۱،عمدة القاری، ۲۱/۲۱۴)_

# ۶- باب فضل من يصرع من الريح

۵۳۲۸/ حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ عِمْرَانَ أَبِي بَكْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي عَطَاءُ بْنُ أَبِي رَبَاحٍ قَالَ قَالَ لِي ابْنُ عَبَّاسٍ أَلاَ أُرِيكَ امْرَأَةً مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ قُلْتُ بَلَى. قَالَ هَذِهِ الْمَرْأَةُ السَّوْدَاءُ أَتَتِ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَتْ إِنِّي أُصْرَعُ، وَإِنِّي أَتَكَشَّفُ فَادْعُ اللَّهَ لِي. قَالَ «إِنْ شِئْتِ صَبَرْتِ وَلَكِ الْجَنَّةُ وَإِنْ شِئْتِ دَعَوْتُ اللَّهَ أَنْ يُعَافِيَكِ». فَقَالَتْ أَصْبِرُ. فَقَالَتْ إِنِّي أَتَكَشَّفُ فَادْعُ اللَّهَ أَنْ لاَ أَتَكَشَّفَ، فَدَعَا لَهَا.

حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ أَخْبَرَنَا مَخْلَدٌ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ أَخْبَرَنِي عَطَاءٌ أَنَّهُ رَأَى أُمَّ زُفَرَ تِلْكَ، امْرَأَةٌ طَوِيلَةٌ سَوْدَاءُ عَلَى سِتْرِ الْكَعْبَةِ.

روايت باب حضرت امام بخارى رحمه الله په رومبى ځل ذكر كړې دې،[1] عطاء بن ابى رباح رحمه الله فرمائى چه حضرت ابن عباس ماته اووئيل چه آيا زه دې تاته جنتى ښځه اونه ښايم.؟ ما اووئيل چه ولې نه ؟ هغوى اووئيل چه داتوره ښځه دحضرت نبى كريم ﷺ په خدمت كښې حاضره شوه اوعرض ئې اوكړو، چه په ما باندې دمرګى دوره راځى. اوپه دې كښې زما ستر ښكاره شى، نو ددې وجې زما دپاره دعااوكړئې. حضورمبارك اوفرمائيل كه ته غواړې نو صبر اوكړه ددې بدله كښې به تاته جنت ملاوشى. اوكه تاغواړې نوستا دپاره به دعااوكړم چه الله تالره صحت دركړى، دې اووئيل چه زه صبركوم،بيا دې اووئيل چه زماستر ښكاره كيږى، نو حضورمبارك ته ئې اوفرمائيل چه تاسو دعا اوفرمائئ چه ستر مې نه ښكاره كيږى. نوحضورنبى كريم ﷺ ددې په حق كښې دعا اوكړه، حضرت امام بخارى رحمه الله په ترجمة الباب كښې (من يصرع من الريح) الفاظ راوړى دى. يعنى هغه سړې چه په هغه باندې مرګى راځى.اخروى اعتبارسره دده داجر اوثواب اودفضل بيان دې، ((من الريح)) كښې دوه احتماله دى،

① رومبى داچه ددې نه مراد دادې چه ((من الريح))كښې ((من)) سببيه ده،يعنى دمرګى هغه مرض چه دانسان په بدن كښې دهواپه شان محبوس كيدوپه وجه پيدا كيږى.چه ددې په وجه سړى باندې دوره راځى،اوحواس ئې ختم شى اوراوغوزيږى.

② دوئم داچه دريح نه دجن يعنى دپيريانو اثرمراد دې.يعنې دجناتو داثر دوجې نه سړې حواس باخته شى،اوپه انسان باندې دبې هوشې دوره راشى.[2] حضرت حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه په انسان باندې دجناتو داحمله يا دااثر دتكليف رسولو دپاره وى يا ده ته بعضې انسانى مخونه ښه معلوميږى. ددې دوجې راځى،[3] دامعتزله يوه ډله ددې خبرې نه

---

[1] ۵۳۲۸. الحديث اخرجه المسلم فى البر والصلة باب ثواب المومن فيما يصيبه من مرض........ الخ، ۴/۹۹۴، رقم الحديث : ۲۵۸۶)_

[2] فتح البارى: ۱۰/۱۴۱، وارشادالسارى: ۱۲/۳۸۲)_

[3] فتح البارى: ۱۰/۱۴۱، وارشادالسارى: ۱۲/۳۸۲)_

انکارکوی چه جنات دانسان په بدن کښې داخليدې شی، (۱) ليکن دجمهورو په نيز جنات د انسان په بدن کښې داخليدې شی. اوسنن ابی داود کښې د أم ابان په روايت کښې د حضور مبارك قول نقل کړې شوی دې ((اخرج عدو الله فانی رسول الله)) (۲) قاضی عبد الجبار رحمه الله فرمائی چه دجنات بدن دهوا په شان وی، ددې دوجې هغوی دانسان په بدن کښې داخليدی شی، لکه څنګه چه هوا د انسان په بدن کښې داخليدی شی او انسان ساه اخلی، (۳)

**قوله**: هذه المراة السوداء: ددې ښځې نوم سعيره، شقيره او سکيره راغلی دی. (۴)

((حدثنا محمد اخبرنا مخلد عن ابن جريج اخبرنی عطاء انه رای ام زفر تلك امراة طويلة سوداء على سترالكعبة))

حضرت عطاء بن ابی رباح فرمائی چه هغوی ام زفر دکعبې پردې سره اوکتله اوهغه لوړه توره ښځه وه، ددې نه معلومه شوه چه ام زفر هغه ښځه وه چه دهغې ذکرپه پورتنی روايت کښې راغلې دې، چه دهغې دپاره حضورنبی اکرم ﷺ دعاکړې وه، ليکن دعلامه ذهبی اوعلامه ابن اثيرکلام نه معلوميږی چه ام زفر بله ښځه وه، (۵)

علامه ابن عبد البر رحمه الله په الاستيعاب کښې يوروايت نقل کړې دې چه دهغې نه معلوميږی چه په کومه ښځه باندې دمرګی دوره راتلله نو هغه ام زفروه، نو په دې کښې دې چه ((كان النبی ﷺ يوتى بالمجانين فيضرب صدر احدهم فيبرا فاتی بمجنونة يقال لها ام زفر فضرب صدرها فلم تبرء ولم تخرج شيطانها فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم هو معها فى الدنيا ولها فى الآخرة خير)) (۶)

**قوله**: على سترالكعبة: ((ای جالسة على سترالكعبة اومعتمدة عليه......)) په دې کښې ((على)) متعلق محذوف ((جالسة)) هم کيديشی اوفعل سره هم دامتعلق کيدې شی، (۷)

**دحديث نه مستنبط خوخبرې**: ددې حديث نه خوخبرې مستنبط کيږی،

① چه په کوم يو سړی باندې دمرګی دوره راځی يا پری دجناتو حمله کيږی، نو دده دپاره اخروی اجراوفضل دې،

② ددنيا په مصيبتونو باندې صبر کول دمومن دپاره جنت ثابته وی، يعنی دې به دجنت وارث وی،

---

(۱) ارشادالساری: ۱۲/۳۸۲، عمدة القاری: ۲۱/۲۱۴)_

(۲) مسندالامام احمد بن حنبل رحمة الله تعالى عليه، ۴/۱۷۲)_

(۳) عمدة القاری: ۲۱/۲۱۴، تعليقات لامع الدراری: ۹/۴۴۷)_

(۴) عمدة القاری: ۲۱/۲۱۴)_

(۵) عمدة القاری: ۲۱/۲۱۵، ارشادالساری: ۱۲/۳۸۴)_

(۶) عمدة القاری: ۲۱/۲۱۵، الاستيعاب من الاصابة: ۴/۴۵۳)_

(۷) عمدة القاری: ۲۱/۲۱۵)_

④ درخصت په مقابله كښې عزيمت باندې عمل كول زيات بهتر وى، ليكن دا دهغه سړى دپاره وى چه هغه په خپل ځان كښې دشدت اوعزيمت باندې دعمل كولو قوت وينى،
④ كه څوك مريض دې اوعلاج پريږدى، حديث نه ددې جوازهم معلوميږى،
⑤ ددعا ذريعه اودالله جَلَّ جَلَالَهُ طرفته درجوع كيدوپه ذريعه علاج زيات نافع اودسكون باعث وى، نوحضرت حافظ ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ دلانديني خبرواستنباط كوى اوليكى چه:

«وفى الحديث فضل من يصرع وان الصبر على بلايا الدنيا يورث الجنة وان الاخذ بالشدة افضل من الاخذ بالرخصة لمن علم من نفسه الطاقة ولم يضعف عن التزام الشدة وفيه دليل على جواز ترك التداوى وفيه ان العلاج الامراض كلها بالدعاء والالتجاء الى الله تعالى انجع وانفع من العلاج بالعقاقير وان تاثير وانفعال البدن عنه اعظم من تاثير الادوية البدنية ولكن انما ينجع بامرين احدهما من جهة العليل وهو صدق القصد والاخر من جهة المداوى وهو قوة توجهه وقوة قلبه بالتقوى والتوكل» [1]

## ٧=باب فضل من ذهب بصره

[٥٣٢٩] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ الْهَادِ عَنْ عَمْرٍو مَوْلَى الْمُطَّلِبِ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ - رضى الله عنه - قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ «إِنَّ اللَّهَ قَالَ إِذَا ابْتَلَيْتُ عَبْدِي بِحَبِيبَتَيْهِ فَصَبَرَ عَوَّضْتُهُ مِنْهُمَا الْجَنَّةَ». يُرِيدُ عَيْنَيْهِ.
تَابَعَهُ أَشْعَثُ بْنُ جَابِرٍ وَأَبُو ظِلاَلٍ عَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم -.

حضرت امام بخارى په دې باب كښې دهغه سړى فضيلت بيانه وى چه هغه نابينا شوى وى نو دهغه اخروى فضيلت داد ې، حديث باب دلته كښې حضرت امام بخارى په رومبى ځل بيانه وى، اوددې سند سره داحديث صرف حضرت امام بخارى رَحِمَهُ اللهُ ذكر كړې دې، اصحاب صحاح سته كښې بل چا احديث نه دې نقل كړې، [2] حضرت نبى كريم ﷺ فرمائى چه د الله جَلَّ جَلَالَهُ ارشاد دې چه كله څه خپل بنده ګانولره دده دوو محبوب څيزونويعنى سترګو په وجه په آزميښت كښې مبتلا كوم اوهغه په دې باندې صبر كوى نو څه ددې په بدله كښې به ده ته جنت وركوم،

**قوله**: يريد عينيه: داد حضرت انس بن مالك رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دطرفنه تفسير دې چه په حديث كښې «حبيبتيه» نه سترګې مراددى، «حبيبة محبوبة» معنى كښې دې، [3] اودانسان په جسمانى اعضاء كښې كوم يوڅيز دانسان دسترګو نه زيات محبوب كيديشى،
په دې روايت كښې دى چه دبينائى تلو نه پس سړې صبراوكړى، اود ترمذى په روايت كښې

---

[1] فتح البارى: ١٠/١٤٣)_
[2] الحديث بهذه الاسناد من افراده، عمدة القارى، ٢١/٢١٥)_
[3] عمدة القارى: ٢١/٢١٥)_

دى چه ((صبرواحتسب))(١) يعنى صبر اوكړى اودالله دطرفنه په دې باندې داجروثواب وعده ده، ددې استحضار اوساتى، علامه عينى رحمه الله فرمائى چه ((والظاهر انّ المراد بالصبر ان لايشتكى ولايقلق ولايظهر عدم الرضابه))(٢)

**قوله**: تَابَعَهُ أَشْعَثُ بْنُ جَابِرٍ وَأَبُو ظِلَالٍ عَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم: يعنى دعمروبن المطلب متابعت اشعث اوابوظلال دواړو كړې دې، داشعث متابع د حضرت امام احمدبن حنبل رحمه الله موصولاً نقل كړې دې، دده الفاظ دې چه ((قال ربكم من اذهبت كريمته ثم صبرواحتسب كان ثوابه الجنة))(٣)

اودابو ظلال متابعت امام ترمذى رحمه الله په دې االفاظوسره موصولاً نقل كړې دې، ((ان الله يقول : اذا اخذت كريمتى عبدى فى الدنيا لم يكن له جزاءً عندى الا الجنة))(٤) د اشعث بن جابر او د ابوظلال په صحيح بخارى كښې صرف دايو ځائې كښې متابعت ذكردې، (٥)

**اشعث بن جابررضى الله عنه**: دا دلته كښې نيكه طرفته منسوب دې، دده دپلارنوم عبدالله دې، اشعث بن عبدالله بن جابر حدائى (وحدان من الازد) دوى ړوند وو، (٦) امام نسائى رحمه الله دده په باره كښې فرمائى چه ((ثقة))(٧) يحيى بن معين فرمائى چه ((ثقة، بصير))(٨) حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائى چه ((لا باس به))(٩) البته علامه عقيلى رحمه الله ددوى په باره كښې فرمائى چه ((وفى حديثه وهم))(١٠) ليكن علامه ذهبى رحمه الله دعلامه عقيلى ترديد كړې دې، اوفرمائى چه ((وقول العقيلى وفى حديثه وهم ليس بمسلم اليه وانا اتعجب كيف لم يخرج له البخارى ومسلم))(١١) دوى په ١٢٠ او ١٣٠ هجرې په مينځ كښې وفات شوى دى، (١٢) حضرت امام بخارى رحمه الله ددوى صرف دايو روايت اخستې دې، اوامام مسلم نه علاوه باقى محدثينو د

---

(١) عمدة القارى: ٢١/٢١٥،ارشاد السارى : ١٢/٣٨٤،فتح البارى :١٠/١٤٣)_

(٢) عمدة القارى : ٢١/٢١٦)_

(٣) مسندالامام احمد بن حنبل :٣/٢٨٣)_

(٤) سنن الترمذى، كتاب الزهد، باب ماجاء فى ذهاب البصر : ٤/٦٠٢، رقم الحديث ٢٤٠٠)_

(٥) فتح البارى : ١٠/١٤٤، عمدة القارى:٢١/٢١٦)_

(٦) تهذيب الكمال :٣/٢٧٢، رقم الترجمة :٥٢٧، عمدة القارى:٢١/٢١٦)_

(٧) تهذيب الكمال :٣/٢٧٢)_

(٨) الجرح والتعديل : ١/ الترجمه :٢٧٣)_

(٩) الجرح والتعديل :١/الترحمة :٢٧٣،وتعليقات تهذيب الكمال :٣/٢٧٢)_

(١٠) تعليقات تهذيب الكمال :٣/٢٧٢، والضعفاء الكبير للعقيلى :١/٢٩)_

(١١) ميزان الاعتدال، ١/٢٦٦)_

(١٢) تاريخ الصغير للبخارى ١٥١)_

دوی نه روایتونه اخستی دی او نقل کړی ئې دی. (۱)

**ابو ظلال هلال بن ابی هلال**: دده هم په صحیح بخاری کښې صرف دا یو متابعت دې، دصحیح بخارې په نسخو کښې ابو ظلال هلال بن هلال لیکلې شوې دې، لیکن صحیح بن ابی هلال دې، (۲) دده دپلار کنیت ابو هلال دې، دو الدپه نوم کښې، سوید، میمون، یزید، او زید مختلف اقوال دی، (۳) دوی هم نابینا وو، اود ټولو محدثینو په نیز ضعیف دې، (۴) البته حضرت امام بخاری رحمه الله دوی ته، مقارب الحدیث، وئیلی دې. (۵)

## ۸- باب عیادة النساء الرجال

وَعَادَتْ أُمُّ الدَّرْدَاءِ رَجُلاً مِنْ أَهْلِ الْمَسْجِدِ مِنَ الأَنْصَارِ.

[۵۳۳۰] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ عَنْ مَالِكٍ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّهَا قَالَتْ لَمَّا قَدِمَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- الْمَدِينَةَ وُعِكَ أَبُو بَكْرٍ وَبِلاَلٌ -رضى الله عنهما- قَالَتْ فَدَخَلْتُ عَلَيْهِمَا قُلْتُ يَا أَبَتِ كَيْفَ تَجِدُكَ وَيَا بِلاَلُ كَيْفَ تَجِدُكَ قَالَتْ وَكَانَ أَبُو بَكْرٍ إِذَا أَخَذَتْهُ الْحُمَّى يَقُولُ كُلُّ امْرِءٍ مُصَبَّحٌ فِي أَهْلِهِ وَالْمَوْتُ أَدْنَى مِنْ شِرَاكِ نَعْلِهِ وَكَانَ بِلاَلٌ إِذَا أُقْلِعَتْ عَنْهُ يَقُولُ:

أَلاَ لَيْتَ شِعْرِى هَلْ أَبِيتَنَّ لَيْلَةً ... بِوَادٍ وَحَوْلِي إِذْخِرٌ وَ جَلِيلُ

وَهَلْ أَرِدَنْ يَوْمًا مِيَاهَ مِجَنَّةٍ ... وَهَلْ تَبْدُوَنْ لِى شَامَةٌ وَطَفِيلُ

قَالَتْ عَائِشَةُ فَجِئْتُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَأَخْبَرْتُهُ فَقَالَ «اللَّهُمَّ حَبِّبْ إِلَيْنَا الْمَدِينَةَ كَحُبِّنَا مَكَّةَ أَوْ أَشَدَّ، اللَّهُمَّ وَصَحِّحْهَا، وَبَارِكْ لَنَا فِي مُدِّهَا وَصَاعِهَا، وَانْقُلْ حُمَّاهَا فَاجْعَلْهَا بِالْجُحْفَةِ». [ر: ۱۷۹]

**ښځه دسړی عیادت کولی شی**: دحضرت امام بخاری رحمه الله مقصد دادې چه ښځې دا جنبي سړو عیادت کولې شی، لیکن ددې دپاره شرط دادې چه څه دفتنې او فساد اندیښنه نه وی (۶)، په حدیث باب کښې حضرت عائشه رضی الله عنها دخپل پلار حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه اودحضرت بلال رضی الله عنه دعیادت ذکر کړې دې، اګرچه بعضې روایتونو کښې دی چه دادنزول حجاب نه مخکښې واقعه ده. بیاهم فتنې نه دمامون کیدوپه صورت کښې دنزول حجاب نه روستو

---

(۱) تهذیب الکمال: ۳/۲۷۲، وسیر اعلام النبلاء: ۶/۲۷۴_

(۲) فتح الباری: ۱۰/۱۴۴_

(۳) تهذیب الکمال: ۳/۳۵۰، رقم الحدیث: ۶۶۳۲_

(۴) اوګورئی تهذیب الکمال: ۱۱/۸۴، الضعفاء والمتروکون، الترجمة: ۶۶۰، ۶۰۶، وتهذیب الکمال: ۳۰/۳۵۱، فتح الباری: ۱۰/۱۴۴، عمدة القاری: ۲۱/۲۱۶_

(۵) اوګورئی تهذیب الکمال: ۳۰/۳۵۱، عمدة القاری، ۲۱/۲۱۶، فتح الباری: ۱۰/۱۴۴_

(۶) عمدة القاری ۲۱/۲۱۶، فتح الباری: ۱۰/۱۴۵_

هم ددې واقعې نه استدلال کولې شی،([1])
دحضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه چه به کله تبې اونیولو نوبیابه ئې دا اشعار وئیل:

کل امری مصبح فی اهله والموت ادنی من شراك نعله

هرسړې په خپل کور کښې سبا کوی، اومرګ ده ته دپیزار دتسمونه هم زیات نزدې دې،
علامه قسطلانی رحمه الله د ((مصبح فی اهله)) ترجمه کړې ده چه ده ته دده اهل وعیال کښې ((انعم صباحاً)) (صبح بخير) وئیلې شی،([2]) ((شراك)) تسمې ته وئیلی شی،

**قوله**: وكان بلال اذا اقلعت عنه: ((اقلعت)) دمجهول صیغه ده،په معنی د ((ازيلت)) یعنی کله چه تبه ختمه شوه نو هغوی داشعار اووئیل چه:

الیت شعری هل ابیتن لیلة بواد وحولی اذخر وجلیل

وهل اردن یوما میاه مجنة وهل یبدون لی شامة وطفیل

**ترجمه**: کاش چه ماپه وادی مکه کښې شپه تیره کړې وې،په دې حال کښې چه څماګیرچاپیره د،،اذخر، او،، جلیل،،وابنه وی،آیاځه به هم کله دمجنه د اوبواوچشمولره ورشم، اوآیا شامه اوطفیل نومې چینې به څمامخامخ ظاهرې شی،

**قوله**: اذخر: (بکسر الهمزة وسکون الذال وکسر الخاء) دا یو خوشبودار وابنه دی،جلیل هم دوښو نوم دې،([3]) ((مجنة)) (دمیم کسره، دجیم فتحه اودنون تشدید سره) دمکې مکرمې نه یوڅومیله لرې دیوځائې نوم دې،([4])

**قوله**: شامة: (دمیم تخفیف سره)......((طفیل)) (دطاء فتحې سره) دمکې مکرمې ته نیزدې د دوؤیا دچینو نومونه دی،([5]) په دې شعرونو کښې حضرت بلال رضي الله عنه دمکې مکرمې اودهغه ځائې دمقاماتو اوچینو دکتلوخواهش کړې دې، دهجرت کولونه پس حضرات صحابه کرام رضي الله عنهم ته خپل وطن اوخپل علاقه یادیده چه کوم ځائې کښې ددوی وړوکوالې تیر شوې دې،اوچه کوم ځائې سره ددوی دکلونو یادونه وابسته وو،ددې وجې حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم دعا اوفرمائیله چه ((اللهم حبب الینا المدینة کحبنا مکة اواشد)) اې الله دمکې نه زیاته مدینه هم زمونږ دپاره محبوبه جوړه کړې،([6])

---

[1]) ارشادالساري: ۱۲/۳۸٦،فتح الباری: ۱۰/۱٤۵،۱٤٦)_
[2]) ارشادالساري: ۱۲/۳۸۵)_
[3]) ارشادالساري:۱۲/۳۸٦، عمدة القاری:۲۱/۲۱۷)_
[4]) ارشادالساري:۱۲/۳۸٦، عمدة القاری:۲۱/۲۱۷)_
[5]) ارشاد الساری:۱۲/۳۸٦، فتح الباری: ۱٤٦/۲۰)_
[6]) ارشادالساری:۱۲/۳۸٦، عمدة القاری:۲۱/۲۱۷)_

**قوله**: الجحفة: (دجیم ضمه اودحاء په سکون سره) داهل شام میقات دې، (۱) داحدیث مخکښې تیرشوې دې (۲)

**قوله**: وعادت ام الدرداء رجلاً من اهل المسجد من الانصار: علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه دحضرت ابوالدرداء رضی الله عنه دوه ببیانې وې، اوهریوته به ئې ام الدرداء وئیل، دمشرې نوم خیره وواوهغه صحابیه وه، اودکشرې نو هجمة وو، هغه تابعیه وه. (۳)
دلته کښې کشره ام الدرداء مرادده، حضرت هجمیۀ مراد ده ځکه چه دااثر حضرت امام بخاری رحمه الله په «الادب المفرد» کښې دحارث بن عبید په طریق موصولاً نقل کړې دې، (۴) حارث بن عبید کم عمرتابعی وو، هغوی دام الدرداء کبری په زمانه کښې نه وو. (۵) ځکه چه هغه دحضرت عثمان رضی الله عنه په زمانه کښې دحضرت ابوالدرداء نه مخکښې وفات شوې وه. اودام الدرداء صغری وفات دعبدالملک بن مروان په زمانه کښې ۸۱ هجرې کښې وو. دکبری وفات تقریباً پنځوس کاله پس شوی دې، (۶)
په دې اثرکښې دمسجدنه مسجد نبوی مراددې، یعنی حضرت ام الدرداء دمسجدنبوی والو یعنی دیوانصاری عیادت اوکړو، معلومه شوه چه ښځه دسړی عیادت کولې شی،

## ۹- باب عیادة الصبیان

[۵۳۳۱] حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ أَخْبَرَنِي عَاصِمٌ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا عُثْمَانَ عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ - رضي الله عنهما - أَنَّ ابْنَةً لِلنَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - أَرْسَلَتْ إِلَيْهِ وَهُوَ مَعَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - وَسَعْدٍ وَأُبَيٍّ نَحْسِبُ أَنَّ ابْنَتِي قَدْ حُضِرَتْ فَاشْهَدْنَا فَأَرْسَلَ إِلَيْهَا السَّلاَمَ وَيَقُولُ «إِنَّ لِلَّهِ مَا أَخَذَ وَمَا أَعْطَى وَكُلُّ شَيْءٍ عِنْدَهُ مُسَمًّى فَلْتَحْتَسِبْ وَلْتَصْبِرْ». فَأَرْسَلَتْ تُقْسِمُ عَلَيْهِ، فَقَامَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - وَقُمْنَا، فَرُفِعَ الصَّبِيُّ فِي حَجْرِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - وَنَفْسُهُ تَقَعْقَعُ فَفَاضَتْ عَيْنَا النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ لَهُ سَعْدٌ مَا هَذَا يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ «هَذِهِ رَحْمَةٌ وَضَعَهَا اللَّهُ فِي قُلُوبِ مَنْ شَاءَ مِنْ عِبَادِهِ، وَلاَ يَرْحَمُ اللَّهُ مِنْ عِبَادِهِ إِلاَّ الرُّحَمَاءَ». [ر: ۱۲۲۴]

---

(۱) ارشادالساری: ۱۲/۳۸۶، عمدة القاری: ۲۱/۲۱۷)_
(۲) فتح الباری: ۱۰/۱۴۶، عمدة القاری: ۲۱/۲۱۷)_
(۳) شرح البخاری للکرمانی: ۲۰/۱۸۴، فتح الباری: ۱۰/۱۴۵، عمدة القاری: ۲۱/۲۱۶)_
(۴) فتح الباری: ۱۰/۱۴۵، عمدة القاری: ۲۱/۲۱۷، الادب ا لمفرد مع شرح فضل الله الصمد، باب عیادة النساء الرجل المریض: ۱/۶۲۷، رقم الحدیث: ۵۳۰)_
(۵) فتح الباری: ۱۰/۱۴۵، عمدة القاری: ۲۱/۲۱۷)_
(۶) فتح الباری: ۱۰/۱۴۵، عمدة القاری: ۲۱/۲۱۶)_

«عيادت» مصدر دې او مضاف الى المفعول دې (١) يعنى په دې باب كښې دېچو عيادت حضرت امام بخارى رحمه الله بيان فرمائيلى دې، چه دهغوى عيادت كول هم جائزدى. او په سنت كښې ددې اصل موجود دې، په روايت كښې دى چه دحضورمبارك يوې لور دحضورمبارك په خدمت كښې خبراوليږلو چه زما لور يعنى ستاسو لمسې قريب المرگ ده، ددې وجې تاسو مونږ كره راشئ حضرت نبى اكرم ﷺ سلام اوليږلو اووې فرمائيل چه «ان الله ما اخذ وما اعطى وكل شئ عنده مسمى فلتحتسب ولتصبر» يعنى دالله خوښه ده چه څه اخلى نو هغه واخلى او چه څه وركوى نو هغه وركړى، دهرڅيز دپاره دالله تعالى په نيز يوه نيټه مقرر ده، ددې وجې دثواب اميد ساتل پكاردى، چه هغه دې صبراوكړى، هغې دالله واسطه وركړه اودوباره ئې خبروركړو، نو حضرت محمد ﷺ اودريدو اوهغوى كره ئې تشريف يو ړولو، هغه بچې ئې خپله غيږه مباركه كښې اوچته كړه، دهغه ساه ختله، دحضرت نبى اكرم ﷺ ددواړو ستركو مباركونه اوښكې روانې شوې، حضرت سعد رضي الله عنه عرض اوكړو چه يارسول الله داڅه دى؟ حضرت نبى اكرم ﷺ چه دارحمت دې، الله جل جلاله چه دكوم بنده په زړه كښې اوغواړى نو وائې چوى، اوالله په خپل مهربان بندگانو باندې مهربان او رحم كونكې دې،

دادحضرت نبى كريم دلور حضرت زينب رضي الله عنها واقعه ده، دددې روايت په شروع كښې دى چه «ان ابنتى قد حضرت» يعنى ماشومه مرگ ته نيزدې ده، اوددې نه پس دى چه «فرفع الصبى» چه ددې نه معلومه شوه چه هغه ماشومه نه ده بلكه ماشوم وو، علامه ابن بطال رحمه الله فرمائى چه په دې كښې راوى دضبط نه كارنه دې اخستې، نو هغه فرمائى چه:

«هذا الحديث لم يضبطه الراوى فمرة قال قالت ابنتى قد احتضرت ومرة قال فرفع الصبى ونفسه تقعقع فاخبر مرة عن صبى ومرة عن صبية» (٢) «حجر» دحاء په فتحې سره او كسرې سره اودجيم په سكون سره غيږې ته وائى، «نفسه» دفاء سكون سره دده جمع نفوس راځى، «تقعقع اى تضطرب ويسمع لها صوت» يعنى هغه داضطراب اوپريشانې په حالت كښې وه، او ددې وجې نه دهغې آواز په دې كيفيت راتللو، (٣)

**قوله**: فقال له سعد ما هذا؟: دحضور مبارك دستركونه په اوښكو وتلو باندې حضرت سعد رضي الله عنه له تعجب ورغلو اوهغوى اوفرمائيل چه يارسول الله داڅه دى؟ شايد چه هغه دصبر خلاف گنړل، نوحضورمبارك ورته اوفرمائيل چه داپه زړه كښې موجود شفقت اورحمت دې، دا دبې ادبې يادجزع فزع دقبيل نه نه دې، (٤)

---

(١) فتح البارى: ١٠/١٤٥، عمدة القارى: (٢١/٢١٦)_

(٢) عمدة القارى: (٢١/٢١٧)_

(٣) عمدة القارى: ٢١/٢١٨، وارشادالسارى: (١٢/٢٨٧)_

(٤) عمدة القارى: ٢١/٢١٨، وارشادالسارى: (١٢/٢٨٧)_

مذكوره حديث په كتاب الجنائز كښې د باب «قول النبي صلى الله عليه وسلم يعذب الميتُ ببكاء اهله عليه» دلاندې تير شوى دې.[1]

## ۱۰ - باب عيادة الاعراب

[۵۳۳۲] حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ أَسَدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُخْتَارٍ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رضى الله عنهما - أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - دَخَلَ عَلَى أَعْرَابِيٍّ يَعُودُهُ - قَالَ - وَكَانَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - إِذَا دَخَلَ عَلَى مَرِيضٍ يَعُودُهُ فَقَالَ لَهُ «لاَ بَأْسَ طَهُورٌ إِنْ شَاءَ اللَّهُ». قَالَ قُلْتَ طَهُورٌ، كَلاَّ بَلْ هِيَ حُمَّى تَفُورُ - أَوْ تَثُورُ - عَلَى شَيْخٍ كَبِيرٍ، تُزِيرُهُ الْقُبُورَ. فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «فَنَعَمْ إِذًا». [ر: ۳۴۲۰]

حضرت ابن عباس فرمائى چه حضورمبارك يو اعرابى (بانډيچى) لره دعيادت دپاره تشريف يوړولو، حضورمبارك چه به كله هم ديومريض دعيادت دپاره تشريف اوړولونو فرمائيل به ئې چه «لا باس بالطهور ان شاء الله» هيڅ حرج نشته دې دمرض به ګناهونو لره باكل پاك كړي، دې اعرابى ته چه كله حضورمبارك داجمله اوويئيله نوهغه ورته اوويئيل چه تاسو وائې چه داپاكولو والا دې، بالكل نه بلكه داتبه خوپه يو بوډاباندې حمله آوره شوى ده چه دې به قبرته بوځى، حضرت نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه ته وائې نو هم داسې دې وى.

**قوله: لا باس بالطهور:** يعنى هيڅ حرج نشته دې، بيمارى دمسلمانانو كفاره جوړيږى، «طهور» دمبالغه صيغه ده، اومتعدى ده، په معنى د«مطهر»پاكولووالا «طهور» دې مبتداء محذوف دې، «اى هو طهور»[2] «ان شاء الله»ئې اوويئيل اواشاره ئې اوكړه چه داجمله دعائيه ده خبر نه دې.[3]

**قوله: تفورا او تثور:** راوى ته شك دې چه، تفور، ئې اوويئيل يا، تثور، ئې اوويئيل، د دواړو معنى رالړزيدل اوحمله كول ده، «تزير» داباب افعال نه دې «ازاره»ځوك په زيارت باندې مجبورول.

**قوله: فنعم اذا:** «اى اذا ابيت فنعم اذا» يعنى كله چه زموږ دخبرې نه انكاركوى نوبياهم داسى دې وى، لكه څنګه چه ستاګمان دې، ياهمداسې به وى لكه څنګه چه ته ګمان كوې، دا جمله بددعا هم كيديشى اوداهم كيديشى چه تاسو پيشن ګوئى كوئې اوده ته ئې خبر وركړو چه همداسې به وى.[4]

---

[1]) عمدة القارى:۲۱/۲۱۸، وارشادالسارى:۱۲/۳۸۷، وفتح البارى:۱۰/۱۴۶)_

[2]) عمدة القارى:۲۱/۲۱۸، فتح البارى:۱۰/۱۴۷، وارشادالسارى:۱۲/۳۸۷)_

[3]) عمدة القارى:۲۱/۲۱۸، فتح البارى:۱۰/۱۴۷، وارشادالسارى: ۱۲/۳۸۸)_

[4]) عمدة القارى:۲۱/۲۱۸، فتح البارى:۱۰/۱۴۷، وارشادالسارى: ۱۲/۳۸۸)-

دطبرانى په روايت كښې دى چه سبا له هم هغه اعرابى وفات شوې وو.(١)

**دحديث نه مستنبط څو اداب**: علامه مهلب رحمه الله ددې حديث نه څوآداب اوفوائد مستنبط كوى اوفرمائى چه:

«فائدة هذا الحديث انه لا نقص على الامام فى عيادة المريض من رعيته ولو كان اعرابيا جافيا ولا على العالم فى عيادة الجاهل ليعلمه ويذكره بما ينفعه ويامره بالصبر لئلا يتسخط قدر الله فيسخط عليه ويسليه عن المه بل يغبطه بسقمه الى غير ذالك من جبر خاطره وخاطر اهله وفيه انه ينبغى للمريض ان يتلقى الموعظة بالقبول ويحسن جواب من يذكره بذالك» (٢)يعنى دحديث نه يوه خبره دامعلومه شوه چه حاكم خپل رعاياكښې دشډل كلى وال عيادت هم كولى شى، داشان عالم دجاهل عيادت كولې شى، چه مريض ته نصيحت اوكړى، دصبرتلقين ورته اوكړى، دحديث نه داهم مستنبط دى چه مريض ته دنصيحت خبره كول پكاردى، اونصيحت كولووالا له ښه اومناسب جواب وركول پكاردى،

## ١١-باب عيادة المشرك

[٥٣٣٣] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ أَنَسٍ -رضى الله عنه- أَنَّ غُلَامًا لِيَهُودَ كَانَ يَخْدُمُ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- فَمَرِضَ. فَأَتَاهُ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- يَعُودُهُ فَقَالَ «أَسْلِمْ». فَأَسْلَمَ.[ر: ١٢٩٠]

وَقَالَ سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِيهِ لَمَّا حُضِرَ أَبُو طَالِبٍ جَاءَهُ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم.[ر: ١٢٩٤]

**دكافر دعيادت مسئله**: علامه ابن بطال رحمه الله فرمائى كه ديو كافراومشرك باره كښې اميدوى چه هغه به اسلام قبول كړى نودده عيادت مشروع دې، ليكن كه دده داسلام قبليدواميدنه وى نوبياعيادت جائزنه دې،(٣) ليكن جمهورفرمائى چه دقبوليت اسلام نه علاوه نورمصلحتونه اومقاصدهم پيش نظرساتلودوجې نه دكافر اومشرك عيادت كيديشى،(٤) په حديث كښې دى چه يو يهودى هلك به دحضورنبى اكرم په خدمت كښې هر وخت وو، چه كله هغه بيمارشونو حضورمبارك ﷺ دهغه عيادت دپاره تشريف يوړلو، اوهغه ته ئې داسلام دعوت وركړو، اوهغه مسلمان شو ددې هلك نوم عبدالقدوس خودلې شوې دې،(٥)

---

(١) عمدة القارى: ٢١/٢١٨، فتح البارى: ١٠/١٤٦)_

(٢) عمدة القارى: ٢١/٢١٨، فتح البارى: ١٠/١٤٦)_

(٣) فتح البارى: ١٠/١٤٨، عمدة القارى: ٢١/٢١٨)_

(٤) فتح البارى: ١٠/١٤٨، عمدة القارى: ٢١/٢١٨، دحضرات حنفيه په نيزذمى كه نصرانى يا يهودى وى نو دده عيادت بالاتفاق درست دې ليكن كه مجوسى وى نوپه دې كښې دجواز اوعدم جواز دواړه قولونه دى، خود جوازقول راجح دې)_

(٥) فتح البارى: ١٠/١٤٨)

حدیث باب په کتاب الجنائز کښې د «باب اذا اسلم الصبی فمات» دلاندې تیر شوې دې، دحضرت سعیدبن المسیب تعلیق حضرت امام بخاری رحمه الله په کتاب التفسیر کښې د سورة القصص په تفسیر کښې موصولاً نقل کړې دې،[۱] اوهم هلته کښې په دې باندې کلام تیر شوی دې.

## ۱۲- باب اذا عاد مریضا فحضرت الصلاة فصلّى بهم جماعة

[۵۳۳۴] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا هِشَامٌ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبِي عَنْ عَائِشَةَ- رضی الله عنها - أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - دَخَلَ عَلَيْهِ نَاسٌ يَعُودُونَهُ فِي مَرَضِهِ فَصَلَّى بِهِمْ جَالِسًا فَجَعَلُوا يُصَلُّونَ قِيَامًا، فَأَشَارَ إِلَيْهِمْ اجْلِسُوا، فَلَمَّا فَرَغَ قَالَ «إِنَّ الإِمَامَ لَيُؤْتَمُّ بِهِ، فَإِذَا رَكَعَ فَارْكَعُوا وَإِذَا رَفَعَ فَارْفَعُوا، وَإِنْ صَلَّى جَالِسًا فَصَلُّوا جُلُوسًا». قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ قَالَ الْحُمَيْدِيُّ هَذَا الْحَدِيثُ مَنْسُوخٌ لأَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - آخِرَ مَا صَلَّى صَلَّى قَاعِدًا وَالنَّاسُ خَلْفَهُ قِيَامٌ. [ر: ۶۵۶]

که دمریض عیادت لره ورشی اودمونځ وخت شی، اومریض عیادت کونکی ته دجمې مونځ ورکوی نوحدیث. کښې ددې اصل موجوددې، حضرات صحابه کرام رضی الله عنهم دنبی کریم صلی الله علیه وسلم عیادت دپاره لاړل اونبی کریم صلی الله علیه وسلم ورله مونځ ورکړو،

حدیث باب کتاب الصلوة کښې تیرشوی دې،[۲] اوهلته کښې ددې مسئلې تفصیل راغلې دې چه دجمهورعلماؤپه نیزکه امام مخکښې اودریدواومونځ ئې شروع کړو اودمونځ په دوران کښې ده ته څه مرض لاحق شی اوهغه کینی نومقتدیان به نه کینی بلکه ولاړ به وی اوپه ولاړه به مونځ کوی، اودامام اقتداء به په ولاړه کوی، حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه په ولاړه باندې مونځ شروع کړې وو، اوحضرت نبی اکرم صلی الله علیه وسلم تشریف راوړو اوامام جوړشو. لیکن چونکه مونځ شروع شوې وو، ددې وجې حضرت نبی اکرم صلی الله علیه وسلم دامام جوړیدونه پس حضرات صحابه کرام ولاړوو اوپه ولاړه ئې اقتداء اوکړه.

## باب وضع الید علی المریض

[۵۳۳۵] حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ بْنُ إِبْرَاهِيمَ أَخْبَرَنَا الْجُعَيْدُ عَنْ عَائِشَةَ بِنْتِ سَعْدٍ أَنَّ أَبَاهَا قَالَ تَشَكَّيْتُ بِمَكَّةَ شَكْوًا شَدِيدًا، فَجَاءَنِي النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - يَعُودُنِي، فَقُلْتُ يَا نَبِيَّ اللَّهِ إِنِّي أَتْرُكُ مَالاً وَإِنِّي لَمْ أَتْرُكْ إِلاَّ ابْنَةً وَاحِدَةً، فَأُوصِي بِثُلُثَيْ مَالِي وَأَتْرُكُ الثُّلُثَ فَقَالَ «لاَ». قُلْتُ فَأُوصِي بِالنِّصْفِ وَأَتْرُكُ النِّصْفَ قَالَ «لاَ». قُلْتُ فَأُوصِي بِالثُّلُثِ وَأَتْرُكُ لَهَا الثُّلُثَيْنِ قَالَ «الثُّلُثُ وَالثُّلُثُ كَثِيرٌ». ثُمَّ وَضَعَ يَدَهُ عَلَى جَبْهَتِهِ، ثُمَّ مَسَحَ يَدَهُ عَلَى وَجْهِي وَبَطْنِي ثُمَّ

---

[۱] فتح الباری:۱۰/۱۴۸، عمدة القاری:۲۱/۲۱۸، ارشادالساری: ۱۲/۳۸۸)_

[۲] فتح الباری:۱۰/۱۴۸، عمدة القاری:۲۱/۲۱۹)_

قَالَ «اللّٰهُمَّ اشْفِ سَعْدًا وَأَتْمِمْ لَهُ هِجْرَتَهُ». فَمَا زِلْتُ أَجِدُ بَرْدَهُ عَلَى كَبِدِي فِيمَا يُخَالُ إِلَيَّ حَتَّى السَّاعَةِ. ار ۵۶]

[۵۳۳۶] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنِ الأَعْمَشِ عَنْ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيِّ عَنِ الْحَارِثِ بْنِ سُوَيْدٍ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْعُودٍ دَخَلْتُ عَلَى رَسُولِ اللّٰهِ صلى الله عليه وسلم وَهُوَ يُوعَكُ فَمَسِسْتُهُ بِيَدِي فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّكَ تُوعَكُ وَعْكًا شَدِيدًا. فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صلى الله عليه وسلم - « أَجَلْ إِنِّي أُوعَكُ كَمَا يُوعَكُ رَجُلَانِ مِنْكُمْ». فَقُلْتُ ذٰلِكَ أَنَّ لَكَ أَجْرَيْنِ. فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صلى الله عليه وسلم- «أَجَلْ». ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صلى الله عليه وسلم- «مَا مِنْ مُسْلِمٍ يُصِيبُهُ أَذًى مَرَضٌ فَمَا سِوَاهُ إِلَّا حَطَّ اللّٰهُ لَهُ سَيِّئَاتِهِ كَمَا تَحُطُّ الشَّجَرَةُ وَرَقَهَا». [ر: ۵۳۲۳]

**په مریض باندې لاس اښودلو طریقه**: دعیادت کولو په وخت کښې په مریض باندې لاس اوخودلې شي، دې سره دمریض تسلی هم کیږی اودعیادت کونکی په برکت سره دده په مرض کښې افاقه هم کیدیشی، اوکه عیادت کولووالا دطب نه واقف وی نو دمرض تشخیص هم کولې شی، (۱) په باب کښې ذکرشوی دواړه حدیثونو کښې ددې ذکر دې، ړومبی حدیث کښې دی چه «ثم وضع یده علی جبهته ثم مسح یده علی وجهی وبطنی» اودوئم روایت کښې دی چه «فمسسته بیدی....»

دحضرت عائشه رضی الله عنها نه یوحدیث دابویعلی په سندحسن سره نقل کړې شوې دې، په هغې کښې دی چه «کان رسول الله ﷺ اذاعاد مریضاً یضع یده علی المکان الذی یالم ثم یقول بسم الله»(۲)

داشان ترمذی رحمه الله دحضرت ابوامامه رضی الله عنه نه مرفوعاً حدیث نقل کړې دې چه «تمام عیادة المریض ان یضع احدکم یده علی جبهته فیسأله کیف هو»(۳) دابن سنی په روایت کښې دی چه حضرت ابوامامه رضی الله عنه نه مرفوع روایت نقل دې «تمام عیادة المریض ان یضع احدکم یده علی جبهته فیقول کیف اصبحت اوکیف امسیت»(۴)

**قوله**: فما زلتُ احد برده علی کبدی فیما یخال الی حتی الساعة: حضرت سعد فرمائی چه دحضورنبی اکرم دلاس یخوالې څه په څیګرکښې محسوسوم، (دا دحضورمبارک معجزه وه)

---

(۱) عمدة القاری: (۲۱/۲۱۹)_

(۲) فتح الباری: ۱۰/۱۴۹، وقال الامام احمد بن حنبل رحمه الله علیه فی مسنده، عن عائشة رضی الله عنها انّ النبی صلی الله علیه وسلم کان اذا عاذ مریضاً مسحه بیده وقال اذهب الباس رب الناس واشف انت الشافی لاشفاء الاّ شفاءک شفاءً لا یغادرسقماً....مسند الامام احمد بن حنبل رحمه الله علیه۶/۱۲۶،۴۵)_

(۳) سنن الترمذی، کتاب االاستیذان، باب ماجاء فی المصافحة :۵۸۶: رقم الحدیث :۲۸۳۱)._

(۴) فتح الباری: ۱۰/۱۵۰)._

# ۱۴- باب ما يقال للمريض وما يجيب

[۵۳۳۷] حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الأَعْمَشِ عَنْ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيِّ عَنِ الْحَارِثِ بْنِ سُوَيْدٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ - رضى الله عنه - قَالَ أَتَيْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - فِي مَرَضِهِ فَمَسِسْتُهُ وَهُوَ يُوعَكُ وَعْكًا شَدِيدًا فَقُلْتُ إِنَّكَ لَتُوعَكُ وَعْكًا شَدِيدًا، وَذَلِكَ أَنَّ لَكَ أَجْرَيْنِ. قَالَ «أَجَلْ، وَمَا مِنْ مُسْلِمٍ يُصِيبُهُ أَذًى إِلاَّ حَاتَّتْ عَنْهُ خَطَايَاهُ كَمَا تَحَاتُّ وَرَقُ الشَّجَرِ». [ر: ۵۳۲۳]

[۵۳۳۸] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ خَالِدٍ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رضى الله عنهما - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - دَخَلَ عَلَى رَجُلٍ يَعُودُهُ فَقَالَ «لاَ بَأْسَ طَهُورٌ إِنْ شَاءَ اللَّهُ». فَقَالَ كَلاَّ بَلْ حُمَّى تَفُورُ عَلَى شَيْخٍ كَبِيرٍ كَيْمَا تُزِيرَهُ الْقُبُورَ. قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «فَنَعَمْ إِذًا». [ر: ۳۴۲۰]

**د ترجمة الباب مقصد:** حضرت گنگوهی رحمه الله فرمائی چه دحضرت امام بخاری رحمه الله مقصد دادې چه عيادت کولو والا چه کله مريض ته ورشی نو دخير خبرې دې کوی. اومريض ته پکاردی چه دالله جل جلاله نه دخيراميدساتی اوهيڅ دشراودمايوسئ خبرې دې نه کوی. داشان دحديث نه معلوميږی که څه تکليف هم وی نودهغې اظهارکولې شی. په دې شرط چه هغه دجزع اوفزع اودګيلو اوشکوؤپه صورت کښې نه وی. نو حضرت فرمائی:

«يعنى بذالك انه ينبغى للعائد ان يقول خيرًا وللمريض ان يحسن الظن بربه فلا يتكلم بشر، وايضاً ففى الحديث دلالة انه لا باس لو تكلم بشيئ مما يجد اذا لم يكن على سبيل الشكوى» (۱)

شيخ الحديث حضرت مولانازکريا رحمه الله فرمائی چه حضرت امام بخاری رحمه الله دخپل عادت مطابق دامام ترمذی رحمه الله اودابن ماجه رحمه الله مرفوع روايت طرفته اشاره کړې ده چه په هغې کښې داسې دی:

«اذا دخلتم على المريض فنفسوا له فى الاجل فان ذالك لايرد شيئاً وهويطيب نفس المريض» اودباب په دواړواحاديثو کښې «تنفيس» موندې شی. دتنفيس نه مرادتسلی ده. نودويم حديث کښې «لا باس طهور» دې اوړومبی حديث کښې حضرت ابن مسعود رضی الله عنه فرمائی چه «انك لتوعك وعكاً شديدًا» يعنی تاسو ته خوعادتاً شديده تبه وی. داڅه قابل تشويش خبره نه ده. نوليکی چه «والاوجه عندى ان الامام البخارى اشار بالترجمة على عادته المستمرة الى حديث الترمذى المذكور والتنفيس فى الحديث الثانى ظاهر فى قوله صلى الله عليه وسلم لا باس واما الاول ففى حديث ابن مسعود انك لتوعك وعكاً شديدًا يعنى هذه عادة مستمرة لك ليس بامر جديد يخاف منه» (۲)

---

(۱) لامع الدراری: ۹/۴۴۸، ۴۴۹)_

(۲) الابواب والتراجم ص: ۲/۹۹، تعليقات لامع الدراری: ۹/۴۴۹)_

امام ابن ماجه رحمه الله دحضرت عمر فاروق رضي الله عنه نه يو مرفوع روايت نقل کړې، په هغې کښې دى چه «اذا دخلت على مريض فمره يدعولك فان دعاءه كدعاء الملائكة»(١) يعنى دمريض عيادت کولو والا دې دخپل ځان دپاره ددعا درخواست اوکړى، ځکه چه دمريض ددعا دفرښتو اودملائکو ددعا په شان مقبوله وى، ليکن داحديث منقطع دې.(٢)

## ١٥-باب عيادة المريض راكبا وماشيا وردفا

[٥٣٣٩] حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ أَنَّ أُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ أَخْبَرَهُ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- رَكِبَ عَلَى حِمَارٍ عَلَى إِكَافٍ عَلَى قَطِيفَةٍ فَدَكِيَّةٍ، وَأَرْدَفَ أُسَامَةَ وَرَاءَهُ يَعُودُ سَعْدَ بْنَ عُبَادَةَ قَبْلَ وَقْعَةِ بَدْرٍ فَسَارَ حَتَّى مَرَّ بِمَجْلِسٍ فِيهِ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أُبَىٍّ ابْنُ سَلُولَ وَذَلِكَ قَبْلَ أَنْ يُسْلِمَ عَبْدُ اللَّهِ، وَفِي الْمَجْلِسِ أَخْلاَطٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ وَالْمُشْرِكِينَ عَبَدَةِ الأَوْثَانِ وَالْيَهُودِ، وَفِي الْمَجْلِسِ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ رَوَاحَةَ، فَلَمَّا غَشِيَتِ الْمَجْلِسَ عَجَاجَةُ الدَّابَّةِ خَمَّرَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أُبَىٍّ أَنْفَهُ بِرِدَائِهِ، قَالَ لاَ تُغَبِّرُوا عَلَيْنَا فَسَلَّمَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- وَوَقَفَ وَنَزَلَ فَدَعَاهُمْ إِلَى اللَّهِ فَقَرَأَ عَلَيْهِمُ الْقُرْآنَ، فَقَالَ لَهُ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أُبَىٍّ يَا أَيُّهَا الْمَرْءُ إِنَّهُ لاَ أَحْسَنَ مِمَّا تَقُولُ إِنْ كَانَ حَقًّا، فَلاَ تُؤْذِنَا بِهِ فِي مَجْلِسِنَا، وَارْجِعْ إِلَى رَحْلِكَ فَمَنْ جَاءَكَ فَاقْصُصْ عَلَيْهِ. قَالَ ابْنُ رَوَاحَةَ بَلَى يَا رَسُولَ اللَّهِ فَاغْشَنَا بِهِ فِي مَجَالِسِنَا فَإِنَّا نُحِبُّ ذَلِكَ فَاسْتَبَّ الْمُسْلِمُونَ وَالْمُشْرِكُونَ وَالْيَهُودُ حَتَّى كَادُوا يَتَثَاوَرُونَ فَلَمْ يَزَلِ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- حَتَّى سَكَتُوا فَرَكِبَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- دَابَّتَهُ حَتَّى دَخَلَ عَلَى سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ فَقَالَ لَهُ «أَىْ سَعْدُ أَلَمْ تَسْمَعْ مَا قَالَ أَبُو حُبَابٍ». يُرِيدُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ أُبَىٍّ. قَالَ سَعْدٌ يَا رَسُولَ اللَّهِ اعْفُ عَنْهُ وَاصْفَحْ فَلَقَدْ أَعْطَاكَ اللَّهُ مَا أَعْطَاكَ وَلَقَدِ اجْتَمَعَ أَهْلُ هَذِهِ الْبَحْرَةِ أَنْ يُتَوِّجُوهُ فَيُعَصِّبُوهُ فَلَمَّا رَدَّ ذَلِكَ بِالْحَقِّ الَّذِى أَعْطَاكَ شَرِقَ بِذَلِكَ، فَذَلِكَ الَّذِى فَعَلَ بِهِ مَا رَأَيْتَ. [ر: ٢٨٢٥]

[٥٣٤٠] حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَبَّاسٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مُحَمَّدٍ -هُوَ ابْنُ الْمُنْكَدِرِ- عَنْ جَابِرٍ -رضى الله عنه- قَالَ جَاءَنِى النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- يَعُودُنِى لَيْسَ بِرَاكِبِ بَغْلٍ وَلاَ بِرْذَوْنٍ. [ر: ١٩١]

دحضرت امام بخارى رحمه الله مقصد دادې چه دمريض عيادت په سورلئ اوپيدل اودچاپسې شاته سوريدوپه حالت کښې تلې اوکولې شى، «ردف» (بکسر الراء وسکون الدال) دې «مرتدفا لغيره» يعنى چاپسې شاته سوريدل، په حديث کښې دى چه حضرت نبى کريم ﷺ

---

(١) سنن ابن ماجه كتاب الجنائز، باب ماجاء فى عيادة المريض: ١/٤٦٣، رقم الحديث: (١٤٤١)_

(٢) فتح البارى: ١٠/١٥٠)_

،حضرت سعدبن عبادة رضی الله عنه عیادت اوکړو. حضرت نبی کریم ﷺ په سورلۍ باندې سور شو. حضرت اسامه مخکښې وو. اوحضور مبارک ﷺ هغوی پسې روستو ناست وو. حدیث باب مخکښې تیر شوې دې.[1] دلته ئې څو الفاظ اوګورئ.

**قوله: على حمار على اكاف على قطيفة فدكية:** «اكاف» دهمزه کسره اودکاف تخفیف سره، کته یا سازته وائی چه دخناورپه شا باندې اخودلې شی.[2]

«قطيفة» هغه کپړا چه په کته باندې اخودلې شی «فدكية» فدك طرف ته منسوب ده فدك مشهورځائې دې.[3] حضرت حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه «والحاصل ان الاكاف يلى الحمار والقطيفة فوق الاكاف والراكب فوق القطيفة».[4]

په ترکیب کښې «على إكافٍ»، «على حمارٍ» سره بدل کړې شوې دې. او «على قطيفة» «على اكاف» سره بدل شوید ې.[5]

علامه مزی رحمه الله په «الاطراف» کښې دامستقل بیل حدیث شمیرلې دې. لیکن امام حمیدی رحمه الله دا دطویل حدیث حصه ګرځولې ده، چه په هغې کښې حضرت جابر رضی الله عنه دخپلې بیمارئ اودحضرت نبی اکرم ﷺ دعیادت ګولو تذکره کړې ده.

حضرت حافظ ابن حجر رحمه الله دحمیدی تصویب کړې دې.[6]

حضرت جابر رضی الله عنه فرمائی چه حضرت نبی اکرم ﷺ زمادعیادت دپاره تشریف روړلې وو. په داسې حال کښې چه نه په خچره باندې سوروواونه په اس باندې سوروو. یعنی پیدل ئې تشریف روړلې وو. په ترجمة الباب کښې هم د«ماشیاً» قیدهم ددې حدیث نه ثابت کړې شوې دې.[7] «برذون» (دباء کسرې سره) دآسونو دیو قسم نوم دې.[8]

## ۱۶- باب قول النبی انی وجعٌ اووارأساهُ اواشتدبی الوجعُ

وَقَوْلِ أَيُّوبَ عَلَيْهِ السَّلاَمُ (أَنِّي مَسَّنِيَ الضُّرُّ وَأَنْتَ أَرْحَمُ الرَّاحِمِينَ).

[۵۳۴۱] حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ وَأَيُّوبَ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى عَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ -رضى الله عنه. مَرَّبِي النَّبِيُّ -صلى الله عليه

---

[1] اوګورئ کشف الباری : کتاب التفسیر، سورة ال عمران. ۱۲۸(۱۱۶،۱۲۵،۱۲۸)_

[2] ارشاد الساری: ۱۲/۳۹۳، فتح الباری:۱۰/۱۵۱)_

[3] ارشارالساری: ۱۲/۳۹۳، عمدة القاری: ۲۱/۲۲۱)_

[4] رشادالساری :۱۲/۳۹۳، فتح الباری:۱۰/۱۵۱)_

[5] رشادالساری :۱۲/۳۹۳، فتح الباری:۱۰/۱۵۱)_

[6] فتح الباری:۱۰/۱۵۱)_

[7] ارشادالساری: ۱۲/۳۹۴، عمدة القاری:۲۱/۲۲۲)_

[8] ارشادالساری: ۱۲/۳۹۴، عمدة القاری:۲۱/۲۲۲، شرح الکرمانی :۲۰/۱۹۳)_

وسلم - وَأَنَا أُوقِدُ تَحْتَ الْقِدْرِ فَقَالَ «أَيُؤْذِيكَ هَوَامُّ رَأْسِكَ». قُلْتُ نَعَمْ. فَدَعَا الْحَلاَّقَ فَحَلَقَهُ ثُمَّ أَمَرَنِي بِالْفِدَاءِ. [ر: ١٧١٩]

[٥٣٤٢] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ يَحْيَى أَبُو زَكَرِيَّاءَ أَخْبَرَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ بِلاَلٍ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ قَالَ سَمِعْتُ الْقَاسِمَ بْنَ مُحَمَّدٍ قَالَ قَالَتْ عَائِشَةُ وَارَأْسَاهْ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «ذَاكِ لَوْ كَانَ وَأَنَا حَيٌّ، فَأَسْتَغْفِرُ لَكِ وَأَدْعُو لَكِ». فَقَالَتْ عَائِشَةُ وَاثُكْلِيَاهْ، وَاللَّهِ إِنِّي لأَظُنُّكَ تُحِبُّ مَوْتِي، وَلَوْ كَانَ ذَاكَ لَظَلِلْتَ آخِرَ يَوْمِكَ مُعَرِّسًا بِبَعْضِ أَزْوَاجِكَ. فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «بَلْ أَنَا وَارَأْسَاهْ لَقَدْ هَمَمْتُ أَوْ أَرَدْتُ أَنْ أُرْسِلَ إِلَى أَبِي بَكْرٍ وَابْنِهِ، وَأَعْهَدَ أَنْ يَقُولَ الْقَائِلُونَ أَوْ يَتَمَنَّى الْمُتَمَنُّونَ، ثُمَّ قُلْتُ يَأْبَى اللَّهُ وَيَدْفَعُ الْمُؤْمِنُونَ، أَوْ يَدْفَعُ اللَّهُ وَيَأْبَى الْمُؤْمِنُونَ». [ر: ٦٧٩١]

[٥٣٤٣] حَدَّثَنَا مُوسَى حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُسْلِمٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ عَنْ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيِّ عَنِ الْحَارِثِ بْنِ سُوَيْدٍ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ - رضى الله عنه - قَالَ دَخَلْتُ عَلَى النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - وَهْوَ يُوعَكُ فَمَسِسْتُهُ فَقُلْتُ إِنَّكَ لَتُوعَكُ وَعْكًا شَدِيدًا. قَالَ «أَجَلْ كَمَا يُوعَكُ رَجُلاَنِ مِنْكُمْ». قَالَ لَكَ أَجْرَانِ قَالَ «نَعَمْ مَا مِنْ مُسْلِمٍ يُصِيبُهُ أَذًى مَرَضٌ فَمَا سِوَاهُ إِلاَّ حَطَّ اللَّهُ سَيِّئَاتِهِ كَمَا تَحُطُّ الشَّجَرَةُ وَرَقَهَا». [ر: ٥٣٢٣]

[٥٣٤٤] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي سَلَمَةَ أَخْبَرَنَا الزُّهْرِيُّ عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ جَاءَنَا رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَعُودُنِي مِنْ وَجَعٍ اشْتَدَّ بِي زَمَنَ حَجَّةِ الْوَدَاعِ فَقُلْتُ بَلَغَ بِي مَا تَرَى وَأَنَا ذُو مَالٍ وَلاَ يَرِثُنِي إِلاَّ ابْنَةٌ لِي أَفَأَتَصَدَّقُ بِثُلُثَيْ مَالِي قَالَ «لاَ». قُلْتُ بِالشَّطْرِ قَالَ «لاَ». قُلْتُ الثُّلُثُ قَالَ «الثُّلُثُ كَثِيرٌ، أَنْ تَدَعَ وَرَثَتَكَ أَغْنِيَاءَ خَيْرٌ مِنْ أَنْ تَذَرَهُمْ عَالَةً يَتَكَفَّفُونَ النَّاسَ وَلَنْ تُنْفِقَ نَفَقَةً تَبْتَغِي بِهَا وَجْهَ اللَّهِ إِلاَّ أُجِرْتَ عَلَيْهَا حَتَّى مَا تَجْعَلُ فِي فِي امْرَأَتِكَ». [ر: ٥٦]

**مريض د تکليف اظهارکولې شي:** دحضرت امام بخاری رحمه الله مقصد دادې که مريض دخپل تکليف اوشدت دردپه وجه باندې فرياد اوکړي اود خپل غم اظهارکوی نودا د صبر منافی نه دی اوپه حديث کښې ددې اصل موجوددې.[1]

دلته په ترجمة الباب کښې درې لفظونه ذکرشوی دی، يو «انی وجع» روايات باب کښې ددې اصل موجوددې. البته صالح بن کيسان دحضرت عبدالرحمان بن عوف رضی الله عنه نه روايت نقل کوی، هغه فرمائی چه:

«دخلت علی أبی بکر رضی الله عنه فی مرضه الذی توفی فيه فسلمت عليه وسألته کيف اصبحت؟ فاستوی جالساً فقلت

[1] عمدة القاری: ٢١/٢٢٢، ارشادالساری: ١٢/٣٩٤)_

صبحت بحمدالله بارئاً، قال اما انى على ماترى وجع (١) په دې روايت كښې د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه د بيمارئى ذكر دې. هغه فرمائى چه «انى وجع» څه په تكليف كښې يم. ترجمة الباب كښې ذكرشوې دوم لفظ «واراساه» د باب په دوئم حديث كښې اودريم لفظ «اشتد بى الوجع» د باب آخرى روايت كښې دى.

حضرت امام بخارى رحمه الله د قرآن پاك آيت مبارك كښې د حضرت ايوب عليه السلام د قول «انى مسنى الضر وانت ارحم الراحمين» نه هم دا استدلال كړې دې چه حضرت ايوب عليه السلام د الله جل جلاله نه دعا كوى او د خپلې بيمارئى شكوه كوى.

د باب ړومبى حديث د حضرت كعب بن عجره نه دې. هغه فرمائى چه حضرت رسول الله ما سره تيرشو او ما د كټوئې لاندې اوور بل كړې وو. حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه آيا تاته سپګې تكليف دركوى. ما اووئيل چه آو. حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم نائى روغوښتلو او هغه زما سر اوخرئيلو. بيا حضور مبارك صلى الله عليه وسلم ماته د فدې وركولو حكم اوكړو.

په دې روايت كښې دى چه حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم هغه ته اووئيل چه «ايوذيك هوام راسك» او هغوى جواب كښې «نعم» اووئيل چه آو. ماته سپګې تكليف راكوى لهذا د هغه شكوى جزع فزع نه وه. بلكه دې ته بيان واقعه وائى. (٢) دا روايت د دې نه مخكښې په كتاب الحج كښې هم تير شوې دې. (٣)

**قوله**: حدثنا يحيى بن يحيى: دا حديث حضرت امام بخارى رحمه الله دلته په ړومبى ځل ذكر كړې دې. (٤) حضرت عائشه رضي الله عنها د زيات د سردرد دوجې اووئيل چه «واراساه» نو حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه كه ته په دې سر درد كښې مبتلا وې او وفات شې او څه به ژوندې يم نو زه به تا لره بخښنه غوارم. اودعا به كوم. حضرت عائشه رضي الله عنها خبرنشته. په دې آوريدو سره ګوياشوه چه افسوس والله. زما خيال دې چه ته زما مرګ غوارې. كه داسې اوشو او زه مړه شومه نو د دې په دوئيمه ورځ به ته خپلې بلې بى بى سره خلمې شوې تې. حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه نه بلكه زه په خپله د سر درد كښې مبتلا يم ما اراده اوكړه چه ابوبكر رضي الله عنه او د هغه ځوئې لره راوبلم او هغوى ته وصيت اوكړم چه څوك ويونكې څه اونه وائى او نه څوك خواهش كوونكې د دې خواهش اونكړى. بيا ماسوچ اوكړو چه الله جل جلاله به د بل چا خلافت قبول نكړى. او مومنان هم (حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه نه علاوه بل څوك) به اخوا كړى. (او قبول به ئې نه كړى).

---

(١) فتح البارى: ١٥٣.١٥٢/١٠)_

(٢) عمدة القارى: ٢٢٣/٢١. ارشادالسارى: ٣٩٥/١٢)_

(٣) فتح البارى: ١٥٣/١٠. عمدة القارى: ٢٢٣/٢١)_

(٤) ٥٣٤٢: الحديث اخرجه البخارى ايضاً فى الاحكام باب الاستخلاف: رقم الحديث: ٦٦٧٩١. واخرجه مسلم فى فضائل الصخابة باب من فضائل ابى بكر الصديق: ١٨٥٧/٤. رقم الحديث: ٢٣٨٧)_

**قوله**: وَا رَأسَاهُ: دحضرت امام احمدبن حنبل اودابن ماجه په روایت کښې تفصیل دې حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی چه ((رجع رسول الله من جنازة من البقیع فوجدنی وانا اجد صداعاً فی راسی وانا اقول وارا ساه))(١) ((صداع)) دسر درد ته وائی.

**قوله**: ذاك لوكان وانا حیٌ: ((ذاك)) مشارٌ الیه مرګ دې چه عامه توګه باندې دمرض نه پس راځی.یعنی که ته مړه شی اوزه ژوندی پاتې شمه.په یوبل روایت کښې ددې وضاحت په دې الفاظوسره راغلې دې چه ((ماضرك لومت قبلی فكفنتُ ثُم صلیتُ علیك ودفنك))(٢)

**قوله**: واثكلیاه: ((ثكل)) په اصل کښې ((فقد الولد)) ته وائی. آخر کښې الف اوهاء ندبه ده. حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی چه ته ځمامرګ غواړې، یوبل روایت کښې دی چه ((والله لوقد فعلت ذالك لقد رجعت الی بیتی فاعرست ببعض نسائك قالت فتبسم رسول الله صلی الله علیه وسلم))(٣) حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه ((بل انا وارا ساه)) دې نه پس حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم په مرض الوفات کښې مبتلا شو (٤)

**قوله**: لقد هممتُ اواردت ان ارسل الی ابی بكر رضي الله عنه: راوی ته شك دې چه ((هممت)) ئې اووئیل اوکه ((اردت)) ئې اووئیل. ددې نه معلومه شوه چه حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم په آخری وخت کښې دکتابت چه کومه اراده فرمائیلې وه، هغه دحضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه دخلافت متعلق وه. مګرچونکه سرکاردوعالم صلی الله علیه وسلم ته منظورشوی ووچه الله ته دبل چا امامت اوخلافت منظورنه دې اومومنان هم دبل چه په خلافت باندې راضی نه دی،ددې دوجې حضورمبارك په کتابت باندې اصراراونه کړو،

**قوله**: فاعهد ان یقول القائلو: ((عهد یعهد)) په معنی دوصیت کولو کښې هم راځی دلته هم په دې معنی کښې دې.((ان یقول القائلون ای لئلا یقول القائلون او كراهة ان یقول))(٥)

((متمنون))دا دمتمنی جمع ده.اصل کښې ((متمنیون)) وو.بیادتعلیل نه پس ((متمنون)) شو.(٦)

**دحدیث نه مستنبط خوخبرې**: حضرت حافظ ابن حجر رحمه الله ددې حدیث نه یوخوخبرې

---

(١) سنن ابن ماجه کتاب الجنائز،باب ماجاء فی غسل الرجل امراته وغسل المراة زوجها :١/٤٧٠، رقم الحدیث :١٤٦٥،ومسند الامام احمدبن حنبل :٦/٢٢٨)_

(٢) فتح الباری: ١٠/١٥٤،عمدة القاری: ٢١/٢٢٣)_

(٣) فتح الباری: ١٠/١٥٤)_

(٤) فتح الباری: ١٠/١٥٤)_

(٥) عمدة القاری: ٢١/٢٢٣، وارشاد الساری: ١٢/٣٩٦)_

(٦) عمدة القاری: ٢١/٢٢٣، وارشاد الساری: ١٢/٣٩٦)_

مستنبط کوی اولیکی چه :

«وفی الحدیث ماطبعت علیه المراة من الغیرة وفیه مداعبة الرجل اهله والافضاء الیهم بما یستره عن غیرهم وفیه ان ذکر الوجع لیس بشکایة فکم من ساکت وهو ساخط وکم من شاك وهو راضٍ فالمعول فی ذالك علی عمل القلب لا عمل اللسان والله اعلم بالصواب»[1] یعنی دښځې طبیعت اوفطرت کښې دخپل خاوند متعلق چه کوم غیرت اوحساسیت وی، ددې حدیث نه هغه ظاهریږی. کوروالو سره مزاح هم ددې نه معلومیږی. اوداخبره هم چه د درد اوتکلیف اظهار جزع اوفزع کښې داخل نه دی.

## ۱۷- باب قول المریض قوموا عنی

[۵۳۴۵] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ مَعْمَرٍ وَحَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضی الله عنهما قَالَ لَمَّا حُضِرَ رَسُولُ اللَّهِ صلی الله علیه وسلم وَفِي الْبَيْتِ رِجَالٌ فِيهِمْ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ قَالَ النَّبِيُّ صلی الله علیه وسلم «هَلُمَّ أَكْتُبْ لَكُمْ كِتَابًا لاَ تَضِلُّوا بَعْدَهُ». فَقَالَ عُمَرُ إِنَّ النَّبِيَّ صلی الله علیه وسلم قَدْ غَلَبَ عَلَيْهِ الْوَجَعُ وَعِنْدَكُمُ الْقُرْآنُ، حَسْبُنَا كِتَابُ اللَّهِ فَاخْتَلَفَ أَهْلُ الْبَيْتِ فَاخْتَصَمُوا، مِنْهُمْ مَنْ يَقُولُ قَرِّبُوا يَكْتُبْ لَكُمُ النَّبِيُّ صلی الله علیه وسلم كِتَابًا لَنْ تَضِلُّوا بَعْدَهُ، وَمِنْهُمْ مَنْ يَقُولُ مَا قَالَ عُمَرُ فَلَمَّا أَكْثَرُوا اللَّغْوَ وَالاِخْتِلاَفَ عِنْدَ النَّبِيِّ صلی الله علیه وسلم قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلی الله علیه وسلم- «قُومُوا». قَالَ عُبَيْدُ اللَّهِ فَكَانَ ابْنُ عَبَّاسٍ يَقُولُ إِنَّ الرَّزِيَّةَ كُلَّ الرَّزِيَّةِ مَا حَالَ بَيْنَ رَسُولِ اللَّهِ -صلی الله علیه وسلم- وَبَيْنَ أَنْ يَكْتُبَ لَهُمْ ذَلِكَ الْكِتَابَ مِنِ اخْتِلاَفِهِمْ وَلَغَطِهِمْ. [ر: ۱۱۴]

دحضرت امام بخاری رحمه الله مقصد دادې چه که مریض سره دعیادت کونکو ګڼړه شی اومریض ددې په وجه په تشویش کښې شی اوویره پرې راشی نو هغه عیادت کونکوته داووئیلی شی چه دلته نه لاړشئ. دا دبداخلاقۍ اوبې مروتۍ په زمره کښې نه دی داخل.لکه څنګه چه حدیث باب کښې حضرت نبی اکرم صلی الله علیه وسلم صحابه کرامو رضوان الله علیم اجمعین ته داشان اوفرمائیل چه «قوموا عنی»[2] په دې حدیث باندې تفصیلی کلام دکتاب المغازی په آخر کښې تیر شوې دې.[3]

## ۱۸- باب من ذهب بالصبی المریض لیدعی له

[۵۳۴۶] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ حَمْزَةَ حَدَّثَنَا حَاتِمٌ -هُوَ ابْنُ إِسْمَاعِيلَ- عَنِ الْجُعَيْدِ قَالَ سَمِعْتُ

---

[1]) فتح الباری: (۱۰/۱۵۵)_

[2]) عمدة القاری: ۲۱/۲۲۴، ارشادالساری: ۱۲/۳۹۹، الابواب والتراجم: ۲/۹۹)_

[3]) کشف الباری: کتاب المغازی: ص: ۶۷۲،۶۷۷)_

السَّائِبَ يَقُولُ ذَهَبَتْ بِي خَالَتِي إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ ابْنَ أُخْتِي وَجِعٌ فَمَسَحَ رَأْسِي وَدَعَا لِي بِالْبَرَكَةِ، ثُمَّ تَوَضَّأَ فَشَرِبْتُ مِنْ وَضُوئِهِ وَقُمْتُ خَلْفَ ظَهْرِهِ فَنَظَرْتُ إِلَى خَاتَمِ النُّبُوَّةِ بَيْنَ كَتِفَيْهِ مِثْلَ زِرِّ الْحَجَلَةِ.[ر ۱۸۷]

چه یو بچي مریض وی نوهغه دصالحانو ددعا دپاره پوتللي شي.اودده دپاره تري دعاغوښتلي شي.حضرت امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې ددې ثبوت دحدیث نه پیش کړې دې.دحدیث مناسبت دباب نه بالکل ظاهر دې.اودا حدیث په کتاب الطهارة کښې مخکښې تیر شوې دې.[۱]

**قوله**: مثل زرالحجلة: یعنی مهر نبوت دحجره عروسی دګهنډی په شان وو.

## ۱۹-باب نهی تمنی المریض الموت

[۵۳۴۷] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا ثَابِتٌ الْبُنَانِيُّ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ - رضى الله عنه - قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «لاَ يَتَمَنَّيَنَّ أَحَدُكُمُ الْمَوْتَ مِنْ ضُرٍّ أَصَابَهُ، فَإِنْ كَانَ لاَ بُدَّ فَاعِلاً فَلْيَقُلِ اللَّهُمَّ أَحْيِنِي مَا كَانَتِ الْحَيَاةُ خَيْرًا لِي، وَتَوَفَّنِي إِذَا كَانَتِ الْوَفَاةُ خَيْرًا لِي». [۵۹۹۰، وانظر: ۶۸۰۶]

په هندوستانی نسخوکښې «باب نهی التمنی المریض الموت» دې یعنی دمریض دپاره دمرګ تمنادنهی بیان دې.لیکن فتح الباری اوعمدة القاری نسخوکښې د «نهی» لفظ نشته دې.

**قوله**: حدثنا آدم: حضرت امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې څلورحدیثونه ذکرکړی دی.ړومبې حدیث دحضرت انس رضی الله عنه نه دې. داحدیث حضرت امام بخاری رحمه الله په ړومبی خل ذکر اوفرمائیلو.[۲]

حضرت نبی اکرم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه تاسو کښې دې یوسړې هغه مصیبت په وجه دمرګ خواهش نه کوی چه کوم ده ته رسیدلې دې.اوکه څوک دمرګ دعاکوی نوپه دې الفاظو دې اووائی چه «اللهم احینی ماکانت الحیاة خیرا لی وتوفنی اذا کانت الوفاة خیرا لی»

**قوله**: من ضر اصابه: په دې کښې دضرر نه مراد دنیاوی ضرردې.[۳] یعنی دنیاوی تکلیف اونقصان په وجه دې یو سړې دمرګ خواهش نه کوی.نودابن حبان په روایت کښې دی چه «لایتمنین احدکم الموت لضرنزل به فی الدنیا» په دې حدیث کښې «فی» کښې یو احتمال دادې

[۱] عمدة القاری:۲۱/۲۲۵_

[۲] (۵۳۴۸) اخرجه البخاری ایضاً فی الدعوات.باب الدعاء بالموت والحیاة (رقم الحدیث :۵۹۹۰. وایضاً فی کتاب التمنی باب مایکره من التمنی (رقم الحدیث : ۶۸۰۶) واخرجه السلم فی کتاب االذکر والدعاء باب تمنی کرا هیة الموت لضرنزل به : ۴/۲۰۶۴. رقم الحدیث : ۲۶۸۰)_

[۳] فتح الباری: ۱۰/۱۵۷)_

چه هغه سببیه وی ((ای بسب امر من الدنیا)) [1] که داخروی ضرر اندیښنه وی په فتنه کښې دمبتلا کیدوخطره وی نو په داسې حالت کښې الله جَلّ جَلَالُهُ نه دحفاظت سره ددنیانه درخصتیدو دعاکولې شی نو دموطاامام مالک رحمه الله کښې دحضرت عمر فاروق رضی الله عنه نه دادعامنقول ده:

((اللهم کبرت سنی وضعفت قوتی واستنثرت رعیتی فاقبضنی الیك غیر مضیع ولا مفرط)) [2] مسند احمد په روایت کښې دی چه ((اذا ارادت لی قوم فتنة فتوفنی غیر مفتون)) [3] معلومه شوه چه ددینی اندیښنه کښې دمرګ دعاکولې شی.

**قوله: فلیقل اللهم احینی**: مقصددادې چه څوك په هر حال کښې دمرګ دعا اوتمنا کوی نوبیا دې صراحتا دمرګ دعا نه کوی ځکه چه مطلقاً دمرګ تمناکښې یوپه تقدیر باندې اعتراض دې.نوحضرت حافظ ابن حجر رحمه الله لیکی چه:

((وهذا یدل علی ان النهی عن تمنی الموت مقید بها اذا لم یکن علی هذه الصیغة لان فی التمنی المطلق نوع اعتراض ومراغمة للقدر المختوم وفی هذه الصورة المامور بها نوع تفویض وتسلیم للقضاء)) [4]

[۵۳۴۸] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي خَالِدٍ عَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِي حَازِمٍ قَالَ دَخَلْنَا عَلَى خَبَّابٍ نَعُودُهُ وَقَدِ اكْتَوَى سَبْعَ كَيَّاتٍ فَقَالَ إِنَّ أَصْحَابَنَا الَّذِينَ سَلَفُوا مَضَوْا وَلَمْ تَنْقُصْهُمُ الدُّنْيَا وَإِنَّا أَصَبْنَا مَا لَا نَجِدُ لَهُ مَوْضِعًا إِلَّا التُّرَابَ وَلَوْلَا أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - نَهَانَا أَنْ نَدْعُوَ بِالْمَوْتِ لَدَعَوْتُ بِهِ، ثُمَّ أَتَيْنَاهُ مَرَّةً أُخْرَى وَهُوَ يَبْنِي حَائِطًا لَهُ فَقَالَ إِنَّ الْمُسْلِمَ لَيُؤْجَرُ فِي كُلِّ شَيْءٍ يُنْفِقُهُ إِلَّا فِي شَيْءٍ يَجْعَلُهُ فِي هَذَا التُّرَابِ.
[۵۹۸۹، ۶۰۶۶، ۶۰۶۷، ۶۸۰۷. وانظر: ۱۲۱۷]

داحدیث هم حضرت امام بخاری رحمه الله دلته په رومبی ځل ذکرکړې دې.حضرت قیس بن ابی حازم رحمه الله فرمائی چه مونږ دحضرت خباب عیادت لره ورغلو.هغوی په خپل بدن باندې اووه ځایه داغونه لګولی وو.په دې موقع باندې هغوی اوفرمائیل چه زمونږ کوم ملګری تیر شو.دنیادهغوی عمل کښې هیڅ کمی اونه کړه.لیکن مونږ سره دومره مال راغلوچه دهغې دایښودوډپاره دښاورې نه سوامونږسره بل ځائې نشته دې.اوکه حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم مونږ دمرګ دتمناکولونه نه منع کولونومابه دمرګ دعاکوله.

راوی وائی چه بیامونږ هغه له په دویم ځل ورغلو،هغوی خپل دیوال جوړولو.په دې موقع باندې هغوی اوفرمائیل چه مسلمانانوته په هر څیزاجرملاویږی چه کوم خرچ کوی،سوادې نه چه کوم هغه په دې خاروکښې واچوی.

[1] فتح الباری: (۱۰/۱۵۷)_
[2] الموطاللامام مالک رحمه الله، کتاب الحدود،باب ماجاء فی الرجم: (۲/۸۲۴)_
[3] مسند امام احمدبن حنبل رحمه الله: ۵/۲۴۳، ۵/۶۶، ۴/۳۷۸، ۵/۳۷۸)_
[4] فتح الباری: (۱۰/۱۵۸)_

**قوله**: وقد اكتوى سبع كيات: حضرت خباب رضي الله عنه چه په جسم كښې اووه داغونه لګولى وو. دترمذى په روايت كښې دى چه «وقد اكتوى فى بطنه فقال اما اعلم احدًا من اصحاب النبى لقى من البلاء مالقيت»(۱) يعنى څومره تكليف چه ما اوچت كړو په صحابه كرامو رضي الله عنهم نښې به چانه وى اوچت كړې.

علامه ابن الملقن فرمائى چه دترمذى په دې حديث كښې د «لقى من البلاء» نه آزمينت مراداخستې شى چه په يوزمانه كښې يودرهم هم ماسره نه وواواوس په زرګونودرهمونه دى.نودترمذى په دې روايت كښې دى چه «لقد كنت وما اجد درهماً على عهد رسول الله وفى ناحية بيتى اربعون الفاً»(۲)

ليكن ظاهر رومبې مطلب دې چه هغوى ته داسلام قبلولونه پس ډير تكليفونه اوغمونه وركړې شوى وو.فرمائيل به ئې چه مشركانو به اور لګولو اوزما د ملا په چربئ به اورمړكيدو(۳)

حضرت عمر فاروق رضي الله عنه به هغه خپل ځان سره نزدې كينولو اوفرمائيل به ئې چه په دې مجلس كښې ستاسونه زيات هيڅوك ددې مجلس مستحق نه دى بغير د عمار نه. بيا به ئې مجلس والوته دعمار دجسم داغونه خودل.(۴) هغه دسابقينو اولينو نه وو.اوپه شپږم نمبر هغوى اسلام قبول كړې وو.(۵)

حضرت على رضي الله عنه چه كله دجنګ صفين نه واپس راغلونوهغوى دكوفې دروازې سره اووه قبرونه اوكتل.تپوس ئې اوكړوچه دادچاقبرونه دى.خلقو اووئيل چه په دې كښې يو قبر دحضرت خباب بن الارت رضي الله عنه دې نوحضرت على وفرمائيل چه:

«رحم الله خباباً لقد اسلم راغباً وهاجر طائعاً وعاش مجاهدًا وابتلى فى خمسة احوالاً ولن يضيع الله اجرًا من احسن عملاً ثم قال: طوبى لمن ذكر المعاد وعمل للحساب وقنع بالكفاف ورضى عن الله عزوجل»(۶)

ددېرشتو كالوپه عمر كښې دهغوى وفات په ۳۷ هجرئى كښې اوشودهغوى نه ۳۲ احاديث مروى دى.(۷) بهر حال دهغه په شا كښې اووه داغونه وو.چه دهغې په وجه هغه ډير تكليف

---

(۱) سنن الترمذى،كتاب الجنائز باب ماجاء فى النهى عن التمنى للموت :۳/۳۰۱، رقم الحديث :۹۷۰)_

(۲) سنن الترمذى،كتاب الجنائز باب ماجاء فى النهى عن التمنى للموت :۳/۳۰۱، رقم الحديث :۹۷۰)_

(۳) حلية الاولياء لابى نعيم :۱/۱۴۴)_

(۴) سير اعلام النبلاء : ۲/۳۲۴، رقم الحديث :۶۲، وطبقات ابن سعد: ۳/۱۶۵)_

(۵) الاصابه فى تميز الصحابه:۱/۴۱۶، رقم التراجمة : ۲۲۱۰) وحلية الاولياء: ۱/۱۴۴)_

(۶) وحلية الاولياء: ۱/۱۴۴)_

(۷) سيراعلام النبلاء :۲/۳۲۴، دهغوى حالات دپاره اوګورئى : تهذيب الكمال :۷/۲۱۹، والعلل للمدينى : ۵۰، وطبقات خليفة : ۱۷،۱۲۶، وتاريخ الطبرى : ۳/۵۷۹، والعقد الفريد: ۳/۳۳۸، معجم الطبرانى الكبير : ۴/ الترجمة :۳۶۴، والكامل لابن اثير : ۲/۶۹، وتهذيب الاسماء واللغات : ۱/۱۷۴، وتجريد اسماء الصحابة : ۱/۱۵۴)_

کښې وو. ددې وجې ئې اوفرمائيل که دمرګ دعاجائزوه نوهغوى به دځان دپاره دمرګ تمناکوله. په جسم کښې داغونه لګول جائزدى اوکه ناجائز؟ دامسئله مخکښې په کتاب الطب کښې راغې.

**قوله**: ان اصحابنا الذين سلفوا مضوا ولم تنقصهم الدنيا: يعنى زمونږ هغه ملګرى چه ددنيانه تيرشو(اودحضرت نبى كريم ﷺ په زمانه کښې دهغه وفات اوشو) دنيادهغه په ثواب کښې هيڅ کمې اونه کړو. ددې نه خويا هغه مخصوص صحابه کرام رضی الله عنهم مراددى چه دمالدارئ نه مخکښې مخکښې ددنيانه رخصت شوى وو.اودمال دزياتى اوددولت دوسعت په زمانه کښې هغوى نه وو.مطلب دادې چه هغه خلق به خپل اجر وثواب ذخيره به په آخرت کښې مومى.(١)

او يا ددې نه مخکښې وفات شوى مالداراوفقير ټول صحابه کرام مراددى.ددې وجې د عهدنبوى کښې کوم صحابه کرام رضی الله عنهم مالدار وو.دمال دکثرت په وجه په هغوى اثرنه ووشوې، دنيکئ په کارونو کښې دهغوى مال په کثرت سره خرچ شوې ووځکه چه په هغه وخت کښې ضرورت زيات وو. ورسره مال ډير شو او مال والو دپاره دمال خرچ کولوموقعې دمخکښې نه زياتې نه وې. ددې وجې حضرت خباب رضی الله عنه اوفرمائيل چه ((وانا اصبنا مالانجدله موضعا الا التراب))يعنى اوس دمال دښاورې نه سوا بل ځائې دمال خرچ کولو نشته. ددې نه مراد تعميرات دى چه اوس دمال صرف کولوهيڅ ځائې پاتې نشو.خلق ئې په تعميراتو کښې لګوى. داخبره حضرت خباب رضی الله عنه چه په کوم وخت کښې کړې وه.په هغه وخت کښې هغوى په خپله هم ديوال جوړولو.لکه څنګه چه روايت کښې دى.(٢)

**قوله**: ان المسلم ليوجر فى كل شئ ينفقه الا فى شئ يجعله فى هذا التراب: يعنى مسلمان چه څه هم خرچ کوى په هغې باندې ده ته اجر ملاويږى ليکن څه چه دضرورت نه زيات خرچ کوى نوپه هغې باندې هيڅ قسمه اجر نه ملاويږى. داجمله دلته موقوفاً نقل کړې شوې ده.يعنى دحضرت خباب رضی الله عنه دقول په طرزباندې منقول ده.البته دطبرانى رحمه الله په يو روايت کښې دامرفوعاً منقول دى. په هغې کښې دى چه ((وهويعالج حائطاله فقال: ان رسول الله ﷺ قال: ((ان المسلم يوجرفى نفقة كلها الا ما يجعله فى التراب))(٣) ليکن په دې طريق کښې عمر بن اسماعيل يوراوى دې.يحيى بن معين هغوى ته کاذب وئيلى دى.(٤) البته داصول حديث په کتابونو کښې داخبره تيره شوې ده چه ثواب اواجر سره متعلق داشان موقوف احاديث هم

---

(١) فتح البارى: ١٠/١٥٩، عمدة القارى:٢١/٢٢٦)_

(٢) فتح البارى: ١٠/١٥٩، عمدة القارى:٢١/٢٢٦)_

(٣) فتح االبارى:١٠/١٥٩، عمدة القارى: ٢١/٢٢٦، وارشادالسارى: ١٢/٤٠٣)_

(٤) فتح االبارى:١٠/١٥٩، عمدة القارى: ٢١/٢٢٦)_

دمرفوع په حکم کښې دی.[1]

[۵۳۴۹] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبُو عُبَيْدٍ مَوْلَى عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ «لَنْ يُدْخِلَ أَحَدًا عَمَلُهُ الْجَنَّةَ». قَالُوا وَلاَ أَنْتَ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ «لاَ، وَلاَ أَنَا إِلاَّ أَنْ يَتَغَمَّدَنِي اللَّهُ بِفَضْلٍ وَرَحْمَةٍ فَسَدِّدُوا وَقَارِبُوا وَلاَ يَتَمَنَّيَنَّ أَحَدُكُمُ الْمَوْتَ إِمَّا مُحْسِنًا فَلَعَلَّهُ أَنْ يَزْدَادَ خَيْرًا، وَإِمَّا مُسِيئًا فَلَعَلَّهُ أَنْ يَسْتَعْتِبَ». [۶۰۹۸، ۶۸۰۸]

[۵۳۵۰] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ عَبَّادِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ قَالَ سَمِعْتُ عَائِشَةَ - رضى الله عنها - قَالَتْ سَمِعْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - وَهُوَ مُسْتَنِدٌ إِلَيَّ يَقُولُ «اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي وَارْحَمْنِي وَأَلْحِقْنِي بِالرَّفِيقِ الأَعْلَى». [ر: ۴۱۷۱]

حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دیو سړی عمل هغه لره جنت ته نشي داخلولې. حضرات صحابه کرامو ﷺ عرض اوکړوچه یارسول الله تاسولره هم حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه نه مالره هم نه: مګرداچه الله تعالی مالره په خپل فضل اورحمت کښې اونغاړی. اوتاسو کښې دې هیڅوك دمرګ خواهش نه کوی، ددې وجې چه هغه خوبه یا نیکوکاروی نوامیددې چه الله جل جلاله به دده په نیکئ کښې اضافه اوکړی. اوکه بدکاروی نوامیددې چه هغه توبه اوکړی.

**یو اشکال اودهغې جواب:**

**قوله:** لن يدخل احدًا عمله الجنة: په دې باندې دقرآن پاك دآیت نه اشکال دې، په آیت کریمه کښې دی چه «وَتِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِي أُورِثْتُمُوهَا بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ»[2] یعنی داهغه جنت دې چه ددې تاسو دعملونو په بدله کښې وارثان جوړشوی یی.

① ددې جواب داورکړې شوې دې چه په آیت کریمه کښې دجنت نه مراددرجې اومنازل دی ځکه چه دجنت په اعمالوسره متعین کیږی. ځکه چه دجنت درجات مختلف اومتفاوت دی. نوچه دچاڅومره عمل نیك وی هومره به دهغه په جنت کښې رتبه وی اوپه حدیث باب کښې دی. چه دجنت نه نفس جنت ته داخلیدل مراد دی. یعنی اصل جنت کښې به دخول دځه عمل په نتیجه کښې نه وی بلکه دالله جل جلاله فضل اوکرم سره به وی. البته مراتب به هلته داعمالو په اعتبارسره ملاویږی.[3]

② علامه عینی رحمه الله ددې یوجواب داورکړې دې چه (بِمَا كُنْتُمْ) کښې ..باء.. سببیه نه ده بلکه ..باء.. دالصاق اومصاحبت دپاره ده. «ای اورثتموها مصاحبة اوملابسة لثواب اعمالکم»[4]

---

[1] ظفرالامانی : ۳۲۳. (وشرح نخبة الفکر، بحاشیه عبدالله، خاطر : ۹۴. وتدریب الراوی :ص/۱۱۴، ۹۰۱. (النوع السابع الموقوف) وتیسیر مصطلح الحدیث : ۱۳۱)_

[2] الزخرف:۷۲)_

[3] ارشاد الساری :۲۱/۴۰۳)_

[4] عمدة القاری:۲۱/۲۲۷)_

داهل سنت والجماعت په نیز دثواب اودعذاب ثبوت په عقل سره نه بلکه په شرع سره دي، که الله تعالی ټولو مومنانوته عذاب ورکړي نو بیاهم دادعدل اوانصاف خلاف نه دی، اودابیله خبره ده چه الله جل جلاله پخپله فرمائیلی دی چه هغه دمومن مغفرت فرمائي، اوصرف فاسقانو اوکافرانو ته به عذاب ورکوی.

معتزله دعقل په ذریعه باندې دثواب اودعقاب دثبوت قائل دی، وائی چه طاعت موجب دثواب اومعصیت موجب دعقاب دې، داحدیث دهغوی خلاف حجت دې.[1]

لیکن په دې باندې دقران یوبل آیت کریمه نه به اعتراض کیدې شی. سورة نحل کنبې دی چه ((سلام علیکم ادخلوالجنة بما کنتم تعملون))[2] په دې کنبې تصریح ده چه دخول جنت به داعمالو په وجه وی.

① ددې یوجواب دادې چه په دې آیت کریمه کنبې هم دجنت منازل مراددی، اومطلب دادې چه ((ادخلوا منازل الجنة وقصورها بما کنتم تعلمون))

② اودوئم جواب دادې چه دلته دالله جل جلاله درحمت قید معهوددې، یعنی ((ادخلوها بما کنتم تعلمون مع رحمة الله لکم وتفضله علیکم))[3]

**قوله**: فسددوا وقاربوا: ((سددوا ای اقصدوالسداد ای الصواب وهوما بین الافراط والتفریط)) یعنی نیکی اومیانه روی اختیارکړئ اوکه هغه نشئ اختیارولې نو دې ته دنزدې تلوکوشش اوکړئ[4] د ((سددوا)) بله معنی داده چه خپل اعمالولره درست کړې. اود ((قاربوا)) معنی ده دالله جل جلاله قربت طلب کړئ.[5]

**قوله**: ولایتمنین احدکم الموت: په یوروایت کنبې دی چه دې نه پس دااضافه هم ده چه ((ولایدع به من قبل ان یاتیه)) یعنی دمرګ راتلو نه مخکنبې ددې دعاکول پکارنه دی لیکن دمرګ وخت چه نزدې راشی نوبیاددې دعاکولې شی.[6]

بعضې حضراتواووئیل چه دمرګ دتمنا کولوداحکم دیوسف علیه السلام دقول ((توفنی مسلماً والحقنی بالصالحین))[7] سره منسوخ کړې شوې دې، داشان دحضرت سلیمان علیه السلام قول په قران پاك کنبې نقل کړې دې. ((وادخلنی برحمتك فی عبادك الصالحین))[8] دباب آخری حدیث کنبې

---

[1] عمدة القاري:۲۱/۲۲۷)_

[2] سورة نحل:۳۲)_

[3] ارشادالساري: ۱۲/٤٠٤)_

[4] عمدة القاري:۲۱/۲۲۷)_

[5] عمدة القاري:۲۱/۲۲۷)_

[6] فتح الباري: ۱۰/۱٦۰)_

[7] سورة یوسف: ۱۰۱)_

[8] سورة النمل:۱۹)_

دحضرت نبی اکرم ﷺ ارشاد دې چه «اللهم بالرفیق الاعلیٰ» او د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه دمرګ دپاره دعا مخکښې تیرشوی دی، ددې نصوصو په وجه دا حکم منسوخ شوې دې.[1]
خو دا قول درست نه دې. د حضرت یوسف علیه السلام او د حضرت سلیمان علیه السلام د قول جواب خو ورکړې شوې دې. چه هغوی دمرګ دپاره دعا نه ده کړې. بلکه دائې ووئیلی دی چه دمرګ په وخت دې کښې دخاتمه بالخیر وی او دایمان حالت کښې دې وفات وی. «ای توفنی مسلماً عند حضور اجلی»
دوئم جواب دا ورکړې شوې دې چه کله زمونږ د شریعت یو حکم راشي نو بیا «شرائع من قبلنا» زمونږ دپاره حجت نه دې. زمونږ دپاره زمونږ شریعت حجت دې.[2]
او یو جواب دا دې چه هغوی دمرګ دوخت دقریب راتلو دعا کړې وه، چه د هغې جواز دادې ځکه چه په کوم روایت کښې دمرګ دتمنانه منع کړې شوې ده، په هغې کښې د «من قبل ان یاتیه» قید دې.[3]

**قوله**: اما محسناً فلعله ان یزداد خیرًا واما مسیئاً فلعله ان یستعتب: یا خو به هغه نیکوکاروی نو امید دې چه په خپله نیکړه کښې به اضافه اوشی او یا که بدکار وی نو امید دې چه هغه به د الله جل جلاله رضا طلب کړی او توبه به اوباسی.
«یستعتب یطلب العتبیٰ وهو الارضاء ای یطلب رضا الله بالتوبة»[4]
**یو اشکال او دهغې جوابونه**: حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله دحضرت ابو هریره رضي الله عنه نه یو روایت نقل کړې دې چه په هغې کښې دی چه «وانه لایزید المؤمن عمره الا خیرًا»[5] د مومن عمر چه څومره اوږد وی نو دومره به دهغه نیکئ هم ډیرې وی، مرګ سره خو عمل منقطع کیږی، په دې باندې اشکال کیدیشی که یو سړې بدکار دې نو دده په اوږدعمر کښې خیر نشته دې، د شر اضافه به کیږی. ددې اشکال مختلف جوابونه ورکړې شوی دی.
① لایزید المؤمن عمره الا خیراً، کې د مومن نه مومن کامل مراد دې. لیکن حضرت حافظ ابن حجر رحمه الله دا جواب بعید ګرځولې دې.
② په دې حدیث کښې غالب مومنینو په اعتبار سره اووئیلې شو چه دده اوږد عمر په حسنات کښې د اضافې سبب دې. اوس که یو نیم مسلمان داسې دې چه په عمر کښې د اضافه دهغه دپاره حسنات په ځائې دسئیات سبب جوړیږی نو هغه نادر دی غالب نه دی[6]

---

[1] فتح الباری: ۱۰/۱۶۰۔
[2] فتح الباری: ۱۰/۱۶۰۔
[3] فتح الباری: ۱۰/۱۶۰۔
[4] عمدة القاری: ۲۱/۲۲۷، وارشادالساری: ۱۲/۴۰۴۔
[5] فتح الباری: ۱۰/۱۲۱۔
[6] فتح الباری: ۱۰/۱۲۱۔

دباب په آخری حدیث کښې دی چه «اللهم اغفرلي وارحمني والحقني بالرفيق الاعلى» حضرت نبي كريم ﷺ په مرګ الوفات کښې دادعا کړې وه. ددې تفصیل په کتاب المغازی کښې تیر شوې دې.[1]

**د باب دوه روایتونه یوځائې ذکرکولو کښې نکته** حضرت امام بخاری رحمه الله د «ولا يتمنين احدكم الموت» والا حديث نه پس «اللهم بالرفيق الاعلى» والا روایت ذکر کړو. لکه څنګه چه تیر شو. د "لايتمنين أحدكم الموت" نه پس يو روایت کښې د "ولايدعو به قبل ان يأتيه" قید دې چه دمرګ خواهش اودمرګ دعادمرګ راتلونه مخکښې درست نه دی. لیکن که دمرګ آثارظاهر شی.نوپه هغه وخت کښې دمرګ دزرراتلو دعا کولې شی لکه څنګه چه حضرت نبي كريم ﷺ «اللهم بالرفيق الاعلى» اووئیل اومرګ ته نیزدې ئې دادعااوکړه. هم ددې نکتې په وجه حضرت امام بخاری رحمه الله دا دواړه روایتونه یوځائې ذکر اوفرمائیل نو حضرت حافظ ابن حجر رحمه الله لیکی چه:

«وزاد (اى فى رواية ابى هريرة) بعد قوله: احدكم الموت ولا يدع به من قبل ان يأتيه وهو قيد فى الصورتين ومفهومه انه اذاحل به لا يمنع من تمنية رضا بلقاء الله، ولامن طلبه من الله لذلك، وهو كذلك ولهذه النكتة عقب البخارى حديث ابى هريرة بحديث عائشة رضي الله عنها: اللهم اغفرلى وارحمنى والحقنى بالرفيق الاعلى اشارة الى ان النهى مختص بالحالة التى قبل نزول الموت فلله دره ماكان اكثر استحضاره وايثاره للاخفى على الاجلى شحذ اللاذهان وقد خفى صنيعه هذا على من جعل حديث عائشة فى الباب معارضاً لاحاديث الباب اوناسخاً لها»[2]

## ٢٠ - باب دعاء العائد للمريض

وَقَالَتْ عَائِشَةُ بِنْتُ سَعْدٍ عَنْ أَبِيهَا «اللَّهُمَّ اشْفِ سَعْدًا». قَالَهُ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم-.

[٥٣٥١] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ عَائِشَةَ -رضى الله عنها- أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- كَانَ إِذَا أَتَى مَرِيضًا - أَوْ أُتِيَ بِهِ - قَالَ «أَذْهِبِ الْبَاسَ رَبَّ النَّاسِ، اشْفِ وَأَنْتَ الشَّافِي لاَ شِفَاءَ إِلاَّ شِفَاؤُكَ، شِفَاءً لاَ يُغَادِرُ سَقَمًا».

قَالَ عَمْرُو بْنُ أَبِي قَيْسٍ وَإِبْرَاهِيمُ بْنُ طَهْمَانَ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ إِبْرَاهِيمَ وَأَبِي الضُّحَى إِذَا أُتِيَ بِالْمَرِيضِ، وَقَالَ جَرِيرٌ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ أَبِي الضُّحَى وَحْدَهُ، وَقَالَ إِذَا أَتَى مَرِيضًا.

[٥٤١١، ٥٤١٢، ٥٤١٨]

دحضرت امام بخاری رحمه الله مقصد دادې چه عیادت کونکی ته پکاردی چه دمریض دپاره د

---

[1] كشف البارى:كتاب المغازى:٦٧٨)_

[2] فتح البارى:١٦٠/١٠)_

شفا دعا اوكړى.حضرت نبى كريم لره به چه كله يو مريض راوستلې شو.يا چه كله به حضرت نبى كريم ﷺ يو مريض لره تشريف يوړو نودعا به ئې كوله چه :

«اذهب الباس رب الناس اشف وانت الشافى لا شفاء الا شفاءك شفاء لايغادر سقماً»

**قوله** : شفاء لا يغادر سقماً : داسې شفاء چه بيمارى پرې نږدى.حضرت حافظ ابن حجر رحمه الله ليكى چه :

«وفائدة التقيد بذلك انه قد يحصل الشفاء من ذالك المرض فيخلفه مرض اخر يتولد منه فكان يدعوله بالشفاء المطلق لا بمطلق الشفاء»(١) يعنى اكثر سړې د يو بيمارئى نه خو شفاياب شى ليكن په دې پسې بله بيمارئي كښې اخته شى.ددې وجې حضرت نبى كريم ﷺ صرف ددې بيمارئى نه دشفاء دپاره دعا اونه كړه بلكه مطلقاً دهرې بيمارئى نه ئې دشفادعا اوكړه.دباب په آخر كښې دابراهيم بن طهمان تعليق لره اسماعيلى اوجرير په طريق امام ابن ماجه موصولاً نقل كړې دې.(٢)

**يو اشكال اوهغې جواب** : دمريض دپاره دمرض نه دشفاء دعا غوښتلې شوې ده،حالانكه مرض دګناهونو كفاره دې،اود اخروى ثواب ذريعه دہ،چه په حقيقت كښې دمومن بنده په حق كښې يو نعمت دې.نو دده دشفاء دعاولې غوښتلې شى؟

ددې جواب دادې چه دعاعبادت دې اودا دثواب اوكفارې منافى نه ده ځكه چه دبيمارئى دانسان دپاره دګناهونو كفاره جوړيدل اوپه دې باندې سړى ته اجراوثواب ملاويدل خو ابتدائې مرض نه حاصليږى.ددې وجې دمرض برقرارپاتې كيدل خوضرورى نه دى.ددې وجې مريض لره دعا.دمرض نعمت دجهت منافى نه ده.(٣)

## ٢١ - باب وضوء العائد للمريض

[٥٣٥٢] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ - رضى الله عنهما - قَالَ دَخَلَ عَلَىَّ النَّبِىُّ - صلى الله عليه وسلم - وَأَنَا مَرِيضٌ فَتَوَضَّأَ فَصَبَّ عَلَىَّ أَوْ قَالَ صُبُّوا عَلَيْهِ فَعَقَلْتُ فَقُلْتُ لاَ يَرِثُنِى إِلاَّ كَلاَلَةٌ، فَكَيْفَ الْمِيرَاثُ فَنَزَلَتْ آيَةُ الْفَرَائِضِ.[ر: ١٩١]

دحضرت امام بخارى رحمه الله مقصد ددې باب نه دادې كه دمريض عيادت دپاره راتلونكې څوك بزرګ سړې اورجل صالح وى اوهغه دمريض دپاره اودس كوى او داشان د اودس نه بچ شوې اوبه په طورد تبرك په مريض باندې اوشيندى نو په سنت كښې ددې ګنجائش موجود دې(٤)

---

(١) فتح البارى: ١٠/١٦٢. اوګورئى :ارشادالسارى: ١٢/٤٠٦_

(٢) فتح البارى: ١٠/١٦٢. وارشادالسارى: ١٢/٤٠٦،عمدة القارى:٢١/٢٢٨)_

(٣) فتح البارى:١٠/١٦٢.١٦٣)_

(٤) الابواب والتراجم : ٢/٩٩، وارشاد السارى: ١٢/٤٠٧)_

نو په حديث باب کښې دی چه حضرت نبی کريم ﷺ اودس اوکړو. حضرت نبی کريم ﷺ دحضرت جابر رضی الله عنه دعيادت دپاره تشريف اوړې وو. د اودس نه پس ئې اوفرمائيل چه دابچ شوې اوبه په جابر رضی الله عنه باندې اوشيندئی نوهغه اوبه په هغه باندې اوشيندلې شوې. دتبې بعضې قسمونو کښې يخې اوبه په بدن باندې اچول مفيد وی. بعض حضرات وائی چه حضرت جابر رضی الله عنه داشان تبه کښې مبتلاء وو. ددې وجې حضرت نبی کريم ﷺ د اوبو شيندلو حکم ورکړو.

## ۲۲- باب من دعا برفع الوباء والحمى

[۵۳۵۳] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ - رضى الله عنها - أَنَّهَا قَالَتْ لَمَّا قَدِمَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وُعِكَ أَبُو بَكْرٍ وَبِلاَلٌ قَالَتْ فَدَخَلْتُ عَلَيْهِمَا فَقُلْتُ يَا أَبَتِ كَيْفَ تَجِدُكَ وَيَا بِلاَلُ كَيْفَ تَجِدُكَ قَالَتْ وَكَانَ أَبُو بَكْرٍ إِذَا أَخَذَتْهُ الْحُمَّى يَقُولُ:

كُلُّ امْرِئٍ مُصَبَّحٌ فِي أَهْلِهِ ... وَالْمَوْتُ أَدْنَى مِنْ شِرَاكِ نَعْلِهِ

وَكَانَ بِلاَلٌ إِذَا أُقْلِعَ عَنْهُ يَرْفَعُ عَقِيرَتَهُ فَيَقُولُ:

أَلاَ لَيْتَ شِعْرِي هَلْ أَبِيتَنَّ لَيْلَةً ... بِوَادٍ وَحَوْلِي إِذْخِرٌ وَجَلِيلُ

وَهَلْ أَرِدَنْ يَوْمًا مِيَاهَ مِجَنَّةٍ ... وَهَلْ تَبْدُوَنْ لِي شَامَةٌ وَطَفِيلُ

قَالَ قَالَتْ عَائِشَةُ فَجِئْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَأَخْبَرْتُهُ فَقَالَ «اللَّهُمَّ حَبِّبْ إِلَيْنَا الْمَدِينَةَ كَحُبِّنَا مَكَّةَ أَوْ أَشَدَّ وَصَحِّحْهَا وَبَارِكْ لَنَا فِي صَاعِهَا وَمُدِّهَا وَانْقُلْ حُمَّاهَا فَاجْعَلْهَا بِالْجُحْفَةِ». [ر: ۱۷۹۰]

دوباء لفظ بعينه په اردو کښې هم په دې معنی کښې استعماليږی چه په کومه معنی کښې په عربئ کښې مستعمل دې امراض اودبيمارو دعام کيدو اودمخصوص بيمارو خوريدوته وبا وائی بعضو دوباء اطلاق په طاعون باندې کړې دې. طاعون هم درحقيقت دوباء يوقسم دې.[1]

شيخ الحديث حضرت مولانامحمدزکريا رحمه الله ددې ترجمة الباب غرض بيان کړې دې، اوفرمائی چه تبه اوطاعون دواړه دشهادت په اسبابو کښې شمارلې شوی دی، اودا دواړه کفارهٔ دسيئاتو هم دی. لهذا چاته وهم کيديشی چه کوم سړې په دې کښې مبتلاء شی. ددې دوجې مناسب نه دی چه دده د دفع کولو دعا اوکړی. ددې وهم دفع کولو دپاره حضرت امام بخاری رحمه الله داباب قائم کړې دې. نو هغه ليکی چه

«وما يظهر لهذا العبد الضعيف من الترجمة انه انما ترجم بذالك لئلا يتوهم ان لا ينبغى الدعاء برفع الوباء والحمى فانهما من اسباب الشهادة وكفارة السيئات فان الطاعون من اسباب الشهادة لقوله عليه السلام المطعون شهيد»[2]

---

[1]) ارشادالساری: ۱۲/۴۰۷، عمدة القاری: ۲۱/۲۲۹)_

[2]) الابواب والتراجم: ۲/۹۹)_

په ترجمة الباب کښې دوباء ذکردې لیکن په حدیث کښې ددې ذکر نشته دې. علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی چه ددې حدیث بعضې طرق کښې دوباء هم ذکر دې. نود کتاب الحج په آخرکښې ددې یو طریق تیرشوې دې،په هغې کښې حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه

«قدمنا المدینة وهی اوبأ أرض الله»[1]

دوباء دلرې کولو دپاره دعا اشکال داهم کیدیشی چه دا دعابرفع الموت لره متضمن ده.اودمرګ یووخت مقرر دې.ددې دفع کولودپاره دعاکول یوعبث کاردې.

ددې جواب دادې چه دعا بذا ت خودیو عبادت دې اودعمرددرازئې دپاره دعاغوښتل فعل عبث نه دې.نوعلامه قسطلانی لیکی چه:

«واستشکل ایضاً الدعاء برفع الوباء لانه یتضمن الدعاء برفع الموت والموت حتم مقضی فیکون ذالك عبثاً واجیب: بانه لاینافی التعبد بالدعاء لانه قدیکون من جملة الاسباب فی طول العمر او رفع المرض»[2]

**قوله**: یرفع عقیرته: «عقیرة» آواز ته وائی. یعنی هغه اوچت آوازسره شعرونه وئیل.

.....

# ٧٩-کتاب الطّب

(الاحادیث: ۵۳۵۴_۵۴۴۵)

په کتاب الطب کښې اته پنځوس (۵۸) ابواب اویوسل اواتلس احادیث دی.اتلس (۱۸) معلق اوباقی موصول دی،پنځه اتیا (۸۵) احادیث مکرر اودرې دیرش (۳۳) احادیث په ړومبی ځل راغلی دی په دې درې دیرشوکښې پنځویشت احادیث متفق علیه دی.دصحابه کرام رضی الله عنهم وغیره نه شپاړس آثار حضرت امام بخاری رحمه الله په کتا ب الطب کښې ذکر کړې دی.زمونږ په دې جلد کښې دکتاب الطب دپنځویشت بابونو تشریح راغلی ده. باقی ابواب به ان شاء الله مخکښې راشی.

---

[1] ارشاد الساری: ۱۲/۴۰۸_

[2] ارشاد الساری: ۲۱/۴۰۸_

بسم الله الرحمٰن الرحیم

# ٧٩- کتاب الطب

دکتاب الطب مناسبت د کتاب المرضٰی سره ظاهر دې. دصغانی نسخه کښې ((الطب)) نه پس د ((الادویة)) اضافه ده. [۱]

**دطب لغوی او اصطلاحی معنی**: دطب طاء باندې درې واړه اعراب درست دی. دطب لفظی معنی دعلاج اودمرض دواړو دپاره استعمالیږی دا داضدادنه دې. [۲]

دطب لفظ دسحر دپاره استعمالیږی. نوچه کوم سړی باندې جادوشوې وی، هغه ته مطبوب وائی. یوحدیث کښې دی چه ((رجل مطبوب ای مسحور)) [۳]

دراصل زمانه جاهلیت کښې داهل عرب خیال ووچه دسړی دبیمارئی سبب سحر دې. دجادو اوسحر په وجه سړی بیماریږی. ددې وجې طب دسحر په معنی کښې استعمالیږی. [۴]

دعلم طب اصلاحی تعریف دادې ((هو علم یتعرف منه احوال بدن الانسان من جهة ما یصح ویزول عن الصحة لیحفظ الصحة الحاصلة ولیستردها زائلة)) [۵]

یعنی علم طب سره دصحت اوعدم صحت نقطه نظر سره معلومات حاصلیږی. چه موجوده صحت برقراراوساتې شی، اوزائل شوې صحت واپس شی.

**دطب قسمونه**: بیاپوهه شئ چه دطب دوه قسمونه دی. یوطب الارواح دې اودوئم طب الابدان. طب الارواح خودحضرات انبیاء کرام ﷺ سره خاص دې، د طب الابدان دوه قسمونه دی. یوهغه چه دحضور ﷺ نه منقول دې، حضرت نبی کریم ﷺ نه منقول طب ابو نعیم اصفهانی په یو رساله کښې جمع کړی دی، علامه ابن القیم ﷫ ددې ښه ډیره ذخیره په ((زادالمعاد)) کښې جمع کړې ده، [۶] چه دابعضو خلقو د((طب النبی لابن القیم)) نوم سره شائع کړې ده، اوپه اردوکښې هم ددې ترجمه شوې ده، [۷]

اودوئیمه حصه هغه ده چه انسان تجربات سره په وجود کښې راغلې ده. ددې هم دوه قسمونه دی. یوقسم هغه دی چه په هغې کښې دغوروفکرضرورت نه وی، قدرت پخپله په جاندار

---

[۱] اوګورئی فتح الباری: ۱۰/۱۶۵، ارشاد الساری: ۱۲/۴۰۹)_

[۲] اوګورئی فتح الباری: ۱۰/۱۶۵، عمدة القاری: ۲۱/۲۲۹، ارشاد الساری: ۱۲/۴۰۹)_

[۳] الحدیث اخرجه البخاری فی کتاب الطب، باب السحر: ۵/۲۱۷۶، (رقم الحدیث: ۵۴۳۳) واخرجه المسلم فی کتاب السلام باب السحر (رقم الحدیث: ۲۱۸۹) واخرجه النسائی فی کتاب الطب، باب السحر: ۴/۳۸۰) رقم الحدیث: ۷۶۱۵) واخرجه ابن ماجه فی کتاب الطب، باب السحر: ۲/۱۱۷۶)، (رقم الحدیث: ۳۵۴۵)

[۴] اوګورئی فتح الباری: ۱۰/۱۶۵، عمدة القاری: ۲۱/۲۲۹)_

[۵] اوګورئی فتح الباری: ۱۰/۱۶۵، عمدة القاری: ۲۱/۲۲۹، وارشاد الساری: ۲۱/۴۰۹)_

[۶] اوګورئی فتح الباری: ۱۰/۱۶۵، زادالمعاد فصل فی علاجه (ص) لامراض القلوب وامراض البدن: ۴/۵)

[۷] داکتاب دارالاشاعت کراچۍ نه شائع شوې دې)_

کښې دهغې دعلاج علم اینبودې دې،لکه دتندې علاج اوبه اواولږې علاج غذا ده.اودوئیم قسم هغه دی چه په هغې کښې دغوروفکر ضرورت وی لکه نورې بیمارئی په انسان راځی.ددې بیمارو علاج دخلقو دتجربوسره په وجود کښې راغلې دې.[1]

بیا څنګه چه دبیمارئې دوه قسمونه دی، ① روحانی ② جسمانی
دغه شان دعلاج هم دوه قسمونه دی،

① **طبعی او جسمانی** :دا دمفرداتو په شکل کښې وی،اومرکبات په صورت کښې هم،

② **روحانی او لسانی**:حضرت نبی کریم ﷺ دخپل امت دپاره دوه قسمه علاجونه اختیارکړی دی، ظاهری اوطبعی دوایانې هم اختیارفرمائیلې،اوباطنی اوروحانی علاجونه هم.[2]

امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې دطب الابدان ذکر دې چه کومه حضرت رسول الله ﷺ نه منقول ده لکه څنګه چه طب نبوی ﷺ سره تعبیرکوی،

**د جسمانی طب مدار**: د جسمانی طب مدار په درې څیزونو باندې دې، یو د صحت حفاظت، دویم د نقصان ورکونکې څیزونو نه پرهیز او دریم د فاسدې مادې وتل. په قران کریم کښې دې درې واړو ته اشاره شوې ده.

په سورة بقره کښې دی، ﴿فَمَنْ كَانَ مِنكُم مَّرِيضًا أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ﴾ په سفر کښې چونکه تکلیف وی کوم چې د صحت د پاره نقصان ده وی، اوس که په دې کښې روژه اونیولې شی نو د صحت د نور خرابیدو امکان دې، ځکه صحت صحیح ساتلو د پاره د روژې د نه نیولو حکم ورکړې شوې دې

د قران کریم په یو بل ایت کښې دی ﴿وَلَا تَقْتُلُوا أَنفُسَكُمْ﴾[3] ددې نه دا مسئله اخستلې شوې ده که د یخو اوبو استعمالیدو باندې د هلاکت ویره وی نو په داسې صورت کښې د تیمم اجازت دې. د نقصان ورکونکې څیزونو نه ځان بچ ساتل دې نه په پوه کښې راځی.

او دریم څیز دې د فاسد مادې د وتل، دې طرف ته د قران کریم ایت ﴿أَوْ بِهِ أَذًى مِّن رَّأْسِهِ فَفِدْيَةٌ﴾[4] کښې اشاره ده چې محرم لره که سپږې وغیره تنګوی او تکلیف ورکوی نو هغه دا تکلیف د ځان نه لرې کولې شی،دغه شان حافظ ابن حجر لیکی:

**ومدار ذلک علی ثلاثة اشیاء: حفظ الصحة، والاحتماء عن المؤذی، استفراغ المادة الفاسدة. قد اشیر الی الثلاثة فی القران. فالاول من قوله تعالی ﴿فَمَن كَانَ مِنكُم مَّرِيضًا أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ﴾ وذلک ان لسفر مظنة النصب، وهو من مغیرات الصحة، فاذا وقع فیه الصیام ازداد فابیح الفطر ابقاء علی الجسد، وکذا القول فی المرض الثانی وهو الحمیة من قوله تعالی ﴿وَلَا تَقْتُلُوا أَنفُسَكُمْ﴾ فانه استنبط منه جواز التیمم عند خوف استعمال الماء البارد، والثالث من قوله تعالی ﴿أَوْ بِهِ أَذًى مِّن رَّأْسِهِ فَفِدْيَةٌ﴾ فانه اشیر بذلک الی جواز حلق**

---

[1]) اوګورئی فتح الباری:۱۰/۱٦۵، عمدة القاری: ۲۱/۲۲۹، وارشاد الساری: ۲۱/٤۰۹)_

[2]) اوګورئی فتح الباری :۱۰/۱٦۵، عمدة القاری:۲۱/۲۲۹، وارشاد الساری: ۲۱/٤۰۹)_

[3])النساء)-

[4])البقرة ۱۹٦)-

الراس الذى منع منه المحرم لاستفراغ الاذى الحاصل من النجار المحتقن فى الراس.[1]

**د حضور ﷺ د علاج قسمونه** علامه ابن القیم رحمه الله په زادا المعاد کښې فرمائی چې حضور ﷺ به کوم علاج کولو د هغې درې قسمونه دی. یو طبعی دوایانو په ذریعه. دویم الهی دوایانو په ذریعه. او دریم د دواړو په ملاوټ سره. د حضور ﷺ د بعثت اصلی مقصد خو خلقو لره د روحانی مرضونو نه پاک کول وو. خو کله به ئې د ضرورت په وخت کښې جسمانی علاج هم کولو.[2]

حضرت شاه ولی الله رحمه په حجة الله البالغة کښې فرمائی چې د حضور ﷺ جسمانی علاج کول د شریعت څه داسې حصه نه ده چې هغه د دعوت او تبلیغ حصه جوړه کړې شی. او په هر کس باندې د هغې تقلید واجب او ضروری وی. نو هغه فرمائی

اعلم ان ما روى عن النبى ﷺ ودون فى كتب الحديث على قسمين :احدهما ما سبيله سبيل تبليغ الرسالة. وفيه قوله تعالى ﴿وَمَآ اٰتٰىكُمُ الرَّسُوْلُ فَخُذُوْهُ وَمَا نَهٰىكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوْا﴾ منه علوم المعاد وعجائب الملوك.. ومنه شرائع وضبط للعبادات. ثانيهما ما ليس من باب تبليغ الرسالة. وفيه قوله صلى عليه وسلم: انما انا بشر. ولاتواخذونى بالظن. ولكن اذا حدثتكم عن الله شيئا فخذوا به. فانى لم اكذب على الله: فمنه الطب ومنه باب قوله صلى الله عليه وسلم: وعليكم بالادهم الاقرح : ومستنده التجربة. منه ما فعله صلى الله عليه وسلم على سبيل العادة. دون العبادة[3]

د حضور ﷺ نه چې کوم علاج او دویانې نقل دی دا د هغه زمانې د تجربو یو حصه وه. او دا ممکن دی چې یو کس هغه استعمال کړی او فائده ورنکړی. خو که څوک د برکت په توګه او ایمانی قوت سره دا نقلی دویانې استعمال کړی نو هغه ته به هرحال کښې شفاء کیږی. علامه ابن الخلدون په مقدمه تاریخ کښې دا خبره په تفصیل سره لیکلې ده[4] په دې باب کښې د علماؤ واقعات هم مشهور دی.

## ١ - باب مَا أَنْزَلَ اللَّهُ دَاءً إِلَّا أَنْزَلَ لَهُ شِفَاءً.

[٥٣٥٤][5] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ الزُّبَيْرِيُّ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ سَعِيدِ بْنِ أَبِي حُسَيْنٍ قَالَ حَدَّثَنِي عَطَاءُ بْنُ أَبِي رَبَاحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «مَا أَنْزَلَ اللَّهُ دَاءً إِلَّا أَنْزَلَ لَهُ شِفَاءً».

---

[1] فتح البارى (١٠/١٢٥)-
[2] زاد المعاد ٤/٢٤)-
[3] انظر حجة البالغة ١/١٢٨)-
[4] مقدمة ابن خلدون (١/٤٩٣) باب ٦، فصل ١٩)-
[5] الحديث اخرجه النسائى فى كتاب الطب، باب امر بالدواء ٤/٣٦٩ رقم الحديث ٧٥٥٤) واخرجه مسلم فى كتاب السلام، باب لكل دواء داء واستحباب التدواى (رقم الحديث ٢٢٠٤) واخرجه الترمذى فى كتاب الطب، باب ما جاء فى الدواء والحث عليه ٤/٣٨٣(رقم الحديث ٢٠٣٨) واخرجه ابوداود فى كتاب الطب، باب ما جاء فى الرجل يتدواى ٤/٣ (رقم الحديث ٣٨٥٥) واخرجه ابن ماجه فى كتاب الطب، باب ما انزل الله داء الا انزل له شفاء ٢/١١٣٨ (رقم الحديث ٣٤٣٨)-

حدیث کښې دی چې الله تعالی داسې یو بیماری نه ده رالیږلې چې د هغې د پاره ئې شفاء نه وی نازله کړې،

**قوله: الا انزل له شفاء:** د نسائی شریف په روایت کښې دی ان الله لم ینزل داء الا انزل الله له شفاء فتداووا [1]

امام بخاری په الادب المفرد کښې د اسامه بن شریک نه روایت نقل کړې دې د هغې الفاظ دی: **تداووا یا عباد الله! فان الله لم یصنع داء الا وضع له شفاء الاداء واحد: الهرم:** [2]

په یو روایت کښې الهرم سره السام اضافه هم شوې ده [3]

په مسلم شریف کښې د جابر رضی الله عنه نه حدیث مرفوع دې: **لکل داء دواء فاذا اصیب دواء الداء برا باذن الله تعالی:** [4]

**د ذکر شوی احادیثو نه مستنبط څو خبرې؟** دې ټولو احادیثو نه معلومه شوه چې الله تعالی دهرې بیمارئی شفاء او د هغې علاج نازل کړې دې، دا بله خبره ده چې بعضې وخت د بعضې بیمارو علاج انسانانو ته معلوم نه وی، نو هغوی داسې بیماری لاعلاج اوګڼی، حالانکه هغه په حقیقت کښې لاعلاجه نه وی. [5]

دغه شان دا هم معلومه شوه چې د علاج نه ضروری نه ده چې انسان دې صحتمند هم شی، د جابر رضی الله عنه په حدیث کښې د باذن الله قید دې، ترڅو چې د الله تعالی خوښه وی، تر هغه وخت پورې د چا دوائی کار نه کوی، [6]

دې احادیثو نه دریمه خبره دا معلومه شوه چې د بیمارئ علاج کول د توکل خلاف نه ده، څنګه چې د لوږې ختمیدو دپاره خوراک، اود تندې ختمیدو د پاره د اوبو استعمال د توکل سره منافی نه ده، دغه شان د مرض د ختمولو د پاره علاج کول هم د توکل منافی نه ده، د جمهورو عالمانو په نیز علاج کول مستحب دی او بهتره ده، [7] بعضې فقهاؤ لیکلې دی چې د فائدې ښکاره کیدو په اعتبار سره د اسبابو درې درجې دی،

① سبب یقینی ② سبب ظنی ③ سبب وهمی،

د سبب یقینی مطلب دا دې چې دې سبب لره اختیارولو باندې نفع او فائده عادة خامخا مرتب کیږی، ددې خلاف نه کیږی، مثلاً د خوراک نه پس مړیدل، د اوبو څکلو نه پس تنده ختمیدل، دغه شان اسباب اختیارول شرعا واجب او ضروری دی، دغه وجه ده که څوک

[1] اخرجه النسائی فی کتاب الطب، باب الامر بالدواء ۳۶۸/۴ (رقم الحدیث ۷۵۵۳)۔
[2] فتح الباری ۱۲۷/۱۰، ارشاد الساری ۴۱۰/۱۲)۔
[3] فتح الباری ۱۲۷/۱۰، ارشاد الساری ۴۱۰/۱۲)۔
[4] مسلم کتاب السلام باب لکل داء دواء واستحباب التداوی (رقم الحدیث ۲۲۰۴)۔
[5] فتح الباری ۱۲۷/۱۰، عمدة القاری ۲۳۰/۲۱، ارشاد الساری ۴۱۰/۱۲)۔
[6] فتح الباری ۱۲۷/۱۰، ارشاد الساری ۴۱۰/۱۲)۔
[7] فتح الباری ۱۲۷/۱۰، ارشاد الساری ۴۱۰/۱۲)

خوراک بند کړي او اوږې کیدو باوجود هم بالکل اونه خوري او د لوږې نه مرګ ورته راشي، نو دا سړې به ګناه ګار وي،
دويمه درجه، سبب ظني ده، ددې نه مراد هغه اسباب دي چې د هغې په اختيارولو باندې اکثر نفع مرتب کيږي، خو کله ددې خلاف هم اوشي، يعني کله د هغې اثر ښکاره نه شي، لکه د علاج نه پس صحت موندل، خو دا ضروري نه ده چې صحت حاصل شي. ځکه چې علاج سبب يقيني نه دې، چې خامخا دې ددې نه فائده واخستلې شي، چونکه انسان د سبب يقيني اختيارولو مکلف دې نه چې د سبب ظني اختيارولو. ځکه به علاج کول په دې درجه کښې به واجب نه وي، که چا علاج اونکړو او مړ شو نو ګناه ګار به نه وي.
وهمي اسباب، يعني د سبب ښکاره کيدو باندې د نتيجې د ښکاره کيدو وهم وي، مثلا تعويذ وغيره، چې د هغې فائدې شکي دي، نو دې لره اختيارول جائز دي.
حضرت مفتي نظام الدين رحمه الله سابق صدر و مفتي دارالعلوم ديوبند ليکي:
پاتې شوه د تداوي علاج مسئله! نو د هغې خو في نفسه مباح کيدو کښې هيڅ کلام نشته، باقي چې په هر کس باندې هر حالت کښې کلية وجوب وي، صحيح نه ده. بلکه په دې کښې تفصيل دې،هغه داچې که مرض سخت او مهلک وي او په علاج باندې قدرت او استطاعت هم وي، نو د حيثيت او استطاعت او د ميسر قدرت مطابق د دنيا عالم اسباب کيدو د وجه نه د شفاء د حاصلولو عقيده صرف په الله باندې ساتلو سره. د حکم شرعي دننه علاج کول واجب کيږي، خو که قدرت ميسره موجود نه وي يا مرض سخت او مړ کونکې نه وي نو د علاج واجب کولو طرف ته حکم نه متوجه کيږي، يا به حکم مؤکد وي يا مستحب او افضل به وي، په مرض کښې د مبتلا شوې سړي او د مذکوره قيودو مطابق يو حکم خو کيدې شي، خو واجب به نه وي،[1]
بعضې شوافعو خو دا واجب ګرځولې دې، هغوی وائي، (تداووا) امر دې، او دا د وجوب دپاره راځي. بهر حال د حضور نه ځوک زيات متوکل کيدې شي، هغوی سيد المتوکلين وو، خو حضور ﷺ به علاج هم کولو، او نور ظاهري اسباب به ئې هم اختيارولو.

## ٢ - باب هَلْ يُدَاوِي الرَّجُلُ الْمَرْأَةَ أَوِ الْمَرْأَةُ الرَّجُلَ.

[٥٣٥٥] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ عَنْ خَالِدِ بْنِ ذَكْوَانَ عَنْ رُبَيِّعَ بِنْتِ مُعَوِّذِ ابْنِ عَفْرَاءَ قَالَتْ كُنَّا نَغْزُو مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - نَسْقِي الْقَوْمَ وَنَخْدُمُهُمْ وَنَرُدُّ الْقَتْلَى وَالْجَرْحَى إِلَى الْمَدِينَةِ.[ر: ٢٧٢٦]

**د سړي او د ښځې يو بل له علاج کولو مسئله:** که ضرورت وي او د فتنې ويره نه وي نو ښځې د سړو او سړي د ښځو علاج کولې شي،
امام بخاري چې کوم روايت ذکر کړې دې، د هغې نه معلوميږي چې ښځې د سړو علاج

[1] منتخبات نظام الفتاوي، ج ١ و ص ٣٥٠، فتاوی نظاميه او ندرويه ص ٤١٤)-

کولې شی، نو سرې هم د ښځو علاج کولې شی، امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې (هل) استفهام ذکر کولو سره دې خبره باندې تنبیه کړې ده چې د دې د پاره څه قانون کلی نشته، کوم ځائې چې د فتنې ویره نه وی، هلته ددې اجازت شته، او کوم ځائې چې د فتنې ویره وی نو بیا ددې گنجائش نشته، ( [1] )

حدیث باب په کتاب الجهاد کښې (باب مداواة النساء الجرحی فی الغزو) لاندې تیر شوې دې، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې په حدیث کښې اگرچې تصریح ده چې ښځې د سړو علاج کولې شی، خو ددې باوجود امام بخاری په جزم سره څه حکم بیان نه کړو، ځکه چې په دې کښې احتمال دا دې چې هغه د پردې د حکم د نازلیدو نه مخکښې واقعه کیدې شی، ( [2] )

## ۳- باب الشِّفَاءُ فِي ثَلاَثٍ

[۵۳۵۶] ( [3] ) حَدَّثَنِي الْحُسَيْنُ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ حَدَّثَنَا مَرْوَانُ بْنُ شُجَاعٍ حَدَّثَنَا سَالِمٌ الأَفْطَسُ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رضی الله عنهما- قَالَ: «الشِّفَاءُ فِي ثَلاَثَةٍ شَرْبَةِ عَسَلٍ، وَشَرْطَةِ مِحْجَمٍ، وَكَيَّةِ نَارٍ، وَأَنْهَى أُمَّتِي عَنِ الْكَيِّ». رَفَعَ الْحَدِيثَ وَرَوَاهُ الْقُمِّيُّ عَنْ لَيْثٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فِي الْعَسَلِ وَالْحَجْمِ.

[۵۳۵۷] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيمِ أَخْبَرَنَا سُرَيْجُ بْنُ يُونُسَ أَبُو الْحَارِثِ حَدَّثَنَا مَرْوَانُ بْنُ شُجَاعٍ عَنْ سَالِمٍ الأَفْطَسِ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «الشِّفَاءُ فِي ثَلاَثَةٍ شَرْطَةِ مِحْجَمٍ، أَوْ شَرْبَةِ عَسَلٍ، أَوْ كَيَّةٍ بِنَارٍ، وَأَنْهَى أُمَّتِي عَنِ الْكَيِّ».

**حسین:** دلته د اولنی حدیث په سند کښې د حسین د والد ذکر نشته، ددې حسین نه څوک مراد دی په دې کښې دوه قوله دی،

① بعضې حضراتو وئیلې دی چې ددې نه حسین بن زیاد مراد دې،( [4] ) دوی د نیسابور وو، او امام بخاری رحمه الله سره یو ځائې نیسابور کښې اوسیدلو، د امام بخاری د وفات نه پس دوی دری دیرش کاله ژوندې وو، ( [5] )د امام مسلم رحمه الله د دوستانو نه وو، امام بخاری ددوی نه دا روایت نقل کړې دې او دې ته (روایة الاصاغر عن الاکابر) وئیلې شی، ( [6] )

---

[1] ) فتح الباری ۱۰/۱۶۷، ارشاد الساری ۱۲/۴۱۰)-

[2] ) فتح الباری ۱۰/۱۲۸)-

[3] ) الحدیث اخرجه النسائی فی کتاب الطب باب الکی ۴/۳۷۸و رقم الحدیث ۷۶۰۳، واخرجه ابن ماجه فی کتاب الطب، باب الکی ۶/۱۱۵۵، رقم الحدیث ۳۴۹۱)-

[4] ) فتح الباری ۱۰۱۶۸ عمدة القاری، ۲۱/۲۳۰، ارشاد الساری ۱۲/۴۱۱)-

[5] )حواله بالا)-

[6] ) فتح الباری ۱۰/ ۱۶۹)-

د حسین بن زیاد رحمه الله په بخاری کښې صرف یو حدیث دې، (۱)

② خو حاکم فرمائی چې حسین بن یحیی بن جعفر بیکندی مراد دې، دده والد یحی بن جعفر نه امام بخاری ډیر احادیث نقل کړې دی، دا حسین هم د امام بخاری نه وړوکې دې، او په صحیح بخاری کښې ددوی صرف یو روایت دې، (۲)

**احمد بن منیع**: احمد بن منیع د امام بخاری د شیوخو د طبقه وسطه نه دې، ددوی کنیت ابوجعفر دې، ۲۴۴ هجرئی کښې ددوی وفات شوې دې، (۳)

په صحیح بخاری کښې ددوی صرف یو حدیث دې، (۴) ائمه جرح وتعدیل ددوی توثیق کړې دې (۵)

**مروان بن شجاع**: د مروان بن شجاع په صحیح بخاری کښې صرف دوه روایتونه دی، یو روایت دا دې، او یو په کتاب الشهادت کښې تیر شوې دې، (۶) امام احمد بن حنبل رحمه الله ددوی توثیق کړې دې، امام ابوحاتم رازی رحمه الله فرمائی **یکتب حدیثه ولیس بالقوی** (۷)

**قوله**: **الشفاء فی ثلاث**: په حدیث باب کښې دی، چې په درې څیزونو کښې شفاء ده، شهد څکل، ښکر لګول، او په اور سره داغ کول، خو څه خپل امت لره د داغ نه منع کوم.

**قوله**: **شرطة محجم**: **شرطة**، **فعلة** په وزن باندې د **شرط** نه دې، **شرط الحاجم**، ښکر لګول، سینګئ لګول، (۸) محجم د میم کسرې سره، هغه آله ته وائی چې په هغې کښې د ښکر وینه جمع کولې شی، دلته د ددې نه هغه اوسپنه مراد ده چې د هغې په ذریعې سره وینه ویستلې شی. (۹)

**په درې څیزونو کښې د شفاء مطلب**: په درې څیزونو کښې د شفاء مطلب دا نه دې چې ددې نه علاوه په بل څیز کښې شفاء نشته، بلکه ددې نه د علاج د حاصلیدو اصول طرف ته اشاره کول مقصود دی. ځکه چې مرضونه یا خو دموی، یا صفراوی یا بلغمی یا سوادی وی، مرض که دموی یعنی د وینې د خرابوالی د وجې نه وی، نو ددې علاج د خرابې وینې ویستولو سره کیږی، او په ښکر لګولو کښې هم خرابه وینه ویستلې شی، او باقی درې صورتونو کښې د مرض علاج په اسهال سره کیږی، او شهد مسهل یا قبض راوستونکې وی، خو په بعضې وختونو کښې فاسده ماده نه په ښکر لګولو سره ویستلې شی نه د اسهال

---

(۱) فتح الباری ۱۰/۱۶۹ عمدة القاری ۲۱/۲۳۱)-

(۲) فتح الباری ۱۰/۱۶۹ عمدة القاری ۲۱/۲۳۱، ارشاد الساری ۱۲/۴۱۱)-

(۳) تهذیب الکمال ۱/۴۹۷ و رقم الترجمة ۱۱۴، تهذیب التهذیب ۱/۸۴-۸۵)-

(۴) فتح الباری ۱۰/۱۶۹، عمدة القاری ۲۱/۲۳۱)-

(۵) فتح الباری ۱۰/۱۶۹)-

(۶) حواله بالا)-

(۷) حواله بالا)-

(۸) فتح الباری ۱۰/۱۷۰، عمدة القاری ۲۱/۲۳۱، ارشاد الساری ۱۲/۴۱۲)-

(۹) فتح الباری ۱۰/۱۷۰، ارشاد الساری ۱۲/۴۱۲، والنهایة لابن الاثیر ۱/۳۴۷ و مجمع بحار الانوار: ۱/۴۶۱)

په ذریعه، نو اور سره هغه ختمولې شي، چې هغه سره دا اوسوزي او ختم شي.[1]

**د داغ لګولو حکم**

**قوله**: وانهى امتي عن الكي: ی بدن لره په اور سره داغ کولو ته وائي، ددې متعلق روایات مختلف دي، په بعضو کښې نهی راغلې ده، او په بعضې راویاتو کښې جواز معلومیږي.

چې په کومو روایاتو کښې نهی راغلې ده، په هغې کښې یو حدیث باب دې، چې په هغې کښې وانهى امتي عن الكي الفاظ دي.

د مسلم شریف په یو روایت کښې دي، وما احب ان اكتوى.[2]

امام ابوداود رحمه الله او امام ترمذی رحمه الله د حضرت عمران بن حصین رضی الله عنه نه روایت نقل کړې دې، په هغې کښې دي، ان رسول الله صلى الله عليه وسلم، نهى عن الكي، قال: فابتلينا، فاكتوينا، فما افلحنا ولا انجحنا.[3]

طبرانی یو روایت په صحیح سند سره نقل کړې دې، په هغې کښې دی، ان النبي نهى عن الكي، وقال: اكره شرب الحميم.[4]

خو په بعضې روایاتو کښې ددې جواز معلومیږي،

دحضرت جابر رضی الله عنه حدیث دې، رمى ابي يوم الاحزاب على اكحلة، فكواه رسول الله صلى عليه وسلم.[5]

د حضرت سعد بن معاذ رضی الله عنه په باره کښې رازي چې حضور صلی الله علیه وسلم د کی «داغ» په ذریعه ددوی علاج اوکړو.[6]

د حضرت ابو طلحه رضی الله عنه حدیث په بخاری کښې رازي چې هغوی د نبی صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې د ذات الجنب بیمارئ کښې د حضرت انس رضی الله عنه علاج په داغ سره کړې وو.[7]

دې نه علاوه نورو صحابو نه هم په داغ سره علاج کولو روایات شته دې.[8]

**په مختلفو روایاتو کښې تطبیق**: د دواړه قسمه روایاتو کښې تعارض ختمولو د پاره محدثینو مختلف توجیهات اختیار فرمائیلې دي:

① احادیث د نهی، په نهی تنزیهی باندې محمول دي، او احادیث د اثبات په اصل جواز

---

[1] فتح الباری ۱۰/ ۱۷۱، عمدة القاری ۲۳۱/۲۱و ارشاد الساری ۱۲/ ٤۱۲)-

[2] الحديث اخرجه مسلم فی كتاب السلام، باب لكل داء دواء واستحباب التداوى (رقم الحديث، ۲۲۰۵)-

[3] الحديث اخرجه الترمذی فی كتاب الطب، باب ما جاء فی كراهية التداوی، بالكی، ۳۸۹/٤، رقم الحديث ۲۰٤۹، واخرجه ابوداود فی كتاب الطب باب فی الكی، ۵/٤، رقم الحديث، ۳۸٦۵)-

[4] مجمع الزوائد ۹۷/۵و قال رجاله رجال الصحيح)-

[5] الحديث اخرجه مسلم فی كتاب السلام، باب لكل داء دواء واستحباب التداوی، رقم الحديث ۲۲۰۷)-

[6] فتح الباری ۱۰/۱۷۰و عمدة القاری ۲۳۱/۲۱)-

[7] الحديث اخرجه البخاری فی كتاب الطب باب ذات الجنب (رقم الحديث ۵۳۸۹، فتح الباری ۱۰/ ۱۷۰)-

[8] فتح الباری ۱۰/۱۷۰، عمدة القاری ۲۱ ۲۳۱)-

باندې، او نهی تنزیهی جواز سره جمع کیدې شی. حضور ﷺ ممانعت ځکه اوفرمائیلو چې په دې کښې مریض ته ډیر تکلیف اوچتول وی، دغه شان ددې نقصان ددې د فائدې نه زیات شی، [1]

(۲) بعضې حضراتو وئیلې دی چې د ممانعت تعلق خطره او تردد سره دې، یعنی که داسې صورت وی چې داغ سره د فائدې د نه یقینی کیدو د وجه نه د نقصان او د ځان د هلاکت ویره او خطره وی نو بیا د داغ لګولو نه پرهیز کول پکار دی، خو که یو طبیب اوښیار د داغ لګولو مشوره ورکړی نو بیا څه حرج نشته، [2]

(۳) د عربو خیال وو چې په داغ سره فاسد ماده یقینی توګه باندې اوزی، او که دا اختیار نه کړې شی، نو هغوی دا هلاکت ګنړلو، نو دغه شان هغوی داغ لګولو لره مؤثر حقیقی ګنړلو، ځکه حضور ﷺ منع اوفرمائیله، نو د ممانعت احادیث هم دې فاسدې عقیدې او په شرک خفی کښې مبتلا کیدو نه د بچ کیدلو د پاره وارد شوې دی.
خو که د چا عقیده داسې نه وی بلکه سبب ظاهری په توګه هغه دا اختیار کړی نوددې ګنجائش شته، او احادیث جواز هم په دې باندې محمول دی [3]
البته حضور ﷺ دا خوښ کړې نه دی، ځکه چې په دې کښې مریض ته ډیر تکلیف رسی، او هغه ته په عذاب کښې مبتلا کیدل وی،

**قوله**: رَوَاهُ الْقُمِّی عَنْ لَیْثٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِیِّ -صلی الله علیه وسلم- فِی الْعَسَلِ وَالْحَجْمِ: قمی (بضم القاف وتشدید المیم المکسورة) دده نوم یعقوب بن عبدالله بن سعد بن مالک بن هانی دې، او ددوی کنیت ابو الحسن دې، (قم) د عراق د یو ښار نوم دې، هم هغې طرف ته دا منسوب دې، [4]
امام نسائی رحمه الله ددې توثیق فرمائی، [5] خو دار قطنی رحمه الله فرمائی لیس بالقوی، [6]
په صحیح بخاری کښې ددوی صرف یو حدیث دې، [7]
یو قمی د شیعه ګانو په نیز مشهور دې، هغه دا نه دې بلکه هغه د ابن بابویه نه معروف دې، نو دغه شان حضرت ګنګوهی رحمه الله فرمائی

**وهذا القمی غیر القمی المعتبر فی الروافض فلا یغرن احدا قول الرفضة ان القمی معتبر، حق انه من رواة البخاری، وفی هامشه، القمی منسوب الی قم بلد بعراق العجم، وماله فی البخاری سوی هذا الموضع، ولیس**

---

[1] فتح الباری ۱۷۰/۱۰، ارشاد الساری ۴۱۲/۱۲)-
[2] فتح الباری ۱۷۳/۱۰ و عمدة القاری ۲۳۳/۲۱ و ارشاد الساری ۴۱۲/۱۲)-
[3] فتح الباری ۱۷۱/۱۰ و عمدة القاری ۲۳۱/۲۱ و ارشاد الساری ۴۱۲/۱۲)-
[4] حواله بالا)-
[5] فتح الباری ۱۷۰/۱۰ عمدة القاری ۲۳۱/۲۱)-
[6] حواله بالا)-
[7] حوالا بالا)-

هو بابن بابويه القمى الرافضى كمازعمه بعض المتاخرين [1]

د قمی دې تعلیق لره مسند بزار کښې موصولا نقل کړې شوې دې، [2]

## ۴- باب الدَّوَاءِ بِالْعَسَلِ

وَقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى (فِيهِ شِفَاءٌ لِلنَّاسِ).

[۵۳۵۸] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ قَالَ أَخْبَرَنِي هِشَامٌ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رضى الله عنها قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم يُعْجِبُهُ الْحَلْوَاءُ وَالْعَسَلُ. [ر: ۴۹۱۸]

شهد کښې الله تعالی د ډیرو بیمارو شفاء ایخودلې ده، امام بخاری په دې باب کښې علاج بالعسل لره بیانوی، د قرآن په آیت کښې (فِيهِ شِفَاءٌ لِلنَّاسِ) فرمائیلې شوې دی، د فیه ضمیر کښې دوه احتماله دی، د جهورو په نیز ددې ضمیر عسل طرف ته راجع دې،

امام بخاری په ترجمة الباب کښې دا ذکر کولو سره د جمهور د قول تائید کړې دې، [3]

دویم احتمال بعضې حضراتو بیان کړې دې چې دا ضمیر قرآن طرف ته راجع دې، خو هغه قول مرجوح دې، [4]

**ایا په شهدو کښې د هرې بیمارئی شفاء ده؟**: په شهد کښې شفاء ده، په دې کښې دوه قول دی:

① دبعضې حضراتو په نیز په شهد کښې شفا کیدل عام نه دی، بعضې مرضونو د پاره دا د شفاء باعث دی، نو په بعضې مرضونو کښې د شهد استعمال نقصان ورکونکې هم دې، ځکه (فِيهِ شِفَاءٌ لِلنَّاسِ) عام نه دې بلکه مخصوص دې، [5]

بیا دې حکم لره په دوه طریقو سره مخصوص کړې شو یو دا چې للناس نه بعض الناس مراد دی، [6] او دویم دا چې شفاء نکره ده او د اثبات په ځائې کښې واقع ده، او نکره چې کله د اثبات په ځائې داخله شی، نو په عموم باندې دلالت کوی [7]

② دویم قول دادې چې د ایت الفاظ عام دی، او واقعی شهد په اصل کښې د ټولو مرضونو د پاره شفاء ده. خو که د څه وجه نه شهد نقصان والا ثابت شی نو ددې اعتبار نشته، [8]

لفظ عسل مذکر او مؤنث دواړه قسمه استعمالیږی، او د عربی په ژبه کښې ددې د سلو نه زیات نومونه دی، [9]

---

[1] )الابواب والتراجم ۲/۱۰۰)-

[2] )فتح الباری ۱۰/۱۷۰و ارشاد الساری ۱۲/۴۱۲و عمدة القاری ۲۱ /۲۳۱))-

[3] )فتح الباری ۱۰/۱۷۲و عمدة القاری (۲۱/۲۳۲، ارشاد الساری ۱۲/۴۱۲)-

[4] )حواله بالا)-

[5] )حواله بالا)-

[6] )حواله بالا)-

[7] )روح المعانی ۸/۱۸۵، (سورة النحل)-

[8] )فتح الباری ۱۰/۱۷۲، عمدة القاری ۲۱/۲۳۲)-

[9] )فتح الباری، ۱۰/۱۷۲)-

د شهدو فائدې: په شهدو کښې ډیرې فائدې دی. حافظ ابن حجر رحمه الله دې فائدو لره تلخیص سره دا شان بیان کړې دی:

يجلو الاوساخ التى فى العروق والامعاء و يدفع الفضلات يغسل خمل المعدة ويسخنها تسخينا معتدلا، ويفتح افواه العروق ويشد المعدة والكبد والكلى والمثانة والمنافذ، وفيه تحليل للرطوبات اكلا وطلاء وتغذية، وفيه حفظ المعجونات واذهاب لكيفية الادوية المستكرهة وتنقية الكبد والصدر، ادرار البول الطمث، ونفع للسعال الكائن من البلغم، ونفع لاصحاب البلغم والامزجة الباردة واذا اضيف اليه الخل نفع اصحاب الصفراء و ثم هو غذاء من الاغذية، ودواء من الادوية، وشرب من الاشربة، وحلوى من الحلاوات، وطلاء من الاطلية و مفرح من المفرحات ومن منافعه.. اذا جعل فيه اللحم الطرى حفظ طراوته ثلاثة اشهر، وكذلك الخيار والقرع والباذنجان والليمون، ونحو ذلك من الفواكه، واذا لطخ به البدن للقمل، قتل القمل، وطول الشعر وحسنه ونعمه و ان اكحل به جلا ظلمة البصر و ان استن به صقل الاسنان وحفظ صحتها... ولم يكن يعول قدماء الاطباء فى الادوية المركبة الا عليه ولا ذكر للسكر فى اكثر كتبهم اصلا.[1]

یعنی شهد د کولمو، رګونو او د بدن اضافی فضلات صفا کوی، رګونه کولاوهی، معده، سینه، ګردو او مثانې ته طاقت ورکوی، ځیګر او سینه صفا کوی. بلغم نه پیدا شوې توخی کښې مفید دی، او بلغمی مزاج والا د پاره فائده ورکونکی دی، شهد خوراک هم دې، دوا هم. په شهد کښې چې غوښه او میوې کیږدې نو درې میاشتو پورې هغه تازه پاتې کیدې شی. په بدن لګولو سره سپګو لره مړه کوی، په ویختو کښې لګولو سره هغه ښکلې او نرم جوړ کړی، په سترګو چې اولګولې شی نو د نظر د پاره بهترین دی، غاښونو لره پرقوی، او دهغې دپاره مفید دی، مخکښینی طبیبانو به مرکب دوایانو کښې شهد لره اعتبار ورکولو.

امام ابن ماجه رحمه الله په سند ضعیف سره د حضرت جابر رضی الله عنه نه یو مرفوع حدیث نقل کړې دې، په هغې کښې دې، من لعق العسل ثلاث غدوات فى كل شهر لم يصبه عظيم بلاء، یعنی کوم سړې چې درې ورځې سحر په وخت کښې شهد استعمال کړی نو هغه به کوم لوئې افت کښې نه مبتلاء کیږی.[2]

د باب اولنی حدیث د عائشه رضی الله عنها نه منقول دې، دا حدیث په کتاب الاطعمة کښې تیر شوې دې، حضور صلی الله علیه وسلم ته حلوا او شهد خوښ وو، علامه کرمانی ددې مناسبت سره بیان کولو سره لیکلې دی: الاعجاب اعم من ان يكون على سبيل الدواء او الغذاء فتوخذ المناسبة بهذه الطريق[3]

[۵۳۵۹][4] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الْغَسِيلِ عَنْ عَاصِمِ بْنِ عُمَرَ بْنِ قَتَادَةَ

---

[1] حوالا بالا)_

[2] الحديث اخرجه ابن ماجه فى كتاب الطب باب العسل رقم الحديث ۳۴۵۰، وفتح البارى ۱۰/۱۷۲)-

[3] شرح بخارى للكرمانى ۲۰/۲۰۷)-

[4] الحديث اخرجه البخارى ايضا فى كتاب الطب و باب الحجامة من الداء ۵/۲۱۵۶و رقم الحديث ۵۳۷۲و اخرجه ايضا فى باب الحجم فى الشقيقة والصداع ۵//۲۱۵۷و رقم الحديث ۵۳۷۵، واخرجه ايضا فى باب من اكتوى او كوى غيره، فضل من لم يكتو، ۵/۲۱۵۷و .... [بقيه حاشيه په راروانه صفحه...

قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَبْنَ عَبْدِاللَّهِ -رضی الله عنهما- قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ «إِنْ كَانَ فِي شَيْءٍ مِنْ أَدْوِيَتِكُمْ -أَوْيَكُونُ فِي شَيْءٍ مِنْ أَدْوِيَتِكُمْ- خَيْرٌ فَفِي شَرْطَةِ مِحْجَمٍ، أَوْشَرْبَةِ عَسَلٍ، أَوْلَذْعَةٍ بِنَارٍ تُوَافِقُ الدَّاءَ، وَمَا أُحِبُّ أَنْ أَكْتَوِيَ».
[۵۳۷۲، ۵۳۷۵، ۵۳۷۷]

**قوله**: عبد الرحمن بن الغسيل: غسيل نه مشهور صحابی حنظله رضی الله عنه مراد دی، کوم چې په جنګ احد کښې شهید شوې وو، او چاته چې فرشتو غسل ورکړې وو، دې وجه نه هغه ته غسیل وئیلې شی، غسیل په معنی د المغسول دې، فعیل د مفعول په معنی کښې رازی، دا د امام بخاری شیخ عبدالرحمن قرنیکه دې، دلته دا قرنیکی طرف ته منسوب دې، نسب نامه داسې ده، عبدالرحمن بن سلیمان بن عبدالرحمن بن عبدالله بن حنظله.[1]
حضرت جابر رضی الله عنه فرمائی چې ما د نبی ﷺ نه دا وئیلو سره اوریدلې دی، که ستاسو په دوایانو کښې که د چا خیر وی نو هغه په ښکر لګولو، یا شهد څکولو یا په اور سره داغ لګولو کښې دې، اوهرکله چې دا داغ د بیماریٔ مطابق راشی، خوبیا هم زه داغ لګول نه خوښوم.

**قوله**: ان کان فی شئ من ادویتکم اویکون فی شئ من ادویتکم: راوی ته په دواړو جملو کښې شک دې، ځکه ئې (او) راوړې دې، علامه ابن التین رحمه الله فرمائی چې (اویکن) پکار وو، ځکه چې دا معطوف علی المجزوم دې، ددې عطف په (کان) باندې دې، او په (کان) باندې (ان) حرف شرط داخل دې، کوم چې فعل ته جزم ورکوی[2] نو مسند احمد په یو روایت کښې ان کان... ان یکن دې.[3]
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې کیدې شی راوی د (یکن) د کاف په ضمه کښې اشباع اوکړه، او هغه ئې راخکلو نو اوریدونکی (یکن) لره (یکون) اوګڼړلو.[4]

**قوله**: اولذغة بنار: لذغ (د ذال سکون سره) لږ شان سوزیدو ته وائی، مولانا انور شاه کشمیری رحمه الله په فیض الباری کښې ددې ترجمه په (سوزیدو) سره کړې ده، [5] مراد ددې نه داغ لګول دی، [6]

...بقیه ازحاشیه گذشته] رقم الحدیث، ۵۳۷۷، اوخرجه مسلم فی کتاب السلام، باب لکل داء دواء واستحباب التدوای رقم الحدیث ۲۲۰۵، واخرجه الترمذی فی کتاب الطب باب ما جاء فی الحجامة ۳۹۱/٤ و رقم الحدیث ۲۰۵۳..واخرجه النسائی فی کتاب الطب باب الکی، ۳۷۸/٤ و رقم الحدیث ۷۶۰۳، واخرجه ابن ماجه فی کتاب الطب و باب الحجامة ۱۱۵۱/۲ و رقم الحدیث ۳٤۷۶)_
[1] فتح الباری ۱۷۳/۱۰ و عمدة القاری ۲۳۳/۲۱)_
[2] حواله بالا)-
[3] فتح الباری ۱۷۳/۱۰ و ارشاد الساری ٤۱۵/۱۲)-
[4] فتح الباری ۱۷۳/۱۰ و عمدة القاری ۲۳۳/۲۱ و ارشاد الساری ٤۱۵/۱۲)-
[5] فتح الباری ۱۷۳/۱۰ عمدة القاری ۲۳۳/۲۱، ارشاد الساری ٤۱۵/۱۲)-
[6] فتح الباری ۱۷۳/۱۰، عمدة القاری ۲۳۳/۲۱)-

**قوله**: توافق الداء: دا د لذغة صفت دی، داسې داغ لګول چې د بیمارئ مطابق او مناسب وی، نو په دې کښې شفاء ده، په دې کښې دې خبرې ته اشاره ده چې داور په ذریعه داغ لګول د تجربه په توګه نه وی بلکه د یو ماهر ډاکټر په ذریعې سره داسې داغ کوم چې د مرض مناسب وی نو په هغې کښې شفاء ده، (۱)

[۵۳۶۰] (۲) حَدَّثَنَا عَيَّاشُ بْنُ الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الأَعْلَى حَدَّثَنَا سَعِيدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَبِي الْمُتَوَكِّلِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ أَنَّ رَجُلاً أَتَى النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ أَخِي يَشْتَكِي بَطْنَهُ. فَقَالَ «اسْقِهِ عَسَلاً». ثُمَّ أَتَى الثَّانِيَةَ فَقَالَ «اسْقِهِ عَسَلاً». ثُمَّ أَتَاهُ فَقَالَ فَعَلْتُ. فَقَالَ «صَدَقَ اللَّهُ، وَكَذَبَ بَطْنُ أَخِيكَ، اسْقِهِ عَسَلاً». فَسَقَاهُ فَبَرَأَ. [۵۳۸۶]

حضرت ابو سعید خدری رضی الله عنه فرمائی چې یو کس د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو، او وے وئیل چې زما رور ته د خیټې تکلیف دې، حضور ﷺ اوفرمائیل چې شهد پرې اوڅکه، بیا دوباره راغلو، نو حضور ﷺ اوفرمائیل چې شهد پرې اوڅکوه، بیا دریم ځل راغلو او وے وئیل چې ما پرې اوڅکل، (خو فائده اونه شوه) حضور ﷺ اوفرمائیل چې الله تعالی رشتوني دې او ستا د رور خیټه دروغژنه ده، هغه باندې شهد اوڅکوه. بیا هغه پرې شهد اوڅکل نو هغه ته صحت میلاؤ شو.

**یو اشکال او د هغې جوابونه**: ددې حدیث څه تفصیل مخکښې باب دواء المبطلون کښې راغې، بعضې خلقو ته شک شوې دې چې شهد خو مسهل وی، او دلته چې کوم کس ته د خیټې تکلیف وو، په روایت کښې تصریح مخکښې راغې، چې هغه ته اسهال وو، نو دا کس د پاره د شهدو څنګه مشوره کیدې شی.؟

① یو جواب خو دا ورکړې شوې دې، چې حضور ﷺ ته د وحی په ذریعه معلومه شوې وه چې دې کس ته به د شهد په ذریعه شفاء میلاویږی، ځکه د اسهال باوجود هم حضور ﷺ د شهد ورڅکلولو حکم ورکوو، لهذا د طب عام اصولو نه علاوه دا یوه مخصوص معامله وه، چې شهد سره عموما په اسهال کښې اضافه کیږی. د حضور ﷺ معجزې او د دعا برکت سره هم هغه شهد د هغه د پاره د صحت ذریعه جوړه شوه، او هغه بالکل صحیح شو، (۳)

② دویم جواب دا ورکړې شو چې اسهال څنګه د بدهضمی د وجه نه رازی دغه شان په خیټه کښې فاسده ماده جمع کیدو د وجه هم رازی، په داسې صورت کښې دې مادې لره د خیټې

---

(۱) فتح الباری ۱۷۳/۱۰، عمدة القاری ۲۳۳/۲۱)-

(۲) الحدیث اخرجه البخاری ایضا فی کتاب الطب باب دواء المبطون ۲۱۶۱۵ رقم الحدیث ۵۳۸۶، واخرجه مسلم فی کتاب السلام باب التداوی بسقی العسل، رقم الحدیث ۲۲۱۷، واخرجه الترمذی فی کتاب الطب و باب ما جاء فی التداوی بالعسل، ۴۰۹/۴ و رقم الحدیث ۲۰۸۲، واخرجه النسائی فی کتاب الطب، باب الدواء بالعسل ۳۷۰/۴، رقم الحدیث ۷۵۶۰)-

(۳) فتح الباری ۲۰۹/۱۰ عمدة القاری ۲۳۲/۲۱)_

نه ویستل ضروری وی، او د هغې بهترین علاج شهد دې. دا ذکر شوې سړې هم دا قسم بیمار وو، ځکه حضور ﷺ هغه ته د شهد حکم ورکولو. تردې چې کله د هغه معده صفا شوه نو هغه صحت یاب شو، د حضور ﷺ هغه ته د شهد څکلو حکم ورکول بالکل د طب د اصولو مطابق وو. (۱) والله اعلم

**قوله**: صدق الله وكذب بطن اخيك: الله تعالى رشتيا وائى چې (فيه شفاء للناس) ستا د رور خيټه غلط وائى يعنى ښكاره كوى چې مرض زياتيږى خو په حقيقت كښې دې ته شفا حاصلږى.

## ۵- باب الدَّوَاءِ بِأَلْبَانِ الإِبِلِ

[۵۳۶۱] حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا سَلاَّمُ بْنُ مِسْكِينٍ حَدَّثَنَا ثَابِتٌ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ نَاسًا كَانَ بِهِمْ سَقَمٌ قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ آوِنَا وَأَطْعِمْنَا فَلَمَّا صَحُّوا قَالُوا إِنَّ الْمَدِينَةَ وَخِمَةٌ. فَأَنْزَلَهُمُ الْحَرَّةَ فِي ذَوْدٍ لَهُ فَقَالَ «اشْرَبُوا أَلْبَانَهَا». فَلَمَّا صَحُّوا قَتَلُوا رَاعِيَ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- وَاسْتَاقُوا ذَوْدَهُ، فَبَعَثَ فِي آثَارِهِمْ، فَقَطَعَ أَيْدِيَهُمْ وَأَرْجُلَهُمْ، وَسَمَرَ أَعْيُنَهُمْ، فَرَأَيْتُ الرَّجُلَ مِنْهُمْ يَكْدُمُ الأَرْضَ بِلِسَانِهِ حَتَّى يَمُوتَ.

قَالَ سَلاَّمٌ فَبَلَغَنِي أَنَّ الْحَجَّاجَ قَالَ لأَنَسٍ حَدِّثْنِي بِأَشَدِّ عُقُوبَةٍ عَاقَبَهُ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- فَحَدَّثَهُ بِهَذَا. فَبَلَغَ الْحَسَنَ فَقَالَ وَدِدْتُ أَنَّهُ لَمْ يُحَدِّثْهُ. [ر: ۲۳۱]

د اوښې پئ د دوائى په توګه استعمالولې شى، ځنګه چې د عرينين په واقعه كښې حضور ﷺ ددې د استعمالولو فرمائيلې وو.

د عرينيينو واقعه ددې نه مخكښې څو ځل ذكر شوې ده.. ذود: اوښانو ته وائى، ابن سعد ددې اوښانو تعداد پنځلس نقل كړې دې. (۲)

**قوله**: قَالَ سَلاَّمٌ فَبَلَغَنِي أَنَّ الْحَجَّاجَ قَالَ لأَنَسٍ حَدِّثْنِي بِأَشَدِّ عُقُوبَةٍ عَاقَبَهُ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم فَحَدَّثَهُ بِهَذَا. فَبَلَغَ الْحَسَنَ فَقَالَ وَدِدْتُ أَنَّهُ لَمْ يُحَدِّثْهُ: د سلام نه سلام بن مسكين ازدى مراد دې، په صحيح بخارى كښې ددوى صرف دوه حديثونه دى، يودا، او يو ددې نه مخكښې كتاب الادب كښې راغى (۳)

دا د ماقبل سند موصول دې، فرمائى چې مشهور ظالم حجاج بن يوسف د حضرت انس رضي الله عنه نه تپوس اوكړو چې حضور ﷺ چاته د سختو نه سخته سزا وركړې وى هغه ماته بيان كړه، حضرت انس رضي الله عنه ورته د عرينيينو قصه بيان كړه.

(۱) عمدة القارى ۲۱/۲۳۲)
(۲) فتح البارى ۱۰/۱۷۴)-
(۳) فتح البارى ۱۰/۱۷۳)-

حسن بصری رحمه الله ته چې کله دا معلومه شوه نو وئې فرمائیل چې زه دا غواړم چې حضرت انس رضی الله عنه دا حدیث حجاج بن یوسف ته نه وو بیان کړې، ځکه چې هغه به د خپل ظلم د پاره په غلط استدلال کولو سره جواز ګوری،

دغه شان د بهز په روایت کښې (فوالله ما انتهی الحجاج حتی قام بها علی المنبر فقال: حدثنا انس.. فذكره وقال، (قطع النبی صلی الله علیه وسلم الایدی والارجل، وسمل الاعین فی معصیة الله، افلا نفعل نحن ذلک فی معصیة الله.) [1]

حضرت انس رضی الله عنه به فرمائیل ماندمت علی شیئ ماندمت علی حدیث حدثت به الحجاج. ([2]) یعنی ماته څومره پښیمانتیا حجاج ته په حدیث رسولو باندې ملاوشوه دومره په بل څیز نه ده میلاؤشوې.

حضرت انس رضی الله عنه ځکه روستو پښیمانه شو چې حجاج به ددې واقعې نه په خپل ظلم او ستم په جواز باندې استدلال کولو.

## ۶- بَاب الدَّوَاءِ بِأَبْوَالِ الإِبِلِ

[۵۳۶۲] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ -رضی الله عنه- أَنَّ نَاسًا اجْتَوَوْا فِي الْمَدِينَةِ فَأَمَرَهُمُ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - أَنْ يَلْحَقُوا بِرَاعِيهِ - يَعْنِي الإِبِلَ - فَيَشْرَبُوا مِنْ أَلْبَانِهَا وَأَبْوَالِهَا، فَلَحِقُوا بِرَاعِيهِ فَشَرِبُوا مِنْ أَلْبَانِهَا وَأَبْوَالِهَا، حَتَّى صَلَحَتْ أَبْدَانُهُمْ فَقَتَلُوا الرَّاعِيَ وَسَاقُوا الإِبِلَ، فَبَلَغَ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - فَبَعَثَ فِي طَلَبِهِمْ، فَجِيءَ بِهِمْ فَقَطَعَ أَيْدِيَهُمْ وَأَرْجُلَهُمْ، وَسَمَرَ أَعْيُنَهُمْ.

قَالَ قَتَادَةُ فَحَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ سِيرِينَ أَنَّ ذَلِكَ كَانَ قَبْلَ أَنْ تَنْزِلَ الْحُدُودُ. [ر: ۲۳۱]

**په حرام څیزونو باندې د علاج کولو مسئله:** د ضرورت په وخت د حرامو او پلیت څیزونو په ذریعه سره علاج کیدې شی، یا نه؟ په دې کښې د حضراتو فقهاؤ اختلاف دې.

① د حضرات مالکیه او حنابله په نیز په حرامو سره علاج کول مطلقا ناجائز دی. ([3])

② حضرات شافعیه په نیز تدواوی بالنجاسات او تداوی بالمحرمات جائز دی، خوشرط دا دې چې هغه نشه ور نه وی، علامه نووی شافعی رحمه الله فرمائی:

مذهبنا جواز التداوی بجمیع النجاسات، سوی المسکر ([4])

③ حضرات حنفیه په نیز باندې درې قوله دی، د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز باندې تداوی بالمحرمات ناجائز دی، ([5])

[1] فتح الباری ۱۰/۱۷۵، ارشاد الساری ۱۲/۴۱۷)-
[2] فتح الباری ۱۰/۱۷۵)-
[3] المغنی لابن قدامة، کتاب الاطعمة، ۱۱/۸۳، والشرح الکبیر ۱۱/۱۰۸، والتاج والاکلیل ۳/۲۳۳)-
[4] المجموع شرح المهذب ۹/۹۲)-
[5] المبسوط للسرخسی، کتاب الطهارة، باب الوضوء والغسل، ۱/۵۴)-

امام ابو يوسف رحمه الله په نيز باندې تداوى بالمحرمات مطلقا ناجائز دى، (١)
نورو مشائخو احنافو په نيز تداوى بالمحرمات والنجاسات هغه وخت جائز دې چې كله اوښيار طبيب ته ددې نه علاوه بل څه لاره معلومه نه وى، (٢)دغه شان د احنافو په نيز درې قوله دى، يو مطلقا د عدم جواز، دويم مطلقا د جواز او دريم قول په مخصوص صورت كښې د جواز، اكثر مشائخ حنفيه په دې دريم قول باندې فتوى وركړې ده.(٣)
كوم فقهاء چې تداوى بالمحرمات ته جائز وائى هغوى د لاندېنى احاديثو نه استدلال كوى.
① امام ابوداود رحمه الله په كتاب الطب كښې د حضرت ابو الدرداء رضي الله عنه نه روايت نقل كړې دې، چې (قال رسول الله صلى الله عليه وسلم ان الله انزل الداء والدواء وجعل لكل داء دواء، فتداووا، ولا تتداووا بحرام.(٤)
② د سنن ابى داود په يو بل روايت كښې دى ان طبيباً سال النبى صلى الله عليه وسلم عن ضفدع يجعلها فى دواء فنهاه النبى صلى الله عليه وسلم عن قتلها.(٥) حضور صلى الله عليه وسلم چينډخ لره قتل كولو سره او دوائى كښې اچولو نه منع اوكړه او وئې فرمائيل چې هغه نجس دې.
③ سنن ابى داود، ابن ماجه او د سنن درمى راوايت دې چې يو كس د نبى صلى الله عليه وسلم نه د شرابو باره كښې تپوس اوكړو نو نبى صلى الله عليه وسلم هغه دې نه منع كړو، هغه اووئيل چې يا نبى الله انها دواء، نو نبى صلى الله عليه وسلم ا وفرمائيل چې لا انها داء (٦)
④ امام طحاوى رحمه الله روايت نقل كړې دې، كوم چې امام بخارى كتاب الاشربة كښې تعليقا نقل كړې دې. د هغې الفاظ دى (ان الله لم يجعل شفاء كم فيما حرم عليكم) (٧)
⑤ په موارد الظمان كښې د حضرت ام سلمه رضي الله عنها روايت دې چې حضور صلى الله عليه وسلم هغوى ته اوفرمائيل (ان الله لم يجعل شفاء كم فى حرام) (٨)
خو چې كوم حضرات ددې د جواز قائل دى هغوى دا احاديث په حالت اختيار باندې محمول كوى، يعنى چې كله د مرض او د بيمارئ بل علاج موجود وى نو په داسې صورت كښې تداوى بالنجاسات صحيح نه دې، خو كه بل علاج نه وى نو بيا تدواوى بالمحرمات جائز كيدل پكار دى. لان الضرورة تبيح المحظورة(٩)

---

(١) البحر الرائق. ١١٥/١)-
(٢) البحر الرائق ١١٦/١ و بذل المجهود ١٩٩/١٦)-
(٣) البحر الرائق ١١٦/١)-
(٤) الحديث اخرجه ابوداود فى كتاب الطب، باب فى الادوية المكروهة، ٦/٤، رقم الحديث ٣٨٧٤)-
(٥) حواله بالا)-
(٦) حواله بالا)- واخرجه ابن ماجة فى كتاب الطب باب النهى ان يتداوى بالخمر، رقم الحديث ٣٥٠٠)_
(٧) الحديث اخرجه الطحاوى فى كتاب الطهارة، باب حكم بول ما يؤكل لحمه، ٨٣/١)-
(٨) الحديث اخرجه الهيثمى فى موارد الظمان و كتاب الطب، باب التداوى بالحرام ٣٣٩ و رقم الحديث ١٣٩٧)
(٩) عمدة القارى ٢٩٠/١، وفيض البارى ٣٢٩/١ و بذل المجهود ١٩٩/١٦، معارف السنن ٢٧٨/١، وامانى الاحبار ٣٢٩/٢)-

## ۷- باب الحَبَّةِ السَّوْدَاءِ

[۵۳۶۳] (۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ خَالِدِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ خَرَجْنَا وَمَعَنَا غَالِبُ بْنُ أَبْجَرَ فَمَرِضَ فِي الطَّرِيقِ، فَقَدِمْنَا الْمَدِينَةَ وَهُوَ مَرِيضٌ، فَعَادَهُ ابْنُ أَبِي عَتِيقٍ فَقَالَ لَنَا عَلَيْكُمْ بِهَذِهِ الْحُبَيْبَةِ السَّوْدَاءِ، فَخُذُوا مِنْهَا خَمْسًا أَوْ سَبْعًا فَاسْحَقُوهَا، ثُمَّ اقْطُرُوهَا فِي أَنْفِهِ بِقَطَرَاتِ زَيْتٍ فِي هَذَا الْجَانِبِ وَفِي هَذَا الْجَانِبِ، فَإِنَّ عَائِشَةَ حَدَّثَتْنِي أَنَّهَا سَمِعَتِ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ «إِنَّ هَذِهِ الْحَبَّةَ السَّوْدَاءَ شِفَاءٌ مِنْ كُلِّ دَاءٍ إِلاَّ مِنَ السَّامِ». قُلْتُ وَمَا السَّامُ قَالَ الْمَوْتُ.

[۵۳۶۴] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبُو سَلَمَةَ وَسَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ أَخْبَرَهُمَا أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ «فِي الْحَبَّةِ السَّوْدَاءِ شِفَاءٌ مِنْ كُلِّ دَاءٍ إِلاَّ السَّامَ».

قَالَ ابْنُ شِهَابٍ وَالسَّامُ الْمَوْتُ، وَالْحَبَّةُ السَّوْدَاءُ الشُّونِيزُ.

**د. کلونجي فائدې:** حديث باب دلته امام بخاری په اول ځل نقل کړې دې، حضرت خالد بن مسعود رضي الله عنه فرمائی چې مونږ خلق روان وو مونږ سره غالب بن ابجر هم وو، هغوی په لاره کښې بيمار شول، مونږ مدينې ته اورسيدو او هغه هم هغه شان بيمار وو، ابن ابی عتيق د هغوی د عيادت د پاره راغلو، نو مونږ ته ئې اووئيل چې تاسو ده ته دا ورې تورې دانې د کلونجی استعمال کړئ، ددې پنځه يا اووه دانې واخلئ او ذره ذره ئې کړئ، بيا د روغن څو قطرو سره د پوزې يو طرف او بل طرف ته واچوئ، ځکه چې حضرت عائشه رضي الله عنها ماته بيان کړې دی چې هغوی حضور صلى الله عليه وسلم دا واوريدل چې دا تورې دانې (کلونجی) سوا د سام نه د ټولو مرضونو علاج دې، ما تپوس اوکړو چې سام څه دې؟ حضور صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چې مرګ.
دويم روايت د حضرت ابوهريره رضي الله عنه دې، چې حضور صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چې کلونجی د ټولو بيمارو علاج دې، سوا د سام يعنی د مرګ نه.
علامه طيبی رحمه الله فرمائی چې اګرچې د حديث مفهوم عام دې خو خاص توګه باندې په هغه بيمارو کښې فائده مند دې کوم چې د رطوبت او بلغم نه پيدا کيږی، ځکه چې د کلونجی تاثير اوچ او ګرم وی، نو ځکه هغه مرضونو لره ختموی کوم چې ددې ضد دی.
بعضې عالمان فرمائی چې کلونجی د ټولو بيمارو د پاره مفيد ده، په بعضې مرضونو کښې ځان له، او بعضې مرضونو کښې مرکب. په داسې طريقه چې دا بلې دوائی سره په يو خاص

(۱) الحديث اخرجه مسلم فی کتاب السلام باب التداوی بالحبة السوداء (رقم الحديث ۲۲۱۵، واخرجه الترمذی فی کتاب الطب، باب ما جاء فی الحبة السود، ۳۸۵/۴و رقم الحديث ۲۰۴۱)واخرجه النسائی فی کتاب الطب و باب الدواء بالسوداء، ۳۷۳/۴و رقم الحديث،۷۵۷۸، واخرجه ابن ماجه فی کتاب الطب و باب الحبة السوداء ۱۱۴۱/۲، رقم الحديث ۳۴۴۷)-

مقدار او مناسب ترکیب سره واچولې شي. نو ددې صحت بخش اثرات ښکاره کيږي.[۱]
صاحب سفر السعادة ليکلي دي چې د اکابر او مشائخو معمول وو چې هغوی به په ټولو مرضونو کښې کلونجي د دوائي په توګه استعمالوله.[۲]
حکيم ابن سيناء، د طب مشهور کتاب (القانون) کښې د کلونجي فائدې ليکلي دي. چې دا بلغم ختموي، د خيټې باد د پاره مفيد دی، په بدن باندې راوتونکې دانې او پرګې مرض ختموي، د سر درد د پاره هم مفيد ده. چې په سرکه کښې واچولې شي او په بله ورځ هغه بوکړې شي نو د سردرد ورسره ختميږي، د غاښونو په درد کښې هم مفيد دې،[۳]
نن زمانې طبيبانو ا د بلډپريشر د پاره هم مفيد ګرځولې ده،[۴]

**د رجال سند وضاحت:** د اول روايت په سند کښې د امام بخاري شيخ الشيخ عبيد الله دې، ددوی د والد نوم ئې ذکر نه کړو، ددې نه عبدالله بن موسی مراد دې، کوم چې مشهور راوی دې و او د کوفه اوسيدونکې دې،[۵]
اولنې روايت د خالد بن سعد نه دې، د دوی په صحيح بخاري کښې صرف يو حديث دې، ابن حبان دوی په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دی، امام نسائي او ابن ماجه هم ددوی نه روايات نقل کړې دی، يحيي بن معين، علامه ذهبي اوحافظ ابن حجر ددوی توثيق کړې دې،[۶]
غالب ابن ابجر صحابي دې، ابجر د احمد په وزن باندې دې، د غالب ابن ابجر تفصيلي حالات نه ميلاويږي. علامه مزي رحمه الله په تهذيب الکمال کښې ليکلي دی، چې ددوی نه صرف دوه حديثونه منقول دی، د حمراهليه په باره کښې ددوی يو حديث مشهور دې، چې د هغې الفاظ دی. **قلت يا رسول الله: لم يبق من مالي ما اطعمه اهلي الاحمري. فقال: اطعمه اهلک من سمين مالک.:** علامه ابن عبد البر په الاستيعاب، حافظ ابن حجر په الاصابة، او علامه ابن اثير په اسد الغابة کښې ددوی تذکره کړې ده، په صحيح بخاري کښې صرف دا يو ځائې د هغوی ذکر دې. امام ابوداود رحمه الله ددوی د حمر والا حديث نقل کړې دې،[۷]

**قوله: فعادہ ابن ابي عتيق:** د ابن ابي عتيق نوم عبدالله دې، دا د حضرت ابوبکر رضي الله عنه

---

[۱])مظاهر الحق شرح مشکوة، کتاب الطب، ٢٥٩/٤)-
[۲])شرح الطيبي شرح مشکاة المصابيح کتاب الطب و ٢٩٧و وفتح الباري ١٧٨/١٠)-
[۳])القانون لابن سيناء ٤٣٧/١)-
[۴])الطب والعلم الحديث ٢٦٥/٣)-
[۵])فتح الباري ١٧٧/١٠و عمدة القاري ٢٣٦/٢١، ارشاد الساري ٤١٧/١٢)-
[۶])فتح الباري ١٧٧/١٠و عمدة القاري ٢٣٦/٢١، ددوی د حالاتو د پاره مطالعه اوکئی تهذيب الکمال ٧٩/٨-٩٠، رقم الترجمة ١٦١٦و واسماء الدار القطني و الترجمة، ٢٧٠و وتهذيب التهذيب ٩٤/٣، ومقدمة الفتح ٣٩٨، وديوان الضعفاء الترجمة ١٢١٥)-
[۷])تهذيب الکمال ٨٢/٢٣و رقم الترجمة ٤٦٧٦) والاصابة ٣/الترجمة ٦٩٠٢و واسد الغابة ١٦٧/٤، والاستيعاب لابن عبدالبر، ١٢٥٢/٣، معجم الطبراني الکبير ٢٦٥/١٨، موثقات ابن حبان ٣٢٧/٣)-

كروسې وو، ددوى والد محمد بن عبد الرحمن بن ابى بكر صديق دې.[1]

**قوله: الحبة السوداء: الشونيز:** حافظ ابن حجر فرمائى چې په هغه زمانه كښې شونيز زيات مشهور وو، ځكه د حبة سودا تفسير په شونيز سره اوشو، خو اوس (حبة سودا) زيات مشهور دې، او شونيز غير معروف دې.[2]

## ۸- باب التَّلْبِينَةِ لِلْمَرِيضِ

[۵۳۶۵] حَدَّثَنَا حِبَّانُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا يُونُسُ بْنُ يَزِيدَ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ - رضى الله عنها - أَنَّهَا كَانَتْ تَأْمُرُ بِالتَّلْبِينِ لِلْمَرِيضِ وَلِلْمَحْزُونِ عَلَى الْهَالِكِ، وَكَانَتْ تَقُولُ إِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ «إِنَّ التَّلْبِينَةَ تُجِمُّ فُؤَادَ الْمَرِيضِ، وَتَذْهَبُ بِبَعْضِ الْحُزْنِ».

[۵۳۶۶] حَدَّثَنَا فَرْوَةُ بْنُ أَبِي الْمَغْرَاءِ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّهَا كَانَتْ تَأْمُرُ بِالتَّلْبِينَةِ وَتَقُولُ هُوَ الْبَغِيضُ النَّافِعُ. [ر: ۵۱۰۱]

تلبينه، د پيو شهد، جوار يا د غنمو نه جوړيږى، حضرت عائشه رضي الله عنها به د مريض د پاره او د مړى باندې خفا كيدونكې كس د پاره د تلبينه جوړولو حكم وركولو، او فرمائيل به ئې چې ما د رسول الله نه اوريدلي دى چې تلبينه د مريض زړه ته ارام رسوى، او غم لرې كوى.

دلته په حديث باب كښې دى. **تجم فؤاد المريض:** د مريض زړه ته راحت رسوى. **اجم اجماماً** معنى راحت رسول. د كتاب الاطعمة په روايت كښې دى. **فانها مجمة.**[3]

د مسند احمد او سنن ابن ماجه په روايت كښې دى. **عليكم بالبغيض النافع: التلبينة يعنى الحساء**[4]

او د نسائى په روايت كښې دى **والذى نفس محمد بيده انها تغسل بطن احدكم كما يغسل احدكم الوسخ عن وجهه بالماء**[5]

او د سنن ترمذى په روايت كښې دى، **كان رسول الله صلى الله عليه وسلم اذا اخذ اهله الوعک امر بالحساء فصنع و ثم امرهم، فحسوا منه، ثم قال: انه يرتو فؤاد الحزين ويسرو عن فؤاد السقيم كما تسروا احدا كن الوسخ عن وجهها بالماء.**[6]

---

[1] فتح البارى ۱۰/۱۷۷ و عمدة القارى ۲۱/۲۳۶، ارشاد السارى، ۱۲/۴۱۷)-

[2] فتح البارى ۱۰/۱۷۹ و عمدة القارى ۲۱/۲۳۷)-

[3] الحديث اخرجه البخارى فى كتاب الاطعمة باب التلبينة، رقم الحديث ۵۱۰۱)-

[4] الحديث اخرجه البخارى فى كتاب الاطعمة، باب التلبينة، ۲/۱۴۰ و رقم الترجمة ۳۴۴۶)-

[5] الحديث اخرجه البخارى فى كتاب الاطعمة، باب التلبينة ۴/۳۷۲، رقم الحديث ۷۵۷۶)-

[6] الحديث اخرجه الترمذى فى كتاب الطب، باب ما جاء فيما يطعم المريض ۴/۳۸۳ و رقم الحديث ۲۰۳۹)

**قوله**: وتقول : هو البغیض النافع: بغیض بروزن عظیم، بغض نه دې، فعیل په معنی د مفعول دې، یعني بیمار دې لره نه خوښه وي، خو هغه بیمار ته فائده رسونکې دې، د مریض طبیعت د پیو وغیره او نور د نرمو خوراکونو نه موړ شي، تلبینه هم هغه په شوق سره نه خوري، خو دا د هغه د پاره مفید ده. ځکه دې ته بغیض النافع وئیلې شوی دی.

# ۹ - بَاب السَّعُوطِ

[۵۳۶۷] حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ أَسَدٍ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنِ ابْنِ طَاوُسٍ عَنْ أَبِيهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضی الله عنهما عَنِ النَّبِيِّ صلی الله علیه وسلم احْتَجَمَ وَأَعْطَى الْحَجَّامَ أَجْرَهُ وَاسْتَعَطَ. [ر: ۱۹۹۷]

سعوط (د سین زبر سره، په وزن د صبور) هغه دوائی ته وائی کومه چې په پوزه کښې اچولې شي، سعط باب فتح او نصر دواړو نه رازي. سعطه الدواء : د مریض په پوزه کښې دوائی اچولو ته وائي.

په حدیث باب کښې دی چې حضور ﷺ ښکر اولګولو. او ښکر لګونکي ته ئې اجرت ورکړو، او په پوزه کښې دوائی واچوله،

علامه قسطلانی رحمه الله د استعط ترجمه کولو سره لیکي: استعط: استعمل السعوط بأن استلقى على ظهره، و جعل بين كتفيه ما يرفعهما، لينحدر راسه الشريف، وقطر في انفه ما تداوى به، ليصل الى دماغه، ليخرج ما فيه من الداء بالعطاس [1]

یعنی په پوزه کښې اچولو والا دوائی هغوی داسې استعمال کړه چې هغوی نیغ سملاستل، د دواړو اوګو په مینځ کښې داسې څیز کیخودلو چې هغې سره هغه اوچت شو، او بیا سر مبارک ئې زمکې طرف ته ښکته کړو، بیا پوزه کښې دماغ ته رسولو د پاره دوائی واچوله، چې د پرنجی په ذریعه د بیمارئ جراثیم اوځي.

دا حدیث په کتاب الاجارة کښې باب خراج الحجام لاندې تیر شوې دې، [2].

# ۱۰ - بَاب السَّعُوطِ بِالْقُسْطِ الْهِنْدِيِّ الْبَحْرِيِّ

وَهُوَ الْكُسْتُ مِثْلُ الْكَافُورِ، وَالْقَافُورِ مِثْلُ كُشِطَتْ وَقُشِطَتْ نُزِعَتْ، وَقَرَأَ عَبْدُ اللَّهِ قُشِطَتْ.

[۵۳۶۸] [3] حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ أَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ قَالَ سَمِعْتُ الزُّهْرِيَّ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ أُمِّ قَيْسٍ بِنْتِ مِحْصَنٍ قَالَتْ سَمِعْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ «عَلَيْكُمْ بِهَذَا الْعُودِ الْهِنْدِيِّ، فَإِنَّ فِيهِ سَبْعَةَ أَشْفِيَةٍ. يُسْتَعَطُ بِهِ مِنَ الْعُذْرَةِ، وَيُلَدُّ بِهِ مِنْ ذَاتِ الْجَنْبِ».

---

[1] فتح الباری ۱۸۲/۱۰، عمدة القاری ۲۱/ ۲۳۸، ارشاد الساری ۴۲۱/۱۲)-

[2] الحدیث اخرجه البخاری فی کتاب الاجارة، باب خراج الحجام، رقم الحدیث ۱۹۲۷)-

[3] الحدیث اخرجه البخاری ایضا فی کتاب الطب، باب اللدود، ۲۱۵۹/۵، رقم الحدیث ۵۳۸۳) واخرجه فی باب العذوة ایضا، ۲۱۲۰/۵، رقم الحدیث ۴۳۸۵، و اخرجه ایضا فی ذات....[بقیه حاشیه په راروانه صفحه..

وَدَخَلْتُ عَلَى النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- بِابْنٍ لِي لَمْ يَأْكُلِ الطَّعَامَ فَبَالَ عَلَيْهِ، فَدَعَا بِمَاءٍ فَرَشَّ عَلَيْهِ.[۵۳۸۳، ۵۳۸۵، ۵۳۸۸]

ددې باب لاندې يو څو خبرې ياد ساتل پكار دى

① اولنۍ خبره د لفظ قسط د تلفظ متعلق ده، دا د قاف ضمه او د سين سكون سره دې، او دا كست كاف سره هم وئيل جائز دى، قاف او كاف چونكه قريب المخرج دى، څكه يو حرف بل سره بدلولې شى. (١)

څكه په آخر كښې طاء په تاء سره بدله شوې ده، څكه چې طاء او تاء هم قريب المخرج دى، عربيان قريب المخرج حرفونه يو بل سره بدلوى

امام بخارى رحمه الله دلته دوه مثالونه نور وركړې دى، يو كافور او بل قافور، دا قاف او كاف دواړو سره وئيل صحيح دى. او دويم مثال كشطت و قشطت دې، دا كلمه د سورة تكوير په آيت نعبر يوولسم كښې ده. (واذا السماء كشطت) كشطت د نزعت په معنى كښې دې، په دې كښې مشهور قراءت كشطت په كاف سره دې، خو د عبدالله بن مسعود رضى الله عنه نه يو روايت په قشطت كښې قاف سره هم مروى دې، قاف او كاف چونكه قريب المخرج دى، څكه د يو بل سره د بدلولو گنجائش شته.

**د عود هندى نه څه مراد دې؟:** ② دويمه خبره د قسط د مصداق په باره كښې ده، قسط ته عود هندى او عود بحرى هم وئيلې شي، خو ياد ساتل پكار دى، چې يو عودهندى مشهور لرګې دې، چې هغې ته په اردو كښې (اگر) وائى، كوم چې د خوشبو وغيره كښې استعماليږى، او چې د هغې عطر عود مشهور دى، دلته په حديث كښې د قسط نه هغه عود هندى او خوشبو والا لرګې مراد نه دې.

دغه شان يو قسط اظفار دې، چې د هغې ذكر په كتاب الطلاق كښې باب القسط للحاد لاندې تير شوې دې، هغه هم د يو خوشبو نوم دې، په حديث كښې د قسط نه هغه قسط اظفار مراد نه دې (٢) بلكه دا د يو مفيد جړې نوم دې، چې هغې ته په اردو كښې كوټ وائى، ددې عموما دوه قسمونه وى، يو سپين او بل تور، سپين ته عود بحرى يا قسط بحرى هم وائى، او تور ته عود هندى وائى، د عود هندى تاثير د عود بحرى په مقابله كښې دير گرم دې، (٣)

---

...بقيه ازحاشيه گذشته] الجنب ۲۱۰۱/۵، رقم الحديث ۵۳۸۸، واخرجه مسلم فى كتاب الطب و باب التداوى بالعود الهندى، وهو الكست، رقم الحديث ۲۲۱۴، واخرجه النسائى فى كتاب الطب و باب الداء بالقسط يسعط من العذرة، ۳۷۴/۴) رقم الحديث ۷۵۸۳) واخرجه ابوداود فى كتاب الطب، باب فى السعوط ۵/۴، رقم الحديث ۳۸۶۷) واخرجه ابن ماجه فى كتاب الطب، باب دواء ذات الجنب ۱۱۴۸/۲ رقم الحديث ۳۴۶۸)-

١) فتح البارى ۱۸۲/۱۰، عمدة القارى ۲۳۹/۲۱) ارشاد السارى ۴۲۱/۱۲)-

٢) فتح البارى ۱۸۲/۱۰، عمدة القارى ۲۳۹/۲۱)-

٣) فتح البارى ۱۸۲/۱۰) عمدة القارى ۲۳۹/۲۱)-

د دوارو تاثیر ګرم او اوچ دي.([1])

**د عود هندي فوائد:** ③ دریمه خبره د هغه لرګي د فائدو متعلق ده، طبیبانو ددې لوئې فائدې لیکلې دي، مثلا که نفاس والا ښځه ددې لوګې راکاږي، نو فاسد وینه به ئې بنده شي، نقصان ورکولو والا جراثیم ختموي، دماغ، سینه او ګردو ته طاقت ورکوي، باد ختموي، دماغي بیمارئي لکه فالج، لقوه او د بې هوشئ د پاره مفید دې، د خیتې نه چینجي ختموي، دا لګولو سره د مخ داغونه او چاپونه ختمیږي، د زکام په حالت کښې ددې لوګې راښکل بهترین علاج دې، او ددې لوګې سهر د سحر او د جادو اثرات هم ختمیږي.([2])

امام بخاري ددې نه مخکښې باب کښې سعوط (د سین فتحې سره) ذکر کړې وو، یعني هغه دوائي کومه چې په پوزه کښې اچولې شي، او په دې باب سعوط د سین ضمې سره راوړې دې، سعوط مصدر دې، په معنی د (پوزه کښې دوائي اچول) په دې کښې ددې دوائي ښکاره کول دي چې د کومې په پوزه کښې اچولو به حضور ﷺ حکم ورکولو، یعني عود هندي او عود بحري.

په باب کښې چې کوم حدیث امام بخاري ذکر کړې دې دا ددې نه مخکښې راغلې نه دې، امام بخاري دا په اول ځل ذکر کړو.

**قوله:** علیکم بهذا العود الهندي......: یعني تاسو دا عود هندي اختیار کړئي او استعمال ئې کړئي.

**قوله:** فان فیه سبعة اشفیة: ځکه چې په دې کښې اووه شفاګانې دي، اشفیة د شفاء جمع ده، لکه ادویة د دواء جمع ده، ددې جمع الجمع اشاف رازي.([3])

**قوله:** یستعط به من العذرة: یعني د عذره بیمارئي د علاج د پاره دا په پوزه کښې اچولې شي، عذره (د عین ضمه او د دال سکون سره) د تالو بیماري وي، کومه چې ماشومانو ته لګي، د ماشومانو تالو سره نیزدې سپونړې شان راشي، او دا عام توګه باندې د وینې د جوش د وجه رازي.([4])

عود هندي استعمالولو سره دا بیماري ختمیږي، د عود هندي تاثیر چونکه ګرم او اوچ وي او عذره بیماري د لوندوالي د وجه نه پیدا کیږي، ځکه دا د هغې د پاره مفید ده.([5])

**قوله:** ویلد به من ذات الجنب: یلد د فعل مجهول صیغه ده، لدود: په خله کښې دوائي اچول، ذات الجنب: هر هغه درد ته وائي چې د انسان په طرف کښې پیدا کیږي، دا درد زیات

---

[1]) فتح الباري ۱۸۳/۱۰، عمدة القاري ۲۳۹/۲۱، ارشاد الساري ۴۲۲/۱۲)-

[2])فتح الباري ۱۸۳/۱۰)-

[3])فتح الباري ۱۸۳/۱۰، ارشاد الساري ۴۲۲/۱۲)-

[4])فتح الباري ۱۸۳/۱۰، عمدة القاري ۲۳۹/۲۱، ارشاد الساري ۴۲۲/۱۲)-

[5])فتح الباري ۱۸۳/۱۰، ارشاد الساري ۴۲۲/۱۲)-

تر د ګیس د جمع کیدو د وجه نه وی. (۱)

د عود هندی په استعمال سره دا بیماری ختمیږی.

**دوه سوالونه او د هغې جوابونه**: دلته په حدیث کښې ذی چې عود هندی د اوو بیمارو د پاره شفاء ده. او طبیبانو د اوو نه زیات بیمارو د پاره شفاء ګرځولې ده، (۲)

① بعضې شارحینو ددې جواب ورکړې دې چې د اوو بیمارو د پاره شفاء کیدل د وحی په ذریعه سره حضور ﷺ ته وئیلې شوې وو، ځکه حضور ﷺ د اوو ذکر اوکړو. او باقی بیمارو کښې شفاء کیدل د طبیبانو د تجربه نه معلومه شوه. (۳)

② دویم جواب دا ورکړې شوې دې چې د اوو بیمارو د پاره خو ډیر مفید او اثر کونکې دې ځکه د اوو ذکر اوشو. او د نورو د پاره مفید خو ده. خو دومره قدرې نه ده، (۴)

یو سوال دا کیږی چې حضور ﷺ خو فرمائیلې دی چې دا د اوو بیمارو د پاره شفاء ده. خو مخکښې حدیث کښې د دوو بیمارو ذکر دې. او د نور پنځو ذکر نشته (۵)

①ددې یو جواب خو دا ورکړې شوې دې چې حضور ﷺ د اوو ذکر کړې دې خو راوی د اختصار د پاره صرف د دوو ذکر اوکړو. او راویان هم داسې اختصار کله کله کوی، (۶)

②او دا هم وئیلې شی چې باقی پنځو بیمارو د پاره ددې شفاء کیدل مشهوره ده، او ددې دوو د پاره شفاء کیدل غیرمشهور وه، نو ځکه ئې ددې دوو ذکر اوکړو، او د باقی پنځو ذکر ئې اونکړو، ځکه چې ددې ضرورت نه وو، (۷)

③او د ذکر شوې دواړه سوالونو جواب دا هم ورکړې شوې دې چې دلته د اوو نه یو خاص عدد مراد نه دې، بلکه ډیر والې مراد دې، او د عربی په ژبه کښې د اوو عدد د زیاتوالی د پاره استعمالیږی. لهذا د حدیث شریف مقصد دا دې چې عود هندی د ډیرو بیمارو د پاره شفاء ده. او په دې کښې د دوو ذکر حضور ﷺ اوفرمائیلو. (۸)

④حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې دا هم احتمال دې چې اوو سره د علاج اوو اصول مراد وی، دغه شان هغه لیکی: ويحتمل ان تكون السبعة اصول صفة التداوى بها، لانها طلاء او شرب او تكميد، او تنطيل، او تبخير، او سعوط، او لدود. فالطلاء يدخل فى المراهم، ويحل بالزيت، ويلطخ، وكذا التكميد، والشرب يسحق، ويجعل فى عسل او ماء او غيرهما، وكذا التنطيل، والسعوط يسحق فى زيت،

---

(۱) ارشاد السارى ۴۲۲/۱۲)-

(۲) فتح البارى ۱۸۳/۱۰)-

(۳)حواله بالا)-

(۴)حواله بالا)-

(۵) حواله بالا و ارشاد السارى ۴۲۲/۱۲)-

(۶) حواله بالا)-

(۷) فتح البارى ۱۸۳/۱۰)-

(۸) حواله بالا)-

ويقطر فى الانف، وكذا الدهن، والتخير واضح، تحت كل واحدة من السبعة منافع لادوا مختلفة، ولا يستغرب ذلك ممن اوتى جوامع الكلم: ([1])

يعنى دا هم احتمال دې چې د اوو نه د علاج اوو اصول مراد وى، ځکه چې په علاج کښې دوائى په اوو طريقو سره استعمالولې شى،

① دوائى يا مرېلې شى، ② يا څکلې شى، ③ يا په پوزه کښې اچولې شى، ④ يا په خله کښې اچولې شى، ⑤ يا ددې دارى ويشتلې شى، ⑥ يا دا اوچولې شى، ⑦ يا ددې لوړې راخکلې شى

کلونجى په دې ذکر شوو اوو طريقو باندې استعمالولې شى، دا په مرهم کښې شاملولې شى، ريزه ريزه کولو نه پس دا اوبه سره څکلې هم شى، د زيتون په تيلو کښې ميلاويدو سره دا په پوزه يا خله کښې هم اچولې شى، او ددې لوړې راخکل خو بالکل ښکاره ده.

نو په کلونجى کښې د اوو شفاء مطلب دا دې چې د مختلف بيمارو د پاره دا په اوو طريقو سره استعماليدې شى،

**قوله**: وَدَخَلْتُ عَلَى النَّبِىِّ -صلى الله عليه وسلم- بِابْنٍ لِى لَمْ يَأْكُلِ الطَّعَامَ فَبَالَ عَلَيْهِ، فَدَعَا بِمَاءٍ فَرَشَّ عَلَيْهِ: دا حديث كتاب الطهارة كښې د باب الصبيان لاندې تير شوې دې، ([2])

حضرت ام قيس بنت محصن رضي الله عنها خپل ماشوم خوئې حضور ﷺ په خدمت کښې راوستلو، حضور ﷺ هغه په خپله غيږه کښې کينولو، نو هغه تش بول اوکړل، حضور ﷺ اوبه رااوغښتلې او د بولو په ځائې باندې هغه اوشيندلې.

## ۱۱-باب أَىَّ سَاعَةٍ يَحْتَجِمُ

وَاحْتَجَمَ أَبُو مُوسَى لَيْلاً.

[۵۳۶۹] حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ احْتَجَمَ النَّبِىُّ -صلى الله عليه وسلم- وَهُوَ صَائِمٌ. [ر: ۱۷۳۸]

**د ترجمة الباب مقصد**: ساعت نه دلته مطلقا وخت مراد دې، اصطلاحى گهنټه مراد نه ده، ددې ترجمة الباب دوه مقصدونه او مطلبونه بيان کړې شوى دى،

① د امام بخارى رحمه الله مقصد دا دې چې احتجام يعنى ښکر لګولو د پاره څه وخت مقرر نه دې، چې کله هم ضرورت وى بغير د څه مکروه والى نه ښکر لګولې شى، ([3])

نو دغه شان امام بخارى ددې نه پس د حضرت ابوموسى رضي الله عنه تعليق ذکر کړې دې، چې

---

[1]) فتح البارى ۱۰/۱۸۳)-

[2]) الحديث اخرجه البخارى فى كتاب الوضوء، باب بول الصبيان ۱/۹۰) رقم الحديث ۲۲۱)-

[3]) فتح البارى ۱۰/۱۸۳و ارشاد السارى ۱۲/۴۲۳)-

هغوی د شپې په وخت کښې ښکر لګولې وو ، او د عبدالله بن عباس رضی الله عنه روایت ئې نقل کړو چې حضور صلی الله علیه وسلم ښکر اولګولو په داسې حالت کښې چې حضور صلی الله علیه وسلم روژه دار وو، یعنی د ورځې په وخت کښې ښکر اولګولو ، معلومه شوه چې ښکر، شپه ورځ هر وخت کښې لګولې شي، او ددې د پاره څه وخت مقرر نه دې. [1]

② بعضې حضراتو اوفرمائیل چې امام بخاری هغه روایاتو طرف ته اشاره کوی چې په هغې کښې د ښکر لګولو تاریخ او وخت خودلې شوې دې، نو هغه روایات چونکه د امام بخاری په شرط باندې پورا نه دی ځکه ئې هغه ذکر نه کړل. [2]

مثلا سنن ابی داود کښې د حضرت ابوهریره رضی الله عنه روایت دې. **من احتجم لسبع عشرة وتسع عشرة، واحدى عشرين، كان شفاء من كل داء.** [3]

په سنن ترمذی کښې د حضرت انس رضی الله عنه حدیث دې، **(ان رسول الله صلی الله علیه وسلم كان يحتجم فى الاخدعين والكاهل، وكان يحتجم لسبع عشرة وتسع عشرة، واحدى و عشرين.** [4]

امام ترمذی دې حدیث لره حسن ګرځولې دې.

په سنن ترمذی کښې د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه روایت دې، **(قال رسول الله صلی الله علیه وسلم نعم العبد الحجام يذهب بالدم، ويخف الصلب، ويجلو عن البصر، وان خير ما تحتجمون فيه: يوم سبعة عشرة، ويوم تسعة عشرة، ويوم احدى و عشرين.** [5]

د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه روایت دې، **(الحجامة تزيد فى الحفظ و فى العقل، وتزيد الحافظ حفظا فعلى اسم الله يوم الخميس، يوم الجمعة، ويوم السبت، ويوم الاحد، ويوم الاثنين، يوم الثلاثا، ولا تحتجموا يوم الاربعاء فما ينزل من جنون ولا جذام ولا برص الا ليلة الاربعاء**

د ابوداود یو روایت کښې دی چې حضور صلی الله علیه وسلم به د نهې په ورځ ښکر لګول مکروه ګڼړل، او فرمائیل به ئې **(يوم الثلاثا يوم الدم، وفيه ساعة لا يرقافيها.** [6]

یعنی د منګل په ورځ یو وخت داسې دې چې په هغې کښې بهیدونکې وینه نه اودریږی.
دې احادیثو کښې ورځ او تاریخ دواړه خودلې شوې دی، چې په ۱۷، ۱۹ او ۲۱ تاریخ باندې ښکر لګول زیات بهتردی، دغه شان د زیارت، جمعه اودهفتې په ورځ هم لګول پکار دی، د چارشنبې او په یو روایت کښې د نهې په ورځ هم د ښکر لګولو نه منع راغلې ده. [7]

---

[1] حواله بالا)-
[2] فتح البارى ١٠/١٨٤)-
[3] الحديث اخرجه ابو داود فى كتاب الطب، باب حتى تستحب الحجامة، ٤/٥، رقم الحديث ٣٨٦١)-
[4] الحديث اخرجه الترمذى فى كتاب الطب باب ما جاء فى الحجامة، ٤/٣٩٠) رقم الحديث ٢٠٥١)-
[5] الحديث اخرجه الترمذى فى كتاب الطب باب ما جاء فى الحجامة ٤/٣٩٠) رقم الحديث ٢٠٥٢)-
[6] عمدة القارى ٢١/٢٤٠)-
[7] سنن ابى داود كتاب الطب ٤/٥) باب متى تستحب الحجامة رقم الحديث ٣٨٦٢)-

د امام بخاري په شرط باندي چونکه دا روايت نه وو، ځکه هغوی دا ذکر نه کړو، خو بيا هم د ترجمة الباب نه دې احاديثو طرف ته اشاره مقصود ده، علامه قسطلاني ليکلي:

وعند الاطباء ان انفع الحجامة ما يقع في الساعة الثانية او الثالثة وان لا يقع عقب استفراغ من حمام او جماع ولا عقب شبع ولا جوع وانها تفعل في النصف الثاني من الشهر ثم في الربع الثالث من ارباعه انفع من اوله وآخره، لان الاخلاط في اول الشهر تهيج وفي آخره تسكن فاولى ما يكون الاستفراغ في اثنائه.([1])

يعني د ورځې په دويمې دريمې حصه کښې ښکر لګول د طبيبانو په نيز بهتر دی، غسل د جماع نه پس صحيح نه دې، دغه شان د ډيرې لوږې او د زيات موړوالی په حالت کښې هم صحيح نه دې، د مياشت په آخری پنځلسو ورځو کښې دې اولګولې شی، د ۱۴ تاريخ نه تر د ۲۳ تاريخ پورې ورځې د ټولو نه زيات بهتر دی، ځکه چې د بدن په اخلاط کښې (وينه، سودا، صفرا او بلغم) د مياشتې په شروع کښې اوچتوالې کيږی، او د مياشتې په آخره کښې ساکن والې وی، نو ځکه د مينځنۍ حصه بهتره ده، ځکه چې هغه د اخلاط معتدل زمانه وی

د حضرت ابوموسى اشعری رضي الله عنه نوم عبد الله بن قيس دې، ([2])

ددوی دا تعليق ابن ابی شيبه موصولا نقل کړې دې، ([3])

د باب په آخر کښې هم دې سند او متن سره په کتاب الصوم کښې (باب الحجامة والقئ) لاندې تير شوې دې

## ۱۲-بَابُ الْحَجْمِ فِي السَّفَرِ وَالإِحْرَامِ

قَالَهُ ابْنُ بُحَيْنَةَ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم-.

[۵۳۷۰] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ طَاوُسٍ وَعَطَاءٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ احْتَجَمَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- وَهُوَ مُحْرِمٌ. [ر: ۱۷۳۸]

په سفر او احرام کښې ښکر لګولې شی.

**قوله** قال ابن بحينة عن النبى صلى الله عليه وسلم: ابن بحينه نوم عبد الله بن مالک بن قشب دې، بحينه ددوی د مور نوم دې، ([4])

ددوی دا حديث مخکښې موصولا راروان دې.

حديث باب کښې دی چې حضور صلى الله عليه وسلم د احرام په حالت کښې ښکر اولګولو.

دا حديث په کتاب الحج کښې (باب الحجامة للمحرم) کښې تير شوې دې.

---

[1] عمدة القاری ۲۱/۲۴۰، ارشاد الساری ۱۲/۴۲۳)-
[2] حواله بالا)-
[3] عمدة القاری ۲۱/۲۴۰)-
[4] عمدة القاری ۲۱/۲۴۱، ارشاد الساری ۱۲/۴۲۳)-

# ۱۳-باب الحجامة من الداء

[۵۳۷۱] حدثنا محمد بن مقاتل أخبرنا عبد الله أخبرنا حميد الطويل عن أنس رضى الله عنه أنه سئل عن أجر الحجام فقال احتجم رسول الله صلى الله عليه وسلم حجمه أبو طيبة، وأعطاه صاعين من طعام، وكلم مواليه فخففوا عنه، وقال «إن أمثل ما تداويتم به الحجامة والقسط البحرى» وقال «لا تعذبوا صبيانكم بالغمز من العذرة، وعليكم بالقسط». [ر: ۱۹۹۶]

[۵۳۷۲] حدثنا سعيد بن تليد قال حدثنى ابن وهب قال أخبرنى عمرو وغيره أن بكيرا حدثه أن عاصم بن عمر بن قتادة حدثه أن جابر بن عبد الله - رضى الله عنهما - عاد المقنع ثم قال لا أبرح حتى تحتجم فإنى سمعت رسول الله - صلى الله عليه وسلم - يقول « إن فيه شفاء». [ر: ۵۳۵۹]

په دې باب کښې د بيمارئ په سبب د ښکر لګولو بيان دې. روايت کښې دی چې د حضرت انس ﷺ نه د ښکر لګولو د اجرت تپوس اوکړې شو. نو هغوی اوفرمائيل چې حضور ﷺ ښکر اولګولو، ابو طيبه هغوی ته ښکر لګولې وو، حضور ﷺ ورته دوه صاعه غله ورکړه، او د هغوی د مالکانو نه (د روزانه اخستلو والا رقم کښې) د تخفيف په باره کښې خبرې اوکړې. چې بهترين علاج کوم چې تاسو کوئی، هغه ښکر لګول او قسط بحری دې. او وې فرمائيل چې په عذره بيمارئ کښې د ماشوم تالو ته زور ورکولو سره تکليف مه ورکوئې. بلکه قسط استعمال کړئی

په دويم قراءت کښې دی چې حضرت جابر ﷺ د مقنع تپوس کولو سره اووئيل چې څه به هغه وخت پورې نه زم، ترڅو چې ته ښکر اونه لګوې، او ځکه چې ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلې دی، چې په دې کښې شفا ده،

د ابو طيبه چې کوم غلام حضور ﷺ ته ښکر لګولې وو، د هغه نوم نافع وو. [1]

دده آقا محيصه بن مسعود وو، مولی د جمع صيغه مجاز ائې استعمال کړې ده. [2]

امثل ما تداويتم.. امثل بمعنى افضل دې. [3]

**قوله**: لا تعذبوا صبيانكم بالغمز من الغذرة: غمز: زور ورکولو ته وائی. ماشومانو ته چې کله د حلق دا بيماری راشی نو ښځې د ماشومانو تالو ته زور ورکوی. په دې عمل کښې ماشوم ته ډير تکليف وی، حضور ﷺ اوفرمائيل چې ماشومانو ته داسې تکليف مه

---

[1]) فتح البارى ۱۸۶/۱۰، عمدة القارى ۲۴۱/۲۱) ارشاد السارى ۴۲۴/۱۲)-

[2]) فتح البارى

۱۸۶/۱۰) ارشاد السارى ۴۲۴/۱۲)-

[3]) عمدة القارى ۲۴۱/۲۱) فتح البارى ۱۸۶/۱۰) ارشاد السارى ۴۲۴/۱۲)_

ورکوئی، بلکه د عود هندی په ذریعه ددې بیمارئ علاج اختیار کړئ.
په دې حدیث کښې حضور ﷺ ښکر لګول بهترین علاج خودلې دې، ځکه چې ښکر لګولو سره د بدن نه فاسده وینه اوځي.
امام ابوداود رحمه الله یو روایت نقل کړې دې، په هغې کښې دی، ما کان احد یشتکی الی رسول الله ﷺ وجعا فی راسه، الا قال: احتجم: ولا وجعا فی رجلیه، الا قال: اخضبها.[1]
دلته دا خبره یاد ساتل پکار ده چې په ښکر لګولو کښې د مخصوص رګونو نه وینه ویستلې کیږي، دا هر سړي اوخکلي نشي، بلکه یو ماهر او تجربه کار کس دا کولې شي.
دغه شان چې د کومو خلقو په مزاج کښې یخوالي زیات وی او حرارت نه وی، د هغوی د پاره ښکر لګول زیات مفید نه دی، چنانچه طبری رحمه الله په سند صحیح سره د ابن سیرین رحمه الله نه روایت نقل کړې دې اذا بلغ الرجل اربعین سنة لم یحتجم.[2]
علامه طبری په زاد المعاد کښې فرمائی:
لحجامة فی الازمان الحارة، والا مکنة الحارة والامزجة الحارة التی دم اصحابها فی غایة النضج انفع.[3]

**قوله**: عاد المقنع: په دویم روایت کښې دی چې حضرت جابر رضی الله عنه د مقنع عبادت اوکړو، مقنع (نون مشدده مفتوحه سره).[4]
حافظ ابن حجر فرمائی: لا اعرفه الا فی هذا الحدیث..[5]

## ۱۴- بَابُ الْحِجَامَةِ عَلَى الرَّأْسِ

[۵۳۷۳] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي سُلَيْمَانُ عَنْ عَلْقَمَةَ أَنَّهُ سَمِعَ عَبْدَ الرَّحْمَنِ الْأَعْرَجَ أَنَّهُ سَمِعَ عَبْدَ اللَّهِ ابْنَ بُحَيْنَةَ يُحَدِّثُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- احْتَجَمَ بِلَحْيِ جَمَلٍ مِنْ طَرِيقِ مَكَّةَ، وَهُوَ مُحْرِمٌ، فِي وَسَطِ رَأْسِهِ.
وَقَالَ الْأَنْصَارِيُّ أَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ حَسَّانَ حَدَّثَنَا عِكْرِمَةُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رضى الله عنهما - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- احْتَجَمَ فِي رَأْسِهِ.[ر: ۱۷۳۸، ۱۷۳۹]
دا د ابن بحینه هغه روایت دې کوم چې مخکښې تعلیقا ذکر شوې وو، او اوس ئې دلته موصولا ذکر کړو، چې حضور ﷺ د مکې په لاره باندې مقام الحی جمل کښې په سرمبارک باندې ښکر اولګولو، په دې حالت دوی ﷺ د احرام په حالت کښې وو.
**قوله**: احتجم بلحی جمل: لحی جمل یو قول خو دادې چې دا د ځائې نوم دې، مطلب دا دې.

---

[1] الحدیث اخرجه ابوداود فی کتاب الطب باب فی الحجامة ۴/۴، رقم الحدیث ۳۸۵۸)۔
[2] فتح الباری ۱۸۶/۱۰)، عمدة القاری ۲۴۱/۲۱)۔
[3] زاد المعاد ۵۴/۴) ارشاد الساری ۴۲۴/۱۲)۔
[4] عمدة القاری ۲۴۲/۲۱) فتح الباری ۱۸۷/۱۰) ارشاد الساری ۴۲۵/۱۲)_
[5] فتح الباری ۱۸۷/۱۰) ارشاد الساری ۴۲۵)۔

چې په دې حائې باندې حضور ﷺ ښکر لګولې وو، په دې صورت کښې باء جاره د «فی» په معنی کښې ده.
دويم قول دا دې چې د جمل نه اوښ مراد دې، او «لحی» ديرې ته وائی، نو د لحی جمل نه د ښکر لګولو هغه آله مراد ده. يعنی د اوښ د هډوکی په ذريعه هغه ښکر اولګولې شول، په دې صورت کښې باء جاره د استعانت د پاره ده، (١)
علامه عنيی رحمه الله اول قول لره معتمد ګرځولې دې، (٢)

**قوله**: وقال الانصاري اخبرنا..: انصاری نه محمد بن عبد الله بن المثنی بن عبد الله بن انس بن مالک مراد دې، (٣)
دې تعليق لره امام بيهقی موصولا نقل کړې دې، (٤)
د هغې الفاظ دی احتجم وهو محرم من صداع كان به او داء، واحتجم موضع يقال له: لحى جمل، (٥)

## ١٥- بَابُ الْحَجْمِ مِنَ الشَّقِيقَةِ وَالصُّدَاعِ

[٥٣٧٤] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ عَنْ هِشَامٍ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ احْتَجَمَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - فِي رَأْسِهِ وَهُوَ مُحْرِمٌ مِنْ وَجَعٍ كَانَ بِهِ بِمَاءٍ يُقَالُ لَهُ لَحْيُ جَمَلٍ.
وَقَالَ مُحَمَّدُ بْنُ سَوَاءٍ أَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - احْتَجَمَ وَهُوَ مُحْرِمٌ فِي رَأْسِهِ مِنْ شَقِيقَةٍ كَانَتْ بِهِ. [ر: ١٧٣٨]

[٥٣٧٥] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ أَبَانَ حَدَّثَنَا ابْنُ الْغَسِيلِ قَالَ حَدَّثَنِي عَاصِمُ بْنُ عُمَرَ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ «إِنْ كَانَ فِي شَيْءٍ مِنْ أَدْوِيَتِكُمْ خَيْرٌ فَفِي شَرْبَةِ عَسَلٍ أَوْ شَرْطَةِ مِحْجَمٍ أَوْ لَذْعَةٍ مِنْ نَارٍ، وَمَا أُحِبُّ أَنْ أَكْتَوِيَ». [ر: ٥٣٥٩]

شقيقة د نيم سر درد ته وئيلې شی او صداع د پوره سر درد ته وائی، (٦)
ښکر لګول د سر د درد د پاره مفيد دی، ابن عدی د ابن عباس رضی الله عنهما نه مرفوعا نقل کړې دی،
الحجامة فی الراس تنفع من الجنون والجذام، والبرص والنعاس، والصداع، ووجع الضرس والعين، (٧)

---

(١) عمدة القاری ٢٤٢/٢١، فتح الباری ١٨٨/١٠) ارشاد الساری ٤٢٦/١٢)-
(٢) عمدة القاری ٢٤٢/٢١)-
(٣) عمدة القاری ٢٤٦/٢١) ارشاد الساری ٤٢٦/١٢)-
(٤) حواله بالا)-
(٥) عمدة القاری ٢٤٣/٢١) فتح الباری ١٨٨/١٠) ارشاد الساری ٤٢٦/١٢)-
(٦) عمدة القاری ٢٤٢/٢١) فتح الباری ١٨٨/١٠) ارشاد الساری ٤٢٦/١٢)-
(٧) ارشاد الساری ٤٢٧/١٢)-

خود دې روايت په سند کښې عمر بن رباح يو راوى دې، کوم چې مهتم بالکذب دې. [۱]

## ۱۶- باب الحَلْقِ مِنَ الأَذَى

[۵۳۷۶] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ أَيُّوبَ قَالَ سَمِعْتُ مُجَاهِدًا عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى عَنْ كَعْبٍ هُوَ ابْنُ عُجْرَةَ قَالَ أَتَى عَلَى النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم - زَمَنَ الْحُدَيْبِيَةِ، وَأَنَا أُوقِدُ تَحْتَ بُرْمَةٍ، وَالْقَمْلُ يَتَنَاثَرُ عَنْ رَأْسِي فَقَالَ «أَيُؤْذِيكَ هَوَامُّكَ». قُلْتُ نَعَمْ. قَالَ «فَاحْلِقْ وَصُمْ ثَلاَثَةَ أَيَّامٍ، أَوْ أَطْعِمْ سِتَّةً، أَوِ انْسُكْ نَسِيكَةً». قَالَ أَيُّوبُ لاَ أَدْرِي بِأَيَّتِهِنَّ بَدَأَ. [ر: ۱۷۱۹]

په سر کښې که سپږې وغيره تکليف ورکوى نو حلق کيدې شى، ددې د باب کتاب الطب سره مناسبت بيانولو باره کښې علامه عينى رحمه الله ليکلى:

**ووجه ايراده فى باب الطب من حيث ان كل ما يتاذى به المؤمن وان ضعف اذاه يباح له ازالته. وان كان محرما. وفيه معنى الطب. لانه ازالة الاذى يشابه المرض، لان كل مرض اذى، وتسلط القمل على الراس اذى، وكل اذى يباح ازالته. فالقمل يباح ازالته. [۲]**

يعنى سر چې کله د سپږو وغيره نه په تکليف کښې وى نو د احرام په حالت کښې حلق کولو ختمول جائز دى، په دې کښې د علاج معنى موندلې کيږى، ځکه چې مرض سره يو شان يو تکليف لرې کول دى، ځکه چې هر مرض تکليف والا دې.

## ۱۷- باب مَنِ اكْتَوَى أَوْ كَوَى غَيْرَهُ، وَفَضْلِ مَنْ لَمْ يَكْتَوِ

[۵۳۷۷] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ هِشَامُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ سُلَيْمَانَ بْنِ الْغَسِيلِ حَدَّثَنَا عَاصِمُ بْنُ عُمَرَ بْنِ قَتَادَةَ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرًا عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «إِنْ كَانَ فِي شَىْءٍ مِنْ أَدْوِيَتِكُمْ شِفَاءٌ فَفِي شَرْطَةِ مِحْجَمٍ أَوْ لَذْعَةٍ بِنَارٍ، وَمَا أُحِبُّ أَنْ أَكْتَوِيَ». [ر: ۵۳۵۹]

[۵۳۷۸] حَدَّثَنَا عِمْرَانُ بْنُ مَيْسَرَةَ حَدَّثَنَا ابْنُ فُضَيْلٍ حَدَّثَنَا حُصَيْنٌ عَنْ عَامِرٍ عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ - رضى الله عنهما - قَالَ لاَ رُقْيَةَ إِلاَّ مِنْ عَيْنٍ أَوْ حُمَةٍ. فَذَكَرْتُهُ لِسَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ فَقَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ عَبَّاسٍ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم -

«عُرِضَتْ عَلَىَّ الأُمَمُ، فَجَعَلَ النَّبِيُّ وَالنَّبِيَّانِ يَمُرُّونَ مَعَهُمُ الرَّهْطُ، وَالنَّبِيُّ لَيْسَ مَعَهُ أَحَدٌ، حَتَّى رُفِعَ لِي سَوَادٌ عَظِيمٌ، قُلْتُ مَا هَذَا أُمَّتِي هَذِهِ قِيلَ هَذَا مُوسَى وَقَوْمُهُ. قِيلَ انْظُرْ إِلَى الأُفُقِ. فَإِذَا سَوَادٌ يَمْلأُ الأُفُقَ، ثُمَّ قِيلَ لِي انْظُرْ هَا هُنَا وَهَا هُنَا فِي آفَاقِ السَّمَاءِ فَإِذَا سَوَادٌ قَدْ مَلأَ الأُفُقَ قِيلَ هَذِهِ أُمَّتُكَ وَيَدْخُلُ الْجَنَّةَ مِنْ هَؤُلاَءِ سَبْعُونَ أَلْفًا بِغَيْرِ حِسَابٍ، ثُمَّ دَخَلَ وَلَمْ

---

[۱] حواله بالا)-

[۲] عمدة القارى ۲۴۳/۲۱)-

يَبِيْنُ لَهُمْ فَأَفَاضَ الْقَوْمُ وَقَالُوا نَحْنُ الَّذِينَ آمَنَّا بِاللَّهِ، وَاتَّبَعْنَا رَسُولَهُ، فَنَحْنُ هُمْ أَوْ أَوْلَادُنَا الَّذِينَ وُلِدُوا فِي الإِسْلَامِ فَإِنَّا وُلِدْنَا فِي الْجَاهِلِيَّةِ. فَبَلَغَ النَّبِي - صلى الله عليه وسلم - فَخَرَجَ فَقَالَ هُمُ الَّذِينَ لَا يَسْتَرْقُونَ، وَلَا يَتَطَيَّرُونَ، وَلَا يَكْتَوُونَ وَعَلَى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ». فَقَالَ عُكَّاشَةُ بْنُ مِحْصَنٍ أَمِنْهُمْ أَنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ «نَعَمْ». فَقَامَ آخَرُ فَقَالَ أَمِنْهُمْ أَنَا قَالَ «سَبَقَكَ عُكَّاشَةُ». [ر: ٣٢٢٩]

په اکتوی او کوی کښې فرق بیانولو سره علامه عینی اوفرمائیل چې اول لازم او دویم اعم دې، یعني اکتوی لنفسه. د ځان د پاره داغ لګول. لنفسه ولغیره. ځان له داغ لګول یا د بل چا د پاره داغ لګول.[1]

ترجمة الباب په درې جزونو باندې مشتمل دې.

① من اکتوی ② کوی غیره ③ او فضل من لم یکتو..

د اول دوو جزونو نه د داغ جواز طرف ته اشاره ده، او دریم جز نه دې خبرې ته اشاره ده چې کله ضرورت نه وی نو ددې پریخودل افضل دی، [2]

د باب اولنې حدیث اوس تیر شوې دې، او دویم حدیث په کتاب الانبیاء کښې باب وفاة موسی علیه السلام لاندې په اختصار سره تیر شوې دې، مخکښې کتاب الرقاق کښې هم امام بخاری ددې تخریج کړې دې، [3]

حضرت عمران بن حصین رضی الله عنه فرمائی چې د نظر بد یا د زهریله ځناور (مار لړم وغیره) د ټک نه علاوه په یو څیز باندې هم منتر جائز نه دې، حصین بن عبدالرحمن فرمائی چې ما سعید بن جبیر رضی الله عنه ته دا خبره بیان کړه نو هغوی اوفرمائیل چې مونږ ته ابن عباس رضی الله عنه حدیث بیان کړو چې حضور صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل زما مخکښې یو څو امتونه پیش کړې شول، یو یو او دوه دوه نبیان علیهم السلام تیر شول، هغوی سره جماعت وو، او داسې نبیان هم تیر شول چې هغوی سره یو امتی هم نه وو، تردې چې زما مخکښې یو لوئې جماعت تیر شو، ما تپوس اوکړو چې دا څه دی؟ آیا دا زما امت دې؟ جواب میلاو شو چې دا موسی علیه السلام او د هغه قوم دې، بیا ماته اووئیلې شول افق طرف ته اوګوره، یو جماعت ټول اسمان لره ګیر کړې وو، ماته اووئیلې شول چې یو خوا بل خوا طرفونه ته اوګوره، ما اوکتل چې د الله د مخلوق یو لویا ډله وه، چا چې ټول افق لره نیولې وو... اووئیلې شول چې دا ستا امت دې، په دوی کښې به اوویا زره بغیر حساب نه جنت ته داخلیږی،

دې نه پس حضور صلی الله علیه وسلم دننه تشریف راوړو، او حضور صلی الله علیه وسلم دا اونه فرمائیل چې بغیر حساب داخلیدونکی به کوم خلق وی، خلقو جهګړې شروع کړې او وې وئیل چې دا مونږ یو، ځکه چې مونږ په الله باندې ایمان راوړو، او د هغه د رسول مو اتباع اوکړه، یا زمونږ اولاد دی

---

[1] عمدة القاری (۲۴۳/۲۱) ارشاد الساری (۴۲۸/۱۲)_

[2] عمدة القاری (۲۴۳/۲۱) فتح الباری (۱۹۱/۱۰)-

[3] ارشادالساری (۴۳۱/۱۲) عمدة القاری (۲۴۴/۲۱)_

ځکه چې هغوی په اسلام باندې پیدا شوې دی، او مونږ خو په جاهلیت کښې پیدا شوې یو. حضور ﷺ ته چې دا خبر میلاو شو نو وې فرمائیل چې دا به هغه خلق وی چې نه منتر وائی او نه بدفالی کوی، او نه داغ لګوی، او په خپل رب باندې بهروسه کوی.

عکاشه بن محصن رضی الله عنه عرض اوکړو، چې یا رسول الله ! ځه د هغه کسانو نه یم، ؟ حضور ﷺ اوفرمائیل چې آو، ته د هغه خلقو نه یې. یو بل کس هم پاسیدو او تپوس ئې اوکړو چې آیا ځه د هغه خلقو نه یم، حضور ﷺ اوفرمائیل چې عکاشه ستا نه مخکښې شو.

**قوله**: عن عمران بن حصين قال: لا رقية الا من عين او حمة: د حدیث په دې جمله کښې اختلاف دې، چې دا موقوف ده، یا مرفوع، دلته محمد بن فضیل دا موقوفا نقل کړې دې، البته مالک بن مغول دې لره مرفوعا نقل کړې دې. د مالک روایت امام احمد او امام ابوداود رحمه الله ذکر کړې دې.[1]

حمة (د حاء ضمه او میم تخفیف سره) د لړم زهر یا د هغه تک ته وائی[2]

**قوله**: لا رقية الا من عين او حمة: مطلب دا دې چې دم درود په دوو آفتونو کښې نسبتا زیات مفید وی، یعنی په نظر لګیدو کښې، یا د لړم وغیره په تک کښې.

علامه خطابی فرمائی چې ددې جملې مقصد دا نه دې چې دم درود صرف په دې دوو آفتونو کښې جائز دې، او باقی په بل آفت کښې جائز نه دې، بلکه مطلب دا دې چې په دې دواړو کښې دم درود زیات مفید او نفع ورکونکې دې. لا رقية احق واولى من رقية العين والحمة[3]

علامه ابن اثیر فرمائی لا رقية اولى وانفع. دا داسې ده څنګه چې وائی لا فتى الا على[4]

(د رقیة متعلق تفصیلی خبرې مخکښې رازی)

**قوله**: فذكرته لسعيد بن جبير: دا د حصین بن عبد الرحمن قول دې، چې ما مذکوره جمله د سعید بن جبیر رحمه الله په مخکښې ذکر کړه.

**قوله**: فافاض القوم: افاض فى الحديث: په خبرو کښې مصروف کیدل، مناظره کول

**قوله**: هم الذين لا يسترقون، ولا يتطيرون، ولا يكتوون: یعنی هغه خلق به وی چې دم درود نه کوی، استرقاء نه دلته زمانه جاهلیت والا استرقاء مراد ده، چې په هغې کښې شرکیه الفاظ شامل به وو، استرقاء بکتاب الله مراد نه دې. ځکه چې قران وئیلو سره دم درود کول جائز دی، او د توکل مخالف نه دې.[5]

---

[1] اخرجه ابوداود فى كتاب الطب باب فى تعليق التمائم ٩/٤٤ رقم الحديث ٣٨٨٤، ارشاد السارى ٤٢٩/١٢
[2] ارشاد السارى ٤٣٠/١٢ عمدة القارى ٢٤٤/٢١
[3] عمدة القارى ٢٤٥/٢١
[4] النهاية لابن اثير ٢٥٥٩/٢)-
[5] عمدة القارى ٢٤٥/٢١)-

لا يتطيرون: بدفالي نه نيسي، په زمانه جاهليت کښې به خلقو په مرغو باندې بد شګوني (بدفالي) کوله، (۱) چې د هغې څه حقيقت نه وو.

ولا يكتوون: او چې داغ نه لګوي، يعنى داغ لګول مؤثر حقيقي نه ګڼړي، څنګه چې مخکښې تير شول، د ضرورت په وخت کښې داغ لګولو کښې څه ګناه نشته.البته دا په علاج کښې سبب مؤثر ګڼړل صحيح نه دي. (۲)

**قوله**: فقام آخر: فقال: امنهم انا؟ قال: سبقك بها عكاشه: دا دويم کس څوک وو؟ په دې کښې يو قول خو دا دې چې دا حضرت سعد بن عباده رضی الله عنه وو. او دويم قول دا دې چې دا څوک بل منافق وو، حضور ﷺ په هغه باندې پرده اچولو سره سبقک عکاشه فرمائيلو سره ښه سلوک سره هغه لره رد کړو، چې کيدې شي توبه اوباسى او خالص مسلمان شي. (۳)

حضور ﷺ سبق بها عکاشه اوفرمائيل يا خو ځکه چې تپوس کولو والا د ددې خلقو نه نه وو، د چا چې به بې حساب بخښنه کيږي، او دا هم احتمال دې، چې هغه هم ددې خلقو نه وو، خو حضور ﷺ ددې سلسلې لره د مخکښې تلو نه منع کولو د پاره دا جمله ارشاد اوفرمائيله، چې هسې نه اوس هر يو پاسي او دا تپوس کوي، چې هم د هغه خلقو نه يم او که نه يم (۴) ددې حديث متعلق تفصيل مخکښې په کتاب الرقاق کښې به انشاءالله راشي

## ۱۸ - بَابُ الإِثْمِدِ وَالْكُحْلِ مِنَ الرَّمَدِ

فِيهِ عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ. [ر: ۵۰۲۷]

[۵۳۷۹] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ شُعْبَةَ قَالَ حَدَّثَنِي حُمَيْدُ بْنُ نَافِعٍ عَنْ زَيْنَبَ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ - رضى الله عنها - أَنَّ امْرَأَةً تُوُفِّيَ زَوْجُهَا فَاشْتَكَتْ عَيْنَهَا، فَذَكَرُوهَا لِلنَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - وَذَكَرُوا لَهُ الْكُحْلَ، وَأَنَّهُ يُخَافُ عَلَى عَيْنِهَا، فَقَالَ « لَقَدْ كَانَتْ إِحْدَاكُنَّ تَمْكُثُ فِي بَيْتِهَا فِي شَرِّ أَحْلاَسِهَا - أَوْ فِي أَحْلاَسِهَا فِي شَرِّ بَيْتِهَا - فَإِذَا مَرَّ كَلْبٌ رَمَتْ بَعْرَةً، فَلاَ، أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا ». [ر: ۵۰۲۵]

اثمد د همزه او د ميم کسرې سره، يو مشهور کانړې دې، چې د هغې نه رانژه جوړيږي، الکحل عام دې، او اثمد خاص دې، د کحل عطف په اثمد باندې د عطف العام على الخاص د قبيل نه دې. (۵)

---

۱) حواله بالا)-

۲) عمدة القارى ۲۴۵/۲۱، ارشاد السارى ۴۳۱/۱۲)-

۳) عمدة القارى ۲۴۵/۲۱)-

۴) ارشاد السارى ۴۳۱/۱۲)-

۵) عمدة القارى ۲۴۵/۲۱ ارشاد السارى ۱۲۴۳۱)-

من الرمد کښې (من) سببیه دې، ای بسبب الرمد، رمد د سترګې تکلیف ته وائی، (1)
په سترګه کښې تکلیف وی نو رانجه او خاص کر اثمد استعمالیږی.

**قوله**: فیه عن ام عطیة: یعنی په دې باب کښې د ام عطیه رضی الله عنها نه روایت دې، د ام عطیه نوم نسیبة بنت کعب دې، (2)
ددوی روایت امام بخاری په کتاب الطلاق کښې موصولا نقل کړې دې، چې د هغې الفاظ لا یحل لامراة تؤمن بالله والیوم الآخر ان تحد فوق ثلاث الا علی زوج فانها لا تکتحل. په دې روایت کښې اګرچې د اثمد ذکر نشته، خو عرب به دا د رانجو په توګه استعمالول، ځکه ددې روایت نه د اثمد په ثبوت باندې استدلال کیدې شی. (3)
په کومو روایاتو کښې چې د اثمد ذکر راغلې دې، غالبا هغه د امام بخاری په شرط باندې نه وو، ځکه امام بخاری د هغې تخریج اونکړو.
د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما روایت ابن حبان په خپل صحیح کښې نقل کړې دې د هغې الفاظ ان خیرا اکحالکم: الاثمد، یجلوا البصر وینبت الشعر. (4)
امام ترمذی رحمه الله هم یو روایت نقل کړې دې :وخیر ما اکتحلتم به الاثمد، فانه یجلوا البصر، وینبت الشعر. (5) حدیث باب په کتاب الطلاق کښې باب الاکتحال للحادة لاندې تیر شوې دې.

## ۱۹- باب الجُذَامِ

[۵۳۸۰] (6) وَقَالَ عَفَّانُ حَدَّثَنَا سَلِيمُ بْنُ حَيَّانَ حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مِينَاءَ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- «لاَ عَدْوَى وَلاَ طِيَرَةَ وَلاَ هَامَةَ وَلاَ صَفَرَ، وَفِرَّ مِنَ الْمَجْذُومِ كَمَا تَفِرُّ مِنَ الأَسَدِ». [۵۳۸۷، ۵۴۲۵، ۵۴۳۷، ۵۴۳۹]

---

(1) حواله بالا)-
(2) حواله بالا)-
(3) عمدة القاری ۲۴۶/۲۱، حواله بالا)-
(4) عمدة القاری ۲۴۶/۲۱)-
(5) اخرجه الترمذی فی کتاب الطب باب ما جاء فی السعوط وغیره، ۳۸۹/۴) رقم الحدیث ۲۰۴۷)-
(6) الحدیث اخرجه البخاری ایضا فی کتاب الطب، باب لا صفر وهوداء یاخذ البطن، ۲۱۶۱/۵) رقم الحدیث ۵۳۸۷) واخرجه البخاری ایضا فی کتاب الطب، باب لا هامة ولا صفرة ۲۱۷۱/۵) رقم الحدیث ۵۴۲۵) واخرجه البخاری ایضا فی کتاب الطب، باب لا هامة ۲۱۷۷/۵) رقم الحدیث ۵۴۳۷) واخرجه البخاری ایضا فی کتاب الطب، باب لا عدوی ۲۱۷۷/۵) رقم الحدیث ۵۴۳۹) واخرجه مسلم فی کتاب السلام، باب لا عدوی ولا طیرة ولا هامة ولا نوء ولا غول، ولا یردد ممرض علی مصح، رقم الحدیث ۲۲۲۰) واخرجه الترمذی فی کتاب السیر باب ما جاء فی الطیرة ۱۶۱/۴) رقم الحدیث ۱۶۱۵) واخرجه ابوداود فی کتاب الطب باب فی الطیرة ۱۷/۴) رقم الحدیث ۳۹۱۱) واخرجه النسائی فی کتاب الطب باب الصفر وهو داء یاخذ البطن، ۳۷۵/۴) رقم الحدیث ۷۵۹۱) واخرجه ابن ماجه فی کتاب الطب باب من کان یعجبه الفال یکره الطیرة ۱۱۷۱/۲) رقم الحدیث ۳۵۳۹)-

د جذام باره کښې شارحين ليکي: هو علة رديئة تحدث من انتشار المرة السوداء في البدن كله، فتفسد مزاج الاعضاء. سمي بذلک لتجذم الاصابع وتقطعها. (١)

يعنې جذام يو بيماري ده چې په ټول بدن کښې د سودا په خوريدو سره پيدا کيږي، دا د اعضاء نظام خرابوي، د جذام معنى د کټيکيدو رازي، دا بيماري ګوتو له کټ کوي، ځکه دې ته جذام وئيلې شي.

حديث باب دلته امام بخاري په اول ځل ذکر کړې دې، خو دا امام تعليقاً ذکر کړو، ابو نعيم او ابن خزيمه دا موصولاً نقل کړې دې. (٢)

**قوله**: لا عدوى: عدوى: د اعداء اسم دې، يو ځيز بل ځيز طرف ته منتقل کولو ته وائي، دلته د عدوى د يو بيماري بل ته اوړيدل مراد دي، حضور ﷺ د مرض بل ته اوړيدلو نفي کړې ده، چې د يو مريض مرض بل ته زي، نو ددې څه حقيقت نشته، ځکه چې په مرض کښې دا تاثير نشته، چې هغه بل ته د سبب حقيقي په توګه باندې منتقل شي. (٣)

**قوله**: ولا طيرة: طيرة: بدشګوني ته وائي، د مختلف مرغانو نه بدشګوني اختستلو هم څه حقيقت نشته. (٤)

**قوله**: ولا هامة: هامة په اصل کښې کهوپړئي او سر ته وائي، په زمانه جاهليت کښې د خلقو خيال وو، که يو کس قتل کړې شي، نو د مړي د هډوکو نه يو ځناور پيدا شي او والوزي، او هروخت دا فرياد کوي، اسقوني اسقوني، چې کله قاتل مړ شي، نو هغه ځناور الوتلو سره غائب شي. (٥)

بعضې خلق وائي چې خپله د مقتول روح د هغه ځناور روح اختيار کړي، حضور ﷺ دا خيال غلط اوګرځولو، او وې فرمائيل چې ددې څه حقيقت نشته. (٦)

يو قول دا هم دې، چې هامة الو ته وائي، د خلقو خيال وو، چې کله هغه د چا په کور باندې کيني نو هغه کور کهنډر شي، يا د هغه نه څوک مړ شي، نو حضور ﷺ ددې ارشاد سره دې عقيدې له بې حقيقت اوګرځوله. (٧)

**قوله**: ولا صفر: ددې لفظ په تشريح کښې مختلف اقوال دي، او دوه قوله پکښې مشهور دي، ① بعضې خلق د صفر د مياشتې په باره کښې مختلف قسم خيالونه او وهمونه ساتي، او

(١) فتح الباري ١٩٥/١٠) عمدة القاري ٢٤٦/٢١) ارشاد الساري ٤٣٢/١٢)-

(٢) حواله بالا)-

(٣) حواله بالا)-

(٤) حواله بالا)-

(٥) حواله بالا)-

(٦) حواله بالا)-

(٧) ارشاد الساري ٤٣٣/١٢)-

دې میاشتې لره منحوسه ګڼړي، او وائي چې په دې کښې د آفتونو او د حادثاتو مصیبتونه نازلیږي، حضور ﷺ په دې جمله کښې ددې نفي اوکړه، چې ددې اعتقاد څه حقیقت نشته.(۱)

② ددې دویمه تشریح داسې شوې ده، چې د خلقو په زمانه جاهلیت کښې خیال وو، چې د سړي په خیټه کښې مار وي، چې د لوګې په حالت په هغه باندې تیک لګوي، دې مار ته صفر وائي، ، حضور ﷺ لاصفر وئیلو سره دې لره بې حقیقت اوګرځولو ، (۲)

**د مرض د تجاوز مسائل:**

**قوله**: وفر من المجذوم کما تفر من الاسد: د مجذوم نه داسې تختئه لکه څنګه چې د زمري نه تختې، ..مرضونه بل ته لګي او که نا؟ په دې کښې حدیثونه مختلف دي د بعضې روایاتو نه معلومیږي چې د مرضونو نه تعدیه نه کیږي او د بعضو نه معلومیږي چې د مرضونو تعدیه کیږي،

چې د کومو روایاتو نه معلومیږي چې مرض بل ته نه لګي، نو د هغې نه څه دا دي:

① یو خو حدیث باب دې، چې په هغې کښې لاعدوی اوفرمائیلې شول.

② حضور ﷺ مجذوم سره روټئ خوړلو سره دا اوفرمائیل چې ثقة بالله وتوکلا علیه. (۳)

③ په صحیح مسلم کښې دي چې حضور ﷺ دعدوی نفي اوکړه نو یو اعرابي اووئیل چې یو خارښ والا اوښ صحیح اوښانو سره ولاړ وي، نو د هغې خارخ نورو ته اولګي، نو حضور ﷺ اوفرمائیل چې فمن اعدی الاول.. اولني اوښ ته دا بیماري چا اولګوله ؟ (۴)

دا روایت دلته مخکښې باب لاعدوی لاندې راروان دې.

ددې په مقابله کښې د بعضې روایاتو نه د مرض د تعدیه ثبوت میلاویږي، څنګه چې د حدیث باب په آخر کښې دي، وفر من المجذوم کما تفر من الاسد

دغه شان د سنن ابن ماجه په یو حدیث کښې دي، لاتدیموا النظر الی المجذومین. (۵)

په یو حدیث کښې دي لا یورد ممرض علی مصح. (۶)

مریض دې صحیح سړي طرف ته دې راوستلې نشي،

یو بل حدیث کښې د طاعون متعلق دي: من سمع به بأرض فلا یقدم علیه. (۷) یعنی کوم ځائې چې د طاعون بیماري خوره وي هلته دې ورتلل پکار نه دي.

---

(۱) ارشاد الساری ۱۲/۴۳۳)-
(۲) حواله بالا)-
(۳) ارشاد الساری ۱۲/۴۳۳) و ۲۱/۲۴۷) عمدة القاری ۲۱/۲۴۷) فتح الباری ۱۰/۱۹۶)-
(۴) فتح الباری ۱۰/۱۹۹) و عمدة القاری ۲۱/۲۴۷)-
(۵) اخرجه ابن ماجة فی کتاب الطب، باب الجذام، ۲۰/۱۱۷۲) رقم الحدیث ۳۵۴۳)-
(۶) فتح الباری ۱۰/۱۹۸)-
(۷) حواله بالا)-

**د تعارض حل کولو توجیهات:** او دا خبره تاسو ته معلومه ده چې کله د یو مسئلې متعلق په حدیثو کښې تعارض راشي، نو د محدثینو په نیز ددې تعارض ختمولو د پاره عموما درې طریقې دي، نسخ، ترجیح او تطبیق. په دې حدیثونو کښې هم محدثینو دا درې قولونه اختیار کړې دي.

① د عالمانو یو جماعت وائي چې د مجذوم نه د تختیدو حکم منسوخ شوې دې، په حضراتو مالکیو کښې عیسی بن دینار هم دا قول اختیار کړې دې.[1]

بعضې عالمانو د ترجیح طریقه اختیار کړې ده، بیا په دې کښې دوه ډلې دي، بعضو د تعدیه د نفی رواياتو ته ترجیح ورکړې ده، او بعضو ددې نه خلاف د ثبوت والا رواياتو ته ترجیح ورکړې ده،[2]

③ خو اکثر حضراتو دې دواړه قسمه احادیثو کښې تطبیق کړې دې، او ددې تطبیق مختلف توجیهات بیان کړې شوی دي،

(الف). چې په کومو رواياتو کښې د **اجتناب و فرار من المجذوم** حکم ورکړې شوې دې، هغه په استحباب او اختیار باندې محمول دي، او په کوم کښې چې حضور ﷺ المجذوم سره یوځائې خوراک کړې وو، هغه په جواز باندې محمول دي.

(ب). ابن الصلاح او امام بیهقی په دواړه قسمه رواياتو کښې تطبیق کولو سره فرمائي چې په کومو حدیثونو کښې د تعدیه امراض نفی ده، د هغې مقصد دا دې چې په یو بیمارئ کښې بالذات دا تاثیر نشته، چې هغه نورو خلقو ته منتقل شي،، په زمانه جاهلیت کښې د خلقو هم دا خیال وو، هغوی به مرضونه بالذات مؤثر ګنړل، حضور ﷺ ددې نفی اوکړه، او چې د کومو حدیثونه د تعدیه امراض ثبوت معلومیږي هغه د ظاهری سبب په اعتبار سره دې. چې الله تعالی د ظاهری سبب په توګه په بعضې مرضونو کښې د تعدیه وصف پیدا کړې دې، چې هغه نورو ته منتقل کیږي، خو د سبب حقیقی او مؤثر اصلی په توګه دا وصف په دې کښې نشته، لهذا نفی د سبب حقیقی ده، او اثبات سبب ظاهری دې، ځکه دواړه قسمه حدیثونو کښې هیڅ تعارض نشته،[3]

جمهور عالمانو دا توجیه اختیار کړې ده.

(ج) حافظ ابن حجر چې په شرح نخبة الفکر کښې د تطبیق کوم قول لره راجح ګرځولې دې، هغه دا دې، لاعدوی، دا په خپل اصل او په عموم باندې دې، او حقیقت دا دې چې یو مرض او بیماری بل چاته نه منتقل کیږي، خو ددې باوجود چې کوم خلق کمزوری عقیدې والا دی هغوی ته حکم ورکړې شو چې هغه مجذوم وغیره ته نزدې نه ورځي، ځکه چې ممکن ده چې هغه ته دا بیماری د تعدیه د وجه نه نا، بلکه هم داسې اولګی، او هغه دا ګنړل شروع کړي،

---

[1] فتح الباری ۱۰/۱۹۶) عمدة القاری ۲۱/۲۴۷)-
[2] حواله بالا)-
[3] حواله بالا)-

چې دا بیماری د تعدیه د وجه اولګیدله، نو دغه شان د هغه عقیده به خرابه شی، ځکه د هغه د عقیدې د حفاظت او د غلط عقیدې د بندولو د پاره احتیاطا هغه ته د مجذوم نه لرې کیدو حکم ورکړې شوې دې، نو دغه شان حافظ ابن حجر رحمه الله په شرح نخبة الفکر کښې لیکی:

والاولى فى الجمع بينهما ان يقال: ان نفيه للعدوى باق على عمومه وقد صح قوله ﷺ: لا يعدى شئ، وقوله ﷺ لمن عارضه بأن البعير الجرب يكون فى الابل الصحيحة، فيخالطها فتجرب حيث رد عليه ب قوله: فمن اعدى الاول يعنى ان الله تعالى ابتدا ذلك فى الثانى كما ابتداه فى الاول واما الامر بالفرار من المجذوم، فمن باب سد الذرائع لئلا يتفق للشخص الذى يخالطه شئ من ذلك بتقدير الله تعالى، ابتداء لا بالعدوى المنفية، فيظن ان ذلك بسبب مخالطته فيعتقد العدوى فيقع فى الحرج فامر بتجنبه حسما للمادة. (١)

## ٢٠ - بَاب الْمَنُّ شِفَاءٌ لِلْعَيْنِ

[٥٣٨١] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ سَمِعْتُ عَمْرَو بْنَ حُرَيْثٍ قَالَ سَمِعْتُ سَعِيدَ بْنَ زَيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ «الْكَمْأَةُ مِنَ الْمَنِّ، وَمَاؤُهَا شِفَاءٌ لِلْعَيْنِ». قَالَ شُعْبَةُ وَأَخْبَرَنِي الْحَكَمُ بْنُ عُتَيْبَةَ عَنِ الْحَسَنِ الْعُرَنِيِّ عَنْ عَمْرِو بْنِ حُرَيْثٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ زَيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم -. قَالَ شُعْبَةُ لَمَّا حَدَّثَنِي بِهِ الْحَكَمُ لَمْ أُنْكِرْهُ مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ الْمَلِكِ. [ر: ٤٢٠٨]

امام نووی رحمه الله فرمائی چې صرف د خرېړی اوبه سترګو ته شفا ورکوی، بعضې حضرات وائی که په سترګو کښې د حرارت د وجه نه تکلیف وی، نو د هغې د پاره د خرېړی خالص اوبه شفا ده، خو که صرف د حرارت د وجه نه په سترګو کښې تکلیف نه وی، بلکه نور د مرض سبب هم وی نو بیا نورو دوايانو کښې میلاولو سره دا مفید دی، (٢)

کهمبی ته په اردو کښې سانپ کی چهتری هم وائی، دا په باران کښې په خپله پیدا کیږی، دا دوه قسم وی، یو قسم نه سالن هم جوړیږی،

ددې متعلق څه تفصیل او الكماة من المن تشریح د کشف الباری کتاب التفسیر په سورة بقرة کښې هم تیر شوې دې. (٣)

**قوله**: قال شعبة: لما حدثني به الحكم، لم انكره من حديث عبدالملك: بره روایت شعبه بن الحجاج د عبد الملک بن عمیر نه نقل کړې دې، شعبه فرمائی چې دا روایت ماته بیا حکم بن عتیبه بیان کړو، نو بیا ما د عبدالملک د حدیث نه انکار اونکړې شو.

د شعبه دوه شیخان دی، یو عبدالملک او دویم حکم، اول دوی دا حدیث د عبدالملک نه

---

(١) شرح نخبة الفكر مع حاشية لقط الدرر، ٢٨-٢٩)-

(٢) فتح البارى ٢٠٢/١٠)-

(٣) كشف البارى، كتاب التفسير ٢٢٠)-

